# تفسیر ایوبی حنفی

تالیف

علامۃ العصر وحید الدہر ابو الفضل مولانا محمد عبد الحمید الایوبی
القندھاری السلیمانخیلی الحنفی النقشبندی عفی عنہ

ناشر
مکتبۃ القراءۃ والتجوید
کانسی روڈ شالدرہ کوئٹہ

بسم الله الرحمن الرحيم

په پښتو ژبه کښي اولنی او په افغاني تاریخ کي بې
ساری په زرگونو جدید او نوو مسئلو باندي مشتمل

# تفسير ايوبي حنفي

دریم ټوک ۳

تاليف اوتصنيف


د علامة العصر ابو الفضل شيخ التفسير والحديث فقيه دوران مفسر الزمان

## حضرت مولانا محمد عبيد الله الايوبي

الكندهاري السليمانخيلي الحنفي النقشبندي حفظه الله تعالى



مكتبة القرآة والتجويد

كانسي روډ شالدره كوټه

# د کتاب پېژندنه


د کتاب نوم ............... تفسیر ایوبي پښتو دریم توک

مؤلف.......................... الحاج مولنا محمد عبید الله الایوبي الکندهاري السلیمانخیلي الحنفي حفظه الله تعالی بفضله الوهبي

کمپوزر......................... حبیب الحق حقاني

تایپ ........................... حقاني کمپیوټر اداره

نشر کوونکې اداره............ مکتبة القراء ت والتجوید کانسي روډ کوټه

د چاپ ځای ............... لاهور پاکستان


## زېری

ومحترمو پر دین مینو مسلمانانو ورونوته خبر ورکول کېږي چي د فقیه الدوران محقق الزمان حضرت امام غزالي رحمة الله علیه کتاب یعني **مکاشفة القلوب** زموږ اداري له عربي څخه ومعیاري او عام فهمه پښتو ته راړولی دی په کوم کي چي د حضرت فخر موجودات سردار دو عالم حضرت محمد مصطفی ﷺ او د هغه د خوږو ملگرو یعني صحابه کرامو ﷺ او اولیاء عظامو په زرگونه واقعاتې موجودي دي، دا کتاب د وعظ په باره کي د پېش امامانو لپاره یوه دري بیبها تحفه ده، د کوم په مطالعه کولو سره چي د انسان بنیادي زندگي جوړېدلای سي، او ددې کتاب په واقعاتو سره په عمل کولو کي د دواړو جهانو گټه ده، خدای ﷻ دي موږ ته ددې کتاب پر مطالعه کولو باندي توفیق راکړي، آمین

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله وحده والصلواة والسلام
علی من لانبي بعده.

**وبعد:** د خالق کائنات له لوی احسان سره الحمدلله د تفسیر ایوبي دوه جلده له مخه تر دي دریم جزء چي پکښي د "الٓمٓ" تفسیر دی، د چاپ ومنګلوته رسېدلی وو.

د الله تعالی په لوی فضل او احسان سره دادی د تفسیر ایوبي دریم جلد چي پکښي د "سیقول" مکمله دوهمه سپاره ده ستاسو په لاسونو کي دی. باقي فیصله پر تاسو ده چي حضرت استاذ الاساتذه حضرت ایوبي صاحب د افغانانو لپاره تر کُومه حده پوري ملا ترلي ده.

زموږ دعاء ده چي الله تعالی دي دده صحت دائم ولري "آمین" همدارنګه د ټولو لوستونکو څخه دا هیله لرو چي د حضرت ایوبي لپاره د صحت کامله دعاوي وکړي، ولي چي حضرت ایوبي




الطبعة الأولى

١٤٢٦ هجري - ٢٠٠٥ ميلادي

**مكتبة القرائة و التجويد**

كوئته - باكستان

**MAKTABTUL-QIRRAT WALTAJWEED**

KANSI ROAD QUETTA
BALOCHISTAN

اوس د عمر په نوي يم (۹۰) كال كښي دى،
او سره ددې چي اوس يې هم شپه او ورځ پر
ځان يوه كړيده او د مسلمانانو د اخلاقي،
عقيدوي، تعليمي او اجتماعي ګټو لپاره يې خپلي موټي را نغښتي دي
الله تعالى دي د صحت كامله ژوند وركړي، نو ان شاء الله نور جلدونه
به هم ددې دريم جلد په څېر د نورو سپارو هم داغسي په يوه جلد كښي
تفسير او تشريح وكړي.

زموږ اداره تكل لري چي ان شاء الله ځرنګه چي د حضرت له قلمه څخه
تفسير را ووزي سمدستي به يې د كمپوټر و منګولو ته سپارو.

**له محترمو لوستونكو څخه هيله ده** چي كه چېري څه ګذارشونه د
تفسير په اړه ولري تر موږ پوري يې را ورسوي. تر څو ددوئ له ګټورو
مشورو څخه ګټه واخستل سي.

**له ټولو محترمو لوستونكو څخه** د مكتبة القرآة والتجويد لپاره د
دعاؤ هيله ده، چي الله تعالى د ادارې وكار كونكو او چلونكو ته د الله
تعالى د دين د خدمت توفيق وركړي.

نور مو پر خداى سپارو

والسلام

د مكتبة القراءت والتجويد باني
**قاري فضل الحق حقاني**
كوټه بلوچستان

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلله الذي وفق لهذا العبد العاصي الفقير الى الله الغني محمد عبدالله ايوبي قندهاري لتفسير جزء "الٓمٓ" من الكتاب العزيز والقرآن المجيد في مجلدين، والصلوة والسلام على وسيلتنا في الدارين محمد المصطفى سيد الثقلين امام الحرمين، وعلى آله وصحبه الهاديين الى السبيلين.

**اما بعد:** فلما فرغت عن تفسير جزء "الٓمٓ" فحان ان اشرع في تفسير جزء سيقول بتوفيقه وتوقيضه تعالى وتقدس وكان تاريخ الشروع ساعة (١٠) ساعت من يوم الاربعاء التاسع عشر من الشهر الذي انزل فيه القرآن، وارجوا من الله الكريم ان يوفقني لتفسير هذا الجزء بل لتفسير سائر اجزاء القرآن العظيم بالخير والعافية والسلامة والفرح والسرور ويجعله خالصاً لوجهه الكريم انه على كل شيئ قدير وبالاجابة جدير، واطلب بالعجز والانكسار عن المستفيدين من هذا التفسير لا بعين الحسد والانكار، ان يدعوا لاخيهم المفسر دعاء المغفرة من العزيز الغفار.

**اقتباس:** از کلمات شائسته خواجه عبدالله انصاري هروي

خدايا اين زنده گاني نيست بلکه عذاب است    واين نه عمر است بنيادي بر آب است

اگر نظر عنايت تو نباشد کار خراب است الهي، ما درين دنيا معصيت ميکرديم، و دوست تو محمد ﷺ اندوگين ميشد، ودشمن تو ابليس شاد، ودر آخرت اگر عقوبت کني، باز دوست تو اندوه گين شود، ودشمن تو شاد خدايا دو شادي بدشمن مده، ودو اندوه بدل دوست خود منه، الهي اگر پرسي حجت نه داريم، واگر سوزي طاقت نه داريم، ماهمه مفلسانيم بيمايه وهمه از طاعت توبي پيرايه، خدايا اگر يکبار گويي بنده من، از عرش بگزرد خنده من، الهي پاکانرا چون استغفار تو بايد کرد، ناپاکانرا چکار بايد کرد.

## ابیات

اگر د ر ظلمتي ا یـــنک سر ا جت حساب امروز کن فردا چه حاجت
هم ا کـــــون کل من علیها ستا نند از تو ا ینک تخت وتاجت
بکـــنـــج تـــخته تابو ت خسپـــی بـــخواري گـــربود تخت زعاجت
ترا پر هیز با ید چند گا می که فاسد گشت ازعصیان مزاجت

خدایا! عاصي چه کند ازیک طرف عصیان بي پایان دارد
و از دیگر طرف حاسدا ن پر او ا ن د ارد
دفع هر دو طرف در قدرت و رحمت رحمان است.

**درویش وایي**

غرض نقشیست کز ما یا د ما ند که هستي را نمي بینم بقایي
مگر صاحب دلي روزي برحمت کند در حق این مسکین دعایي
که الدعاء بظهر الغیب مقبولة **درویش وایي**

د صاحب د ل قید اتفاقي نه دی یارانو
بلکه دادی احتراز د دوریش د حاسدانو

ګرانه و رو ره که حسد کې که د عاء
زما په د وا ړو کي فا ئده بې اشتباه
لوبه ورځ مو ده په مخ کي زما وستا
د حسد حسا ب به و کړي پاک الله
هغه ورځ چي نه د ینار وي نه درهم
نېک عمل به نقل کا ندي پاک الله

**تبصره:** یو اميږ سړی چي ډېر سرمایه داره وي او بل معمولي دکاندار وي، که څوک ومعمولي دکاندار ته ووایي چي فلانی اوس ډېر سرمایه داره سوی دی، هغه معمولي دکاندار ووایي ښه دی خدای دې دده روزي کړي، موږ ته دي هم خدای ﷻ ډېره حلاله راکړي، دا ډېر معقول خواب

دی، ولي چي ددې خوباتو حاصل غبطه ده پر حال د سرمایه داره، او غبطه که په دین کي وي او که په دنیا کي علماء يې جائز بولي، او که څوک د يو عالم صفت وبل عالم ته وکړي، هغه عالم وایي چي حاسد وي چي دده په حال نو زه ښه خبر یم! ته يې په حال نه يې خبر!؟ وروسته د غیبت او بهتان خوله خلاصه کړي، افسوس چي امي سړی تر عالم بهتر سو.

**فائده**: د درویش بیان په عمومي او اکثر علماوٌ پوري تعلق لري. فلا يرد ان الکل ليسوا کذالک.

**نصیحت**: د هر عالم په تدریس، وعظ او په تصنیف کي اصل مقصود باید رضاء د الله تعالی ﷻ او نفع د ورونو مسلمانانو وي نه ریا او نه سمعه، او نه جاه او جلال وي لکن عز وجوده في العصر الحاضر والعصر الجاري.

**معذوت**: درویش په دې تفسیر کي حتی الوسع کوشش او جان فشاني کړي ده او کوي يې، مګر بیا هم درویش قلیل البضاعة دی او د بحر څخه د قرآن عزیز ملغلري را ویستل غواړي، ما للعبد الضعیف ولکلام الرب اللطیف لکن د محبوب د خبرو صبر کول امکان پزیر نه دی لهذا په میدان کي د تفسیر ودرېدی که خطا ښېښه سي امید ده عفو د کردګار فراخه دی.

قال الرومي قدس سره السامي

نی مشو نومید خود را شاد کن — پیش آن فریاد رس فریاد کن
که ای محب عفو مارا عفو کن — ای طبیب رنج ناسوري کهن

تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا سکین او pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

اعوذ بالله من الشيطن الرجيم

# سَيَقُولُ السُّفَهَاءُ مِنَ النَّاسِ مَا وَلّٰىهُمْ عَنْ قِبْلَتِهِمُ الَّتِي كَانُوا عَلَيْهَا

ژر دی چي وبه وايي هغه خلګ چي بېوقوفان دي له انسانانو څخه چي منافقين، يهود ، نصارى او مشركان دي، څه شي واړول عليه السلام او مسلمانان له توجه څخه په لمانځه کي له هغي قبلې څخه چي دوئ وهغې قبلې ته توجه په لمانځه کي کوله يعني البيت المقدس.

**فائده:** وجه د ربط ددې آيت د ماقبل سره داده چي مخنى آيت قدح وه په اصولو کي ددين د يهودو، او دا آيت بيان دی د بېوقوفى ددوئ په فروع ددين

**فائده:** د منکرينو څخه د تحويل د قبلې تعبير يې په سفهاؤ وکړی له دې سببه چي کعبه مبارکه خو قبله د ملت ابراهيمي ده. وقد قال الله تعالى ﴿ومن يرغب عن ملة ابراهيم الا من سفه نفسه فهم السفهاء﴾

**پوه سه:** سفه لازمي هم راغلې ده يعني چي ماضي يې سَفُهَ بضم الفاء وي، نو معنا يې خفة العقل ده. او متعدي هم راغلې ده چي ماضي يې سفِه بکسر الفاء وي، نو معنا يې ذليلول د خپل خان ده. يعني په سبب د تقليد د اباؤ او اعراض د نظر صحيحه څخه.

**فائده:** بيان ددغو سفهاؤ په "من الناس" سره يې وکړی يعني داسي يې نه وويل "من العلماء، تاکيداً في ذمهم" په دې معنا چي دغه منکران صرف او صرف انسانان دي د کمالاتو د انسانيت هيڅ شی نسته پکښي کالنظر الصحيح والتاني في الانکار.

**پوه سه:** چي سابق کلام که څه هم د يهودو سره وو لکن منکران د قبلې د تحويل يهود هم وه دوئ به دا ويل چي بيت المقدس خو قبله د ډېرو انبياء عليهم السلام وه نو ولي مسلمانانو دا قبله پرېښول، او دوئ به دا هم ويل چي محمد ﷺ چي کعبې ته توجه في الصلوة مختاره کړه ميلاً

الى دين آبائه يعني الشرک، او منافقين هم د تحويله څخه منکره وه هغو په دې سبب انکار کاوه چې په دين پسې د اسلام يو عيب ووايي، او مشرکان د مکې هم وه هغو به ويله چې زمونږ کعبې ته را واوښتی نو ژر دی چې زمونږ دين ته به را واوړي.

**پوښتنه**: مفسرين رح په يوه خوله دا وايي چې خدای ﷻ د څه حکمت لپاره مسلمانان د مخه تر کولو ددغه اعتراض له طرفه څخه د مذکوره درو ډلو له خوا خبر کړه؟

**ځواب**: يو حکمت خو دادی چې د مسلمانانو زړونه به ددغه اعتراضه سره عادت سي ولې چې نابېره مصيبت پر خلگو بد تاثير کوي، مثلاً د يو چا چې قريب نابيره مړسي ډېر بد تاثير کوي تر هغه چې ناجوړی وي او مړ سي کما يشهد به التجربة، او بل حکمت دادی چې تر سوال د مخه چې سړی په سوال خبر سي دمخه تر سوال به لا جواب ورته اراسته کړي، او بل حکمت دادی چې يو سائل چې په زړه کې د يو سوال نيت لري او قبل ايراد السوال چې ځواب د خصم د خوا واوري، نو سوال که انسان و گرسره به يې پر خوله راونه وړي.

**فائده**: کلمه د "ما" استفهامي ده، او استفهام انکاري دی، يعني د دوئ په زعم فاسد هيڅ سبب د تحويل د قبلې نسته بلکه محمد ﷺ په تشهي د نفس ورته کارونه کوي.

**پوه سه**: چې کلمه د "ما" مبتداء ده "ولهم" يې خبر دی او کلمه د "عن" متعلق په "ولهم" سره ده، او مجموع جمله منصوب محلاً مقوله د قول ده

**فائده**: "قبلة" چونکه وزن يې "فعلة" دی يعني بکسر القاف، او د صرفو په کتابو کې وايي چې فعلة لپاره د هيئت دی، نو معنا د قبلة هغه حال چې انسان پر هغه حال وي په وخت کې د استقبال، وروسته بيا لفظ د قبلې نقل سو وهغه ځای ته چې سړی توجه په لمانځه کې وهغه ځای ته کوي، روح، بيض، مظ، در، بحاصله.

### بيت

له حا سده سه ګله مه کوه عبيد دا عادت دی له پخوا سه را روان
يهوديان د آنحضرت په هرڅه پوه وه لکن د انکار پر لور حسد کړله روان

قُل لِّلَّهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ يَهْدِي مَن يَشَاءُ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿١٤٢﴾

او ته ووایه دوی ته چي خدای ﷻ لره دی مشرق او مغرب یعني د خدای ﷻ سره یو ځای او بل ځای کوم خصوصیت ذاتي نه لري یعني خصوصیت د جهت او مکان په عبادت کي کوم دخل نه لري، بلکه اعتبار امر لره د خدای ﷻ دی، او خدای ﷻ هدایت کوي هغه چا ته چي اراده یې وي ولاري سمي ته، نو ګاهي بندګان په لمونځو کي متوجه وبیت المقدس ته وګرځوي او ګاهي یې کعبې ته "یفعل مایشاء ویحکم مایرید، لا یسئل عما یفعل وهم یسئلون"

**پوه سه**: چي جمله مذکوره جمله مستانفه ده، ګویا علیه السلام پوښتنه وکړه چي مادا اقول، فقال قل آه.

حاصل ددې خواب الهي دادی چي جهات او اطراف د مځکي ټوله د خدای پاک ﷻ دي ملکاً وخلقاً، نو هیڅ شی له جهاتو څخه خصوصیت ذاتي نه لري چي بل طرف او جهت دي د هغه پر ځای دربدل ممتنع وي؛ نو ټوله جهات متساویة الاقدام دي چي قبله د توجه د لمانځه دي وګرځي، په صرف امر د خدای ﷻ قبله د توجه به ګرځي، نو خدای ﷻ کولای سي چي په هر وخت کي قبله د توجه بدله کړي وبل جهت ته علی حسب ارادته ومشیته. نو لائق د مخلوق د شان سره داده چي فرمانبرداري د امر الهي وکړي او چون وچرا ونه وایي، او په خصوصیت کي د مامور جهت بحث او پوښتنه ونه کړي، او په افعالو کي د خدای ﷻ علل او اغراض نه ولټوي لان افعال تعالی ونواهیه لیست معللة

بالاغراض عند اهل السنة والجماعة وهذا الرای یدل علیه الآیات القرآنیة والاحادیث واقوال دعائم الدین المبین رحمهم الله تعالی.

**پوښتنه**: منکران د تبدیل خو درې طائفې وې مشرکان د مکې، یهود، او نصاری فای حکمة الله تعالی فی ذکر المشرق والمغرب دون الجنوب والشمالما ان جمیع الجهات مملوکة له تعالی ولم یتعرض للکبعة الشریفة؟

**ځواب**: روح البیان وجه د تخصیص داسې بیان کړې ده چې یهودانو په خپل هوایي نفساني بېله امر الهی جهت د مغرب قبله ده توجه گرځولې وه، دوئ به دا ویل چې موسی علیه السلام په جانب کې د مغرب و، نو خدای ﷻ و ده ته نبوت ورکړی ویدل علیه قوله تعالی "وما کنت بجانب الغربی اذ قضینا الی موسی الامر، ای النبوة" او نصاری وو جهت د مشرق قبله گرځولې وه دلیل یې دا وایه چې مریمه چې له کوره ووتله جانب ته د مشرق ولاړه کما قال الله تعالی "واذکر فی الکتاب مریم اذ انبذت من اهلها مکاناً شرقیاً، او دا هم ددوئ استدلال عقلي و امر الهی نه و. او عدم ذکر د کعبې لانها لا شرقیة ولا غربیة بل هی قلب الارض کلها یتوجه الیها من الجوانب الاربعة وحاصل الجواب انه لا قبلة فی الجنوب والشمال لاحد من اهل الملل المتنوعه. نو یې ذکر د مشرق او مغرب تخصیص په ذکر سره وکړی لکن "فاینما تولوا فثم وجه الله" یعني اذا کان التوجه بامره تعالی لان الاعتبار لامره تعالی لا للجهة.

**وَكَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً وَّسَطًا**

او هم دغه شان لکه تاسي ته چي مي هدایت د صراط مستقیم وکړی، نو ذالک اشارة دی ومضمون ته د جمله سابقه، ما گرځولي یاست تاسي ای امت محمدیه ﷺ داسي امت چي خیار او عدول یاست یعني په علم او عمل او معرفت سره ښائسته.

**سوال**: په "كذالک" کي خو اخر کاف د خطاب دی، او قانون صرفي خو دادی که مخاطب مفرد مذکر و "كذالک" به وايي او که مؤنث و كذالک بكسر الكاف به وايي، او که مخاطب دوه نفره وه يا مذكر يا مؤنث ذالكما به وايي، او که مخاطب جمع مذكر وه ذالكم به وايي وهكذا. نو دلته يعني په آيت کي خو خطاب و ټولو مؤمنانو ته دی، نو حق د خطاب ذالكم و ؟

**ځواب**: خطاب په تاويل د فريق دی وهو مفرد .

**پوه سه**: چي وسط په اصل کي هغه ځای ته وايي چي اندازه وده ته د ټولو جوانبو څخه برابره وي كالمركز للدائرة او الكرة. وروسته بيا دا لفظ استعاره وشو محموده خويو ته سو .

**فائده**: خدای ﷻ په انسان کي دري قوته پيدا کړي دي (۱) قوت علقيه (۲) قوت شهويه (۳) قوت غضبيه، او هر يو ددې قوتو څخه افراط او تفريط او توسط لري چي مجموع نهه (۹) گرځي، نو دري په هغو کي چي د توسط مرتبې دي محمود او خيار دي، او دري مرتبې د افراط او درې د تفريط مذمومي دي، د قوت عقليه افراط قوت عقليه ده، حكما دي چي د دين سماوي مراعات په خپلو مسائلو کي نه لري، او تفريط يې چي بلادت يې بولي دادی چي په امور شرعيه ته پوهېږي، او ميانه مرتبه يې ذكاوت دی او افراط د قوت شهويه چي فجوريه يې بولي دادی چي د خپلي ماينې مثلاً او بلي ښځي فرق نه پر كېږي په جماعو کي، او تفريط يې چي خمول يې بولي دادی چي د خپلي ماينې د جماعو پوره اجراء نسي ويلای او توسط چي عفت يې بولي انيكون العبد لا هكذا ولا كذالک. او افراط د قوت غضبي چي تهور يې بولي دادی چي پر هر کم او لږ شي دونه غصه ورسي چي موجب د قتل د چا وگرځي مثلاً، او تفريط يې چي جبن يې بولي دادی چي په وخت کي د غلبې د كافرانو په مخ کي نسي درېدلای او هر حكم ته د كافر تسليم وي بلكه د جبن څخه.

او يا مال ډالر وغيره له سببه او يا د جاه د څوکۍ لپاره معاون وي د کافرانو، او متوسطه درجه يې شجاعت دی لا الی هؤلاء ولا الی هؤلاء .

**درويش وايي:** چې ددغو ملکاتو ثلثه متوسطه وو څخه بيا ډېر افعال متوسطه بين الافراط والتفريط پيدا کېږي کالجود بين الاسراف والبخل او وروسته په وينا د مظهري رحمه الله دا لفظ د "وسط" پر هغه سړي يې هم اطلاق کېږي چې مذکوره خصال حميده پکښې وي، نو پر دې تقدير په دې لفظ مذکر او مونث او مفرد او جمع برابر دي کما قال الله تعالی "قال اوسطهم، ای خيرهم" او کلبي رحمه الله وايي چې په عبارت کې د آيت مضاف محذوف دی ای اهل دين وسط بين الغلو والتقصير .

**درويش وايي:** چې کلمات قرآنيه چې پر ظاهر صحيح وي نو حذف ته څه ضرورت سته. د ابي سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چې يوه ورځ وروسته د مازدېگر آنحضرت ﷺ زموږ په منځ کې ودرېدی نو يې نه پرېښولو شی چې تر قيامته پورې راتلونکی مگر عليه السلام يې ذکر وکړ په دغه خای کې حتی چې لمر پر سرو د درختو او د دېوالو پر سرو سو، نو يې وويله چې پاته دنيا نسبت و تېرې سوي دنيا ته داسې معلومېږي لکه باقي وخت ته د نني ورځي نسبت وتېري ته، او بيا يې وويل آگاه اوسئ په دې امت محمدي سره اويا (۷۰) امته پوره سوه يعني امتونه تر اوسه نهه شپېته (۶۹) وه او اوس اويا (۷۰) پوره سوه، او دا امت اخير د ټولو امتو دی، او اکرم د ټولو امتو دی علی الله عزوجل، رواه البغوي والترمذي وابن ماجه والدارمي کذا قال المظهري رحمهم الله .

لِّتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا

ددې لپاره ما تاسې امت وسط يعنې عدول وگرځولاست چې تاسې به شاهدي اداء کړئ يعنې په ورځ د قيامت پر تېرو سوو امتو، يعنې پر کافرانو د هغو امتو چې هغه انکار وکړی له تبليغه د خپلو انبياؤ، او تاسې به داسې

شاهدي ورکړئ چي دغو انبياؤ ودغو امتو ته تبليغ کړی دی، او آنحضرت ﷺ به پر تاسي شاهد سي يعني د عدالت ستاسي او د تزکيه ستاسي.

**پوه سه**: چي په فقه کي وايي چي په شهادت کي عدالت شرط دی، او که مدعي عليه جرح پر شاهدانو وکړي بيا تزکيه د شاهدانو پر قاضي لازمه ده ورنه مستحب ده، وهذا الآية تدل على ماقالوا .

**پوښتنه**: اهل لغت وايي چي لفظ د شاهدي چي متعدي په لام سره سي نحو شهد له په معنا د نفع دی، او چي متعدي په على سره سي لپاره د ضرر راځي، نو په دې آيت شاهدي د امت محمديه پر کفارو د امم ماضيه وو که څه هم د هغو پر ضرر تماميږي ولي چي د امت محمديه په شاهدي دغه کفار مستحق د عذاب النار وګرځېدل لکن شاهدي د تزکيه د عليه السلام له خوا څخه د امت نفع ده، ولي چي ددوئ شاهدي په دغه تعديل او تزکيه سره په نيز د خدای ﷻ قبوله سوه، نو په دې آيت کي چي داسي ويل سوي وای "ويکون الرسول لکم شهيداً" ښه به نه وای؟

**ځواب**: شاهدي د تزکيه او تعديل هلته څوک اداء کوي چي هغه څوک رقيب وي او مطلع وي پر احوالو د مزکي، نو که دغه چا په شاهدانو کي صلاح او ښه کارونه ولېدل نو دي تزکيه وکړي، او که يې نه ولېدل ساکت دي سي يعني لا ادري دي ووايي، او غيبت دي هم نه کوي، او صله د "رقيب" على راځي، نو خدای ﷻ لپاره د تنبيه پر دغه نکته شهيد يې متضمن معنا لره د رقيب وګرځاوه او متعدي يې په على سره کړی، فتنبه.

**درويش وايي**: چي په صحيح کتابو کي د احاديثو مبارکه وو په شان نزول کي د آيت فوق په متقاربو الفاظو داسي حديث راغلی چي خدای ﷻ په ورځ د قيامت اولين او اخرين د امتو سره را غونډ کړي، بيا د هر امت و کفارنو ته ووايي هل جائکم نذير؟ يعني په ذريعه د ملکو لقوله تعالى "لا يکلمهم الله آه" نو کافران انکار وکړي او داسي ووايي ماجائنا

من نذير ولا بشير فيسئل الانبياء عن ذالک نو انبياء عليهم السلام
ووايي درواغ وايي موږ ودوئ ته پوره تبليغ او تنذير او تبشير كړى دى،
نو خداى ﷻ لـه انبياء كرامو څخه شاهدان وغواړي لان البينة على
المدعى واليمين على المنكر.

**پوه سه:** چي خداى ﷻ خو ښه خبر دى په تبليغ د انبياء كرامو لكن طلب
د شاهدانو يو خو اقامت د حجت دى پر كافرانو او بل اظهار د شرافت د
امت محمديه ﷺ او اظهار د جلالت د قدر د آنحضرت ﷺ دى، نو انبياء
ووايي چي زموږ شاهدان امت د محمد ﷺ دي، نو اكابر او علماء د امت
محمدي ﷺ پر هغو كافرانو شاهدي د تبليغ د دوئ د نبي اداء كړي چي
دغو انبياوٌ ودغو كفارو ته تبليغ كړى دى، نو كافران د امم ماضيه به پر
دوئ جرح داسي وكړي چي دوئ څرنګه پر موږ شاهدي ادا كړه او دوئ
خو په سوو بلكه په زرو كلونه تر موږ وروسته و دنيا ته راغلي وه، نو
خداى ﷻ ددغو شاهدانو څخه د امت محمدي ﷺ پوښتنه وكړي چي
تاسي د څه رويه پر دوئ شاهدي اداء كړه، دوئ به ورته ووايي چي تا
زموږ پر نبي ﷺ كتاب قرآن نازل كړى او په هغه كتاب كي تا موږ ته
قصې د دغو انبياء كرامو د تبليغ او د قوم د انكار موږ ته كړي دي او ته
اى ربه صادق يې پخپل كتاب كي، نو موږ د خپل كتاب د رويه پر دوئ
شاهدي اداء كړه بيا امم ماضيه د كافرانو پر دغو شاهدانو دعوې د فسق
او كذب وكړي، نو بيا خداى ﷻ د محمد ﷺ څخه پوښتنه د حال د امت
وكړي، نو عليه السلام به د خپل امت د شاهدانو تزكيه وكړي او د دوئ
صدق به بيان كړي، نو خداى ﷻ به امر صادر كړي چي دغه كفار دي
تولـه وجهنم تـه تحويـل سي انتهى بحاصله، ويكفى لشرف هذه الامة
ماقال النبي ﷺ علماءِ امتي كانبياء بني اسرائيل.

وذکر الراغب الاصفهاني رحمه الله چي امام شاذلي چي مصنف د حزب البحر دی وایي چي زه یوه شپه په مسجد کي د بیت المقدس بیده وم نو خوب مي لیدی چي یو تخت په منځ کي د حرم د بیت الاقصی کښېښوول سوو او ډله ډله نوراني کسان راغلي نو په خوب کي ما د حاضر سړي څخه د خادمانو د بیت المقدس پوښتنه وکړه چي دا څه قصه ده او دا نوراني خلگ څوک دي هغه راته وویل چي دا جماعت د رسولانو دی، چي هغه ددې لپاره حاضر سوي دي چي د حسین حلاج په باره کي شفاعت و سید المرسلین ﷺ ته وکړي چي د حسین حلاج یوه بې ادبي په شان کي د علیه السلام سوې ده، نو ما چي تخت ته وکتل یوازي سید المرسلین ﷺ پر ناست وو، او نور انبیاء کرام علیهم وعلی نبینا الصلوة والسلام پر مځکه ناست وه حتی ابراهیم وموسی وعیسی ونوح علیهم السلام، نو زه ورغلم او ودرېدم او ددوئ خبري مي اورېدلې، نو په دې ضمن کي موسی علیه السلام و آنحضرت ﷺ ته وویل چي تا ویلي دي علماء امتي کانبیاء بني اسرائیل، نو ته د یو عالم ستا روحانیت پېش کړه، نو علیه الصلوة والسلام اشاره وامام غزالي رحمه الله ته وکړه چي دغه یو عالم زما د امت دی، نو موسی علیه السلام یوه پوښتنه ځني وکړه، امام غزالي رحمه الله لس ځوابه ورکړه، نو موسی علیه السلام اعتراض پر وکړی چي د یوه سوال ځو یو ځواب کافي و، نو تا ولي لس ځوابه راکړه، نو امام غزالي رحمه الله وموسی علیه السلام ته وویل چي دا سوال زما څخه د مخه پر تا وارد دی، چي خدای ﷻ په کوه تور کي تا ته وویل "وماتلک بیمینک یاموسی" نو ددې سوال په ځواب کي خو صرف دومره کافي وه "عصای" نو تا ولي وویل "هی عصای اتوکاء علیها واهش بها علی غنمی ولی فیها مآرب اخری" دې زائدو اوصافو ته د لکړي څه ضرورت و. امام شاذلي رحمه الله وایي چي زه په فکر کي ولاړ وم او فکر مي په جلالت د قدر د علیه السلام واهه چي څرنگه یوازي پر تخت د قدر او

عزت ناست دی او نور انبياء كرام پر مخكه چي په دې حالت كي يو سړي سخت په لغته ووهلم او ډېر يې وبېرولم چي ناببره له خوبه راوېښ سوم د خادمانو څخه د بيت الاقصى مي يو سړی په خيال راغلی لكن بيا مي تر اوسه هغه رنګه سړی په بيت الاقصى كي نه دی ليدلی والله اعلم چي څوک و، او نه سوم پوه چي شفاعت د حسين حلاج څرنګه سو .

**درويش وايي**: چي غالباً شفاعت ددې لوئ جماعت د انبياء عليهم السلام په بېله عذره قبول سوی وي، قال المولف قصيدة البردة فانسب الى ذاته ماشئت من شرف، وانسب الى قدره ماشئت من عظم .

**درويش وايي**: چي امام شاذلي رحمه الله چي وويل د حسين جلاح په شان كي د نبي سوء ادب پېښ سوی و هغه سوء ادب دا و چي حسين جلاح ډېر لوئ عاشق د عليه السلام و حتى چي ګويا په عشق كي د عليه السلام فاني و او فيوضات نبويه به همېشه ده ته راتله لكن يوه ورځ ده دا قول د عليه السلام د تاريخ په وينا "شفاعتی لاهل الكبائر من امتي" ووايه، نو دا خبر يې تر خوله ووتل چي د عليه السلام همت تر مرتبه دده كم و، ولي چي دده د رتبې سره عند الله لائق داوه چي ويلي يې وای شفاعتي للكافرين من امتي يعني امة الدعوة د ګناه كبائرو والا وو به ماشفاعت كړی وای، څرنګه دا خبره ده وكړه هغه فيوضات او انوار محمدي ﷺ چي ده ته به فائض وه ټوله يو دم بند سوه، او حسين جلاح په ځان پوه سو چي له ډېره محبته بې ادبي در څخه وسوه، نو هغه و چي حسين جلاح قبر انور ته د آنحضرت ﷺ تائباً نادماً ورغلی او بيا بيت المقدس ته ولاړی او هلته پر قبرو د انبياء كرامو سر ګردانه وګرځېدی او د هر نبي پر قبر بې وژړل چي زما په باره كي شفاعت و شفيع المذنبين ته وكړئ، نو دغه واقعه امام شاذلي رحمه الله په خوب كي ولېدل، والله جل سلطانه اعلم بحقيقة الحال وليس على الفقير الا نقل قول اهل المقال .

يو شاعر په مدح کي د علیه الصلوة والسلام داسي وايي

آفا قها گر دیده ام عشق بتان ورزیده ام

بسیار خوبان دیده ام اما تو چیزي دیگري

**بیت**

از خدا خواهم توفیق ادب بي ادب محروم گشت از فضل رب

## وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِي كُنتَ عَلَيْهَا إِلَّا لِنَعْلَمَ مَن يَتَّبِعُ الرَّسُولَ

او مونږ نه ده گرځولې هغه قبله چي ته پر هغه قبلې وې، يعني توجه په لمانځه کي دي ورته کول وهي بيت المقدس .

**يوه سه:** که "جعلنا" متعدي و دوه مفعوله ته سي نو لفظ د "قبلة" سره د موصول مفعول اول دی، ان مفعول ثاني يې محذوف دی ای منسوخة، نو معنا داده چي مونږ نه د گرځولې هغه قبله چي تاپه لمانځه کي توجه ورته کول چي هغه بيت المقدس و منسوخه وكعبې شريف ته الا لنعلم آه .

او که "جعلنا" متعدي و يوه مفعول ته سي نو موصول يعني التى سره د صلې يعني كنت عليها صفت دی د قبلة والمضاف محذوف فالمعنى وما خلقنا تحويل القبلة التى آه يعني مونږ نه دی پيدا کړی تحويل يعني بدلول د هغي قبلې ته پر دې چي بيت المقدس وه وكعبې ته الا آه والمآل واحد، وهو بيان حكمة نسخ قبلة بيت المقدس الى الكعبة الشريفة وهي امتحان الناس فى متابعة الرسول وعدمها.

او دا احتمال هم سته چي قبله دي مفعول اول وي د "جلعنا" او مفعول ثاني دي موصول وي په حذف د موصوف ای ماجعلنا القبلة في سابق الزمان الجهة التي كنت عليها ، يعني جهة بيت المقدس الى وقت نسخها، الا

لنعلم آه، نو يې حاصل دادی چې اصل حال ستا خو د استقبال د کعبې تقاضا کول لانها قبلة ابراهيم ﷺ وانت تدعى ملة ابراهيم لکن جعلنا قبلتک اشهور معدودة بيت المقدس لحکمة وهی امتحان الناس.

**درويش وايي:** چې پر دې تقدير هم بيان د حال د قبلة منسوخي دي يعني بيت المقدس .

**پوه سه:** چې بيضاوي رحمه الله اولاً ترجمه د آيت داسي کړې ده چې "جلعنا" خو يې متعدي و مفعولينو ته ګرځولی دی، مفعول اول يې القبلة دی او مفعول ثاني يې موصوول دی په حذف د موصوف ای الجهة التي کنت آه لکن "د جهة التي کنت عليها" ښخه يې مراد کعبه بللې ده. نو بناء ددې قول پر دې ده چې عليه الصلوة والسلام چې په مکه کي تشريف فرما و لمونځ يې وکعبې مبارکې ته کاوه لکن چې هجرت يې وکړی مدينې ته خدای ﷻ دی امر کړی چې لمونځ وجنت ته د بيت المقدس کوه لپاره د الفت د زړو د يهوديانو، پس له څورلسو (۱۴) يا پنځلسو (۱۵) مياشتو بيرته عليه السلام مامور سو په توجه د کعبې مبارکې، نو پر دې تقدير آيت مذکوره بيان د جعل ناسخ دی لکه پر دمخه تقدير چې مقصود بالآية بيان د جعل منسوخ و، او بيضاوي هغه احتمال اول په خپل تفسير کي ثانياً راوړی دی، لکن ابن حجر په فتح الباري شرح البخاري کي تفسير اول د بيضاوي ضعيف ګڼلی دی وقال لانه يلزم النسخ مرتين آه، يعني د کعبه قبله منسوخه سوه وبيت المقدس ته او د بيث المقدس قبله بيرته منسوخه سوه کعبې ته .

**درويش وايي:** چې چونکه نسخ مطلقاً خای د اعتراض ده کمامر فالمناسب للنسخ مهما امکن التقليل، او مظهري رحمه الله هم تفسير اول د بيضاوي ضعيف بللی. او مظهري ويلي دي چې په دغه آيت کي "سيقول السفهاء الآية"

خو قطعاً د موصول څخه یعني في قوله تعالى "عن قبلتهم التى كانوا آه" بیت المقدس مراد ده والله اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب.

او صاحب د روح البیان خو فقط دا یو احتمال راوړی دی چي په دي آیت کي مراد له موصوله کعبه ده.

**درویش وایي**: چي د پښتنو د علاقو د ملایانو او طالبانو او عوامو په خولو کي دغه تفسیر چي روح البیان ذکر کړی مشهور دی، او بعض محدثین هم تفسیر مذکور تائیدوي والعلم عند الله قوله تعالى الا لنعلم آه.

**پوه سه**: چي ددې آیت څخه خو ظاهراً دا معلومېږي چي علم د خدای ﷻ پر دغو دوو طائفو وروسته تر تحویل القبله حاصل سو، مع ان علمه تعالى قدیم فکیف یکون غایة لتحویل القبلة.

**ځواب**: علم معاني وایي چي لام دلته د تعلیل دی لبیان الغایة نه دی، او صیغه د مضارع یعني "لنعلم" په معنا د ماضي ده کما في قوله تعالى فلم تقتلون انبیاء الله لان المعنى هناک فلم قتلتم آه لان قتل الانبیاء وقع من الیهود في الزمان الماضي لا في الزمان الحاضر ولا في المستقبل فالمعنى آه الا لما علمنا من یتبع الرسول ممن ینقلب على عقبیه، یعني له دې سببه موږ تحویل د قبلې وکړی چي موږ د مخه خبروو چي تحویل د قبلې به سبب د هدایت د یو قوم وګرځي او سبب د ضلالت د بل قوم، نو دا خپل علم ازلي مو خلګو ته هم وروښووی.

**دوهم ځواب**: مراد له علمه څخه تمیز دی یعني جلا کول علاقه ددې مجاز داده چي علم سبب د تمیز دی نو ذکر سبب دی مراد ځندي مسبب دی کما في قولهم "رعینا الغیث" ای النبات الحاصل بالغیث، نو معنا د آیت داده الا لنمیز بین المحق والمبطل في امر القبلة.

**دریم ځواب**: اصل مراد دا دی لیعلم رسولنا واولیائنا بیا یې مضاف حذف کړی، او خدای ﷻ فعل د رسول او د اولیاؤ وځان ته مسند کړي

لکه په یو حدیث طویل کې چې راغلي دي چې خدای ﷻ په اخرت کې یو
چا ته وایي مرضت فلم تعدني! یعني زه ناجوړی سوم ته پوښتني ته رانه
غلې، مظهري ؒ وایي چې په دې ټولو تاویلو کې خو قول بالمجاز دی

**درویش وایي**: چې قول بالمجاز په قرآن مبارک کې کومه نوې خبره نه
ده چې مظهري دي تضعیف د اقوالو د محققینو په وکړي بلکه که څوک
څېړنه د قرآن مبارک وکړي هر نوعه مجاز به پکښې وموميٍ البته قول
بالمجاز په قرآن مبارک کې به د ضرورت له کبله څوک کوي.

**درویش وایي**: چې خالي د تکلفاتو او بېله ارتکابه د هیڅ قسم مجاز
څواب د اشکال مذکوره دادی چې خدای ﷻ لره یو علم ازلي سته پر ټولو
مخلوقاتو ذره ذره في ازمنة وجوده فیما لا یزال وکذالک له تعالی علماً
ازلیاً باعمال جیمع المکلفین کفراً وایماناً وطاعةً وعصیاناً في ازمنة وجود
تلک الاعمال من المکلفین، وهذا العلم لیس مناطاً للثواب والعقاب والجنة
والنار ولم یکن هذا العلم حجة عن الکفار والعصات والا لا یثبت
الاحتیاج الی ارسال الرسل وانزال الکتب والیه اشار الله عز وجل بقوله
"لئلایکون للناس حجة بعد الرسل" وهذا العلم هو الذي یسمیه اهل
المعقول علماً اجمالیاً له تعالی لا بمعنی انه لا یمیز له تعالی فی هذا العلم
الاشیاء والاعمال بتفاصیلها في ازمنة وجودها بل لان الموجود في الازل
هو ذاته تعالی وتقدس فقط، کما ورد کان الله ولم یکن شیئاً وعلماً ثانیاً
بالاشیاء کلها والاعمال جمیعاً في ازمنة وجودها وهذا العلم مطابق للعلم
الازلي، والفرق ان العلم الازلي لم یکن مقیداً بوجود الاشیاء لعدم وجود
الاشیاء في ازل الازال، والعلم الثاني مقید بازمنة وجودها شیئاً فشیئاً
تدریجاً، وهذا العلم هو المناط للثواب والعقاب ومثبتاً للحجة علی العباد
یوم القیامة، وهذا العلم هو الذي یسمیه اهل المعقول علماً تفصیلاً لا
بمعنی ان في هذا العلم انکشافاً زائداً وتمیزاً تا ماً للاشیاء علی ما في

العلم الازلي بل بمعنى ان العلم الازلي لـم يكـن بـان الاشياء موجـودة بالفعل لعدم كونها موجودة وقتئذ بل انها سيوجد في ازمنتها تدريجاً ووقتاً فوقتاً، والعلم الثاني متعلقة بها بانها موجودة كل في وقته فعلى هـذا علمه تعالى الازلي متعلق بتحويل القبلة من بيت المقدس الى الكعبة المكرمة فيما لايزال يعني وقت وجود التحويل وهو تعالى عالـم بالعلم الازلي بـان بعض الناس ينكرون التحويل المذكور وقت وجوده وبعضهم يومنـون بـه و وحينئذ، فلهذا قال الله تعالى الا لنعلم آه اى ليتعلق علمنا بوجـوده وهـذا حاصل الجواب الذي اورده الامام ابو منصور الماتريـدي رحمه الله بالاجمـال وفصلناه تفصيلاً، وقال المظهري رحمه الله ان هذا الجواب هـو التحقيـق والى هذا الجواب اشار البروسوي في روح البيان بقولـه معنـى لـنعلم آه ليظهـر علمنا على مظاهر الرسول والمؤمنين ويتميز عندهم الثابت علـى الاسـلام الصادق فيه من المتردد الذي يرتد بادنى سبب لضعف ايمانه لا انه تعالى لـم يعلم وانهم في الازل بانه يكون كذا فيما لا يزال عند وجود التحويـل ووجود المومنين به والكافر المرتدين، منه، وهذا هو المعنى الذي اختاره القاشـاني رحمه الله وزيـف ماعـداه مـن الاجوبـة، والى هـذا الجـواب اشـار المحقق البيضاوي بقوله ولنعلم الآن من يتبع الرسول ممن لا يتبعه ثم قال البيضاوي بعد ايراد السوال المذكور، قلت ظهور باعتبار هذا العلم التعلق الحالي الذي هو مناط الجزاء، والمعنى ليتعلق علمنا به موجوداً آه.

**درويش وايي:** چي دا وو تحقيق ددې آيت متلوه سره د نقصان د علم د درويش والتوفيق من الله والعلم عند الله.

**سوال:** ستا د تفسير وضع خو په پښتو ژبه ده، ددې آيت په تحقيـق کي دي اکثر عربي عبارات اختيار کړي دي څه باعث و ؟

**ځواب:** که درويش ددغـو عربي عباراتو فقط پښتو ترجمه راوړې وای که څه هم ماخذ ته يې حوله هم کړې وايي، نو بعض حاسدانو به ويلای

چي عبیدالله خدای خبر چي د هغو عباراتو په معنا پوه سوی دی او که یې صرف له خیاله څخه خپل یې دا تحقیق کړی دی او حواله یې مذکوره کتابو ته ورکړه او په هغه کتابو دی نه دی پوه سوی.

**درویش وایي**:- چي معلوم الحال حاسدان ژما تخمیناً معلوم دي د بعضو حسد پر قومیت مبني دی، او د بعضو حسد د حزبیت پر بناء دی، او د بعضو دا د علمیت پر اساس دی، او تولو ملایان چي د تبلیغ پر منبر کښېني او کبائر ګنهونه خلګو ته بیانوي نو په تعداد د هغو غیبت او حسد او بهتان په ډېر شد او مد سره بیانوي، او سره ددې چي دغه دري کبائر ګنهونه په دوئ کي هرو روزه موجود وي، چو کفر از کعبه بر خیزد کجا ماند مسلماني، حافظ شیرازي میګوید

واعظان کین جلوه در محراب ومنبر میکنند
چون بخلوت میروند کار دیګر میکنند

**حکایت**: یو عالم د یو چا غیبت کاوه، یو امي سړي ورته وویل چي څه یې کوې غیبت پرېږده، ملا صاحب ورته وویل چي زه خو یې غیبت نه کوم بلکه دده حال وتاسي ته بیانوم، درویش وایي عذر از ګناه بدتر، قوله تعالی

مِمَّنْ يَّنْقَلِبُ عَلٰى عَقِبَيْهِ ؕ

د هغه چا څخه یې وپېژني چي بیرته پر شا ګرځي.

**پوه سه**: چي عقب پنډۍ ته وایي او پر پندو ګرځېدل کنایه د ارتداد څخه ده یعني چي دین اسلام پرېږدئ کما ورد في الحدیث الصحیح چي څه وخت چي قبله د بیت المقدس څخه و کعبې ته وا وښته بعض مسلمانان د اسلام څخه یهودیت ته واوښتل، او دوئ ته ویل رجع محمد الی دین آبائه.

وَاِنْ كَانَتْ لَكَبِيْرَةً اِلَّا عَلَى الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ ؕ

**پوه سه**: چي ان مخفف د مثقل څخه دی نو اصل یې "وانها" او ضمیر موئث راجع دی و "قبلة محولة" ته اویا د تحویل موئث ته چي تحویل دی راجع دی.

**پوه سه**: چي نحات وايي چي لام په لکبيرة کی فرق دی په منځ کي د ان الشرطية او ان مخفف د مثقله څخه. يعني که لام نه وای نو بـه ان شرطيه وايي، او کوفيان نحات وايي چي ان نافيـه دی او لام لکبيرة پـه معنی د الا دی، والتقدير چي نه ده قبله محوله مگر درنـه يعني پر خلگو الا آه او نـه ده درنـه پر هغـو کسـانو چي خدای ﷻ هدايت ورتـه کړی وي، يعني حکمت ته د احکامو الهيـه وو، يعني پـه دې پوهېږي او پر دې يې ايمان وي چي هر حکم چي حکيم مطلق وکړي هغـه د حکمت څخـه خالي نـه وي کـه څه هم پـه هغـه حکمت دوئ بخصوصـها نـه پوهېږي، نو نېـک بختـه سړی هغه دی چي دخپل حکيم بادار اطاعت وکړي، او بد بختـه د دنيا و آخرت هغه دی چي د عليم حکيم رب العزت د حکم څخه انکار وکړي.

## وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيْعَ اِيْمَانَكُمْ

او نه دی خدای ﷻ چي ضائع دي کړي ستاسي ايمـان او "ثباتکم علی الايمـان، او بعـض مفسـرين رح وايـي چـي مـراد ددې ايمـان دي پر قبلـه منسوخه چي بيت المقدس وه يعني هغه وخت چي تاسي ايمان در لـودی پر قبله منسوخه باندي هغـه ايمان ستاسي پـه نسخ سره د قبلـه مذکوره ضائع او بې فائده نـه دی گرځېدلی ولي هغـه ايمان ستاسي خو هم پـه امر د خدای ﷻ وو نو ايمان پر هغه او توجه دهغې قبلې ته ثواب يې پر ځای دی، او بعض مفسرين وايي چي مراد له ايمان څخه لمونځ دی من قبيـل ذکر الشرط وارادة المشروط ولي چي پـه حديث شريف کي راغلي دي چي قبلـه د بيت المقدس څخـه وکعبې شريفې تـه منسوخه سوله نـو حيی بن اخطب او نور يهود هم ورسره وه، مسـلمانانو تـه يې ويل چي تاسي چي لمونځونه وبيت المقدس تـه کول د هغو لمونځو پـه باره کي څه واياست کـه هغـه بناء پر هدايت وه نو اوس خو تاسي هدايت پرېښوی، نو بايد دا اوس لمونخونه چي کعبې ته کوئ دا ضلالت دی، او که چېري دا لمونځونه ضلالت وه، نو تاسي

خو څورلس پنځلس میاشتي په دغه ضلالت کي تېري کړې؟

مسلمانانو په خواب کي ورته وویل چي د هدایت خو لار هغه ده چي خدای ﷻ امر په کړی وي، نو په هغه وخت کي چي لمونځونه د بیت المقدس لوري ته کېدل چونکه په امر د خدای ﷻ وه، نو هغه هدایت و، او اوس چي هغه قبله خدای ﷻ منسوخه کړه او مونږ یې په لمانځه کي وجهت ته د کعبې مبارکې امر کړو اوس بیا دا هدایت دی.

او بیا حیی ابن اخطب او ملګرو مسلمانانو ته وویل چي دمخه تر تحویل د قبلې ستاسي بعض مسلمانان لکه اسعد بن زاره د بني النجار او براء بن معروده بني سلمه او نور ډېر کسان هم مړه سوي دي نو د هغو په باره کي تاسي څه شاهدي ورکوئ، نو بعض قبائل چي د هغو مړو عزیزان وه وعلیه الصلوة والسلام ته ورغله او ورته وه یې ویل یارسول الله ستا مخ خو په لمانځه کي خدای ﷻ وقبله ابراهیمي ته واړاوه، نو هغه زمونږ وړونه چي دوئ مړه سوه او لمونځونه یې بیت المقدس ته کوله د هغو د لمونځو به څه حال وي؟ فانزل الله تعالی "وماکان الله لیضیع ایمانکم" یعني صلاتکم کذا فسره کثیر من المحدثین رح، وروي البخاري هذا الحدیث مختصراً عن البراء بن عاذب ﷺ.

إِنَّ اللَّهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿١٤٣﴾

په تحقیق خدای ﷻ پر خلګو مهربان او رحم کونکی دی.

**پوه سه:** چي رحمت انعام او احسان ته وایي، او رافت شفقت او لطف ته وایي، نو رتبه د رافت تر مرتبې د رحمت مقدمه ده نو ځکه په هر ځای کي د قرآن کریم رافت تر رحمت دمخه ذکر کوي، او څوک چي وایي چي رافت شدت رحمت دی فقد غلط، فتدبر.

**حکایت:** په زمانه کي د داوُد ﷺ یو امیر د کافرانو چي ډېر ظالم او قاتل و ګرفتاره سو، نو داوُد ﷺ امر وکړی چي د غره پر سر یې د دار په لرګي پوري

کلک وترېٔ یعني د شپې چي تر سهاره به مړ سي، او عسکرو د داؤد ﷺ هم دغسه وکړه او خلګ خپلو کورو ته ولاړه. نو دې کافر مشرک د دار پر لرګي خپلو بتانو ته ډېري چغاري بغاري وکړې لکن هیڅ فائده یې ونه کړه، اخر یې رجوع وخدای ﷻ ته وکړه او وه یې ویل چي ستا پر د ښمنی او شرک ماته دا موضوع راپښه سوه، اوس زه له شرکه بېزاره یم او تا واحد لا شریک منم نو ته رحم راباندي وکړې او فریاد مي واورې، نو جبرائیل ﷺ ته ارحم الراحمین ﷻ امر وکړی چي دغه سړی له داره ځخه خلاص کړه او صحیح سالم یې پر مځکه کښېږده، جبرائیل ﷺ هم سړی صحیح سلامت پر مځکه ایله کړی، سهار خلګو ولیدی چي هغه سړی لمونځ کوي، او داؤد ﷺ ته یې راپور ورورې، داؤد ﷺ هغه سړی راوغوښتی چي حال ځندي وپوښتي، خدای ﷻ وداؤد ﷺ ته وحي وکړې چي چي زه ډېر مهربانه یم پر هغه چا چي ما بولي او پر ما ایمان راوړي، ولي که زه دغسي نه سم نو زما او دده د پخوانیو خدایانو ځه فرق دی

## قَدۡ نَرَىٰ تَقَلُّبَ وَجۡهِكَ فِي ٱلسَّمَآءِۖ

**پوه سه:** چي "قد" چي پر مضارع داخل سي په اصل کي خو لپاره د تقلیل وي، لکن دلته لپاره د تکثیر دی استعارة للفظ الموضع للضد الی الضد الآخر کما تقرر في علم البیان، او لفظ د "نری" مضارع ده لفظاً ماضي ده معناً او تقلب باب د تفعل بمعنی الفعل مرةً بعد اخری، او دا آیت که ځه هم په تلاوت کي وروسته دی، لکن په اتفاق د مفسرینو رح اول د قصې د تحویل دا آیت دی، نو معنی د آیت داده موږ ډېر لیدلي په باربار کتل، او مخ ګرځول ستا په جهت کي د آسمان یعني په انتظار د جبرائیل ﷺ د راتګ.

**فائده:** د علیه السلام په زړه کي دا خوښه وه چي زما توجه په لمانځه کي د کعبې پر خوا سي یو خو په دې سبب چي اقدم د قبلیتنو ده، او بل ادعی وایمان ته د عربو ده، ولي د عربو ټولو مخ پر کعبه مکرمه و، او ددوئ مزار

او مطاف وه، او بل لپاره د مخالفت د یهودیانو ولي دوئ به ویل چې محمد ﷺ زمونږ ددين مخالفت کوي او زمونږ قبلې ته لمونځ کوي که زمونږ قبله نه وای دی به حیران وای چې کومه خوا ته لمونځ وکړم، او د جهت د ادب مع الله ﷻ يې صراحةً په خوله خواست نه کاوه، حتی په یوه حدیث کې راغلي دي چې آنحضرت ﷺ په یو ملاقات کې جبرائیل ﷺ ته داسې وویل "وددت ان صرفني الله عن قبلة اليهود الى غيرها" نو جبرائیل ﷺ ورته وویل چې زه خو هم بنده یم تا غوندي بلکه ته کریم يې پر خدای ﷻ باندي، نو د خدای ﷻ څخه سوال د تحویل وکړه، نو جبرائیل ﷺ ولاړی علیه السلام به هر ګړی د آسمان خوا ته کتل چې ګوندي جبرائیل زما پر ځای خدای ﷻ ته خواست کړی وي، فانزل الله قد نری تقلب وجهک آه.

**فائده:** او که نسخ په امور شرعیه وو کې وروسته تر هجرت نسخ د قبلې د بیت المقدس وه، او چا چې ویلي دي چې اوله نسخه د اسلام په دین کې نسخ د پنځوسو (۵۰) لمونځو وه پنځو ته، لکن هغه خو صحیح ده چې په صحاح سته وو کې ثابته هم ده، لکن زمونږ خبره په هغه نسخ کې ده چې بعد العمل بالمنسوخ منځ ته راسي، او په پنځوسو لمونځو خو عمل نه دی سوی، او هغه خبره چې فتاري ﷫ په تفسیر کې د فاتحه کړې ده چې په مکه مکرمه کې اول حکم دا و "فاینما تولوا فثم وجه الله" وروسته هغه منسوخ سو بالاستقبال الی البیت المقدس او الکعبة کما سیناتي آه د منلو وړ خبره نه ده ولي چې آیت د اینما تولوا آه خو په لمانځه د مسافر نفلي لمونځ هر جهت ته چې وي، او یا په لمانځه فرضي کې چې د خلګو څخه قبله ورکه وي، فافهم تدرک.

**اختلاف العلماء:** پوه سه چې په دې کې د علماوٴ اختلاف دی چې علیه الصلوة والسلام چې په مکه مکرمه کې ولمونځ يې کعبې شریفې ته کاوه او که بیت المقدس ته، ډیر علماء وايي چې چې علیه السلام په مکه شریفه کې لمونځ وبیت المقدس ته کاوه او کعبه شریفه به هم دده مخته

وه یعني مخ دده مبارک به دواړو قبلو ته برابر و. ولهذا اشتبه علی الناس انه یصلی الی الکعبة او بیت المقدس. لکن کان فی الحقیقة یصلی الی البیت المقدس فنسخ تلک القبلة فی المدینة فعلی هذا یکون النسخ مرة واحدة رواه احمد عن ابن عباس ﷺ ورواه ابن سعد ایضاً وهذا قول اکثر العلماء رح. وقال البغوي رحمه الله چي علیه الصلوة والسلام په مکه مکرمه کي لمونځ وکعبې شریفې ته کاوه، چي هجرت یې مدینې منورې ته وکړی خدای ﷻ امر کړی چي لمونځ وبیت المقدس ته کوه تالفاً للیهود فهذا نسخ واحد. دا روایت ابن جریر راوړی دی ثم نسخ استقبال بیت المقدس بالاستقبال الی الکعبة وهذا نسخ آخر فیلزم النسخ مرتین.

**درویش وایي:** چي دا قول که څه هم مشهور بین الناس دی لکن محققین د مفسرینو رح پر قول اول دي للتحاشي عن النسخ مرتین لان النسخ مظان اشتباه الناس واعتراضهم.

**پوه سه:** چي په دې کي هم اختلاف دی چي آنحضرت ﷺ په مدینه منوره کي څو میاشتي لمونځ وبیت المقدس ته کړی دی، په روایت کي د ابي داوٗد د ابن عباس ﷺ څخه اولس میاشتي وای، او طبراني او بزار وایي چي مدت د استقبال و بیت المقدس ته شپاړس میاشتي وې، او بخاري رحمه الله بیا تردید وایي علیه السلام د مکې څخه په ورځ د دوشنبې پر پنځه د ربیع الاول ووتی او مدینې منورې ته په ورځ د دوشنبې په دولس د ربیع الاول ورسېدی، او تحویل د قبلې د بیت المقدس څخه وکعبې ته پر پنځلس د رجب په دوهم کال د هجرت منځ ته راغلی دی دوې میاشتي تر غزاء د بدر دمخه، نو بعض روات هغه کسر د ورځو پوره میاشت فرضوي نو اولس میاشتي زمانه ده د استقبال د بیت المقدس بولي، او بعض راویان کسر ساقطوي نو شپاړس میاشتي کاملي پاتېږي.

**درویش وایي:** چي دواړه کاره په نیز د اهل حساب مروج دي، یعني تکمیل الکسر واسقاطه من البین، او هغه بعض روات چي وایي دیارلس میاشتي وې،

او بعض وايي نولس مياشتي وې، او بعض وايي چي اتلس مياشتي وې، او بعض وايي چي دوې مياشتي وې، او بعض وايي چي دوه کاله وه هغه په اتفاق د مفسرينو ضعيف روايات دي والله اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب.

## فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضٰىهَا ۠ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ؕ

نو مونږ به تاته قدرت درکړو پر هغه قبله چي ته په راضي یې، يعني پر توجه وهغې قبلې ته چي ستا د هغې قبلې استقبال په لمانځه کي خوښ دی، يعني کعبه مکرمه، نو وګرځوه مخ د بيت المقدس څخه وطرفته د مسجد حرام.

**پوه سه**: چي اصل معنا د "نولينک تجعلک واليا لها" او يا يې معنا داده "فلنجعلنک الی جهتها"، يعني ته به مخ ګرځوې په لمانځه کي وجهت ته د هغې قبلې وانما زدنا لفظ الجهة لان التولية لا يشترط فيها عين القبلة بل انما يکفی تولی جهتها کما في البلاد الشرقية او الغربية او الجنوبية او الشمالية عن المسجد الحرام.

**فائده**: معنا د "ول" صرف يعني واړوه مخ له بيت المقدس څخه و مسجد الحرام ته.

**فائده**: حرام معنا محرم فيه القتال او محرم وممنوع عن الظلمة ان تعرضوه.

**فائده**: انما ذکر المسجد الحرام دون الکعبة له دې سببه چي عليه السلام په وخت کي د تحويل په مدينه منوره کي وو والبعيد يکفيه مراعات الجهة دون عين الکعبة لان فيه من الحرج کما لايخفی، وعليه الفتوی علماء المذاهب الاربعة، واما حاضر الکعبة فالواجب عليه استقبال عينها مثلاً

| مصلی | کعبه | مصلی |
|---|---|---|
| لايجوز صلوته | | لايجوز صلوته |

ولې چې ددغو دوو لمونځ کونکو که څه هم مخ وجهت ته د کعبې دی ولکن وعين ته د کعبې نه دی کما لایخفی.

**فائده:** قاضي بيضاوي رحمه الله وايي چې آنحضرت ﷺ د ماسپښين لمونځ په مسجد کې د بني سلمه اداء کاوه او دوه رکعته يې بيت المقدس ته اداء کړي وه چې جبرائيل عليه السلام ورته راغلی چې مخ وکعبې ته واړوه، نو عليه الصلوة والسلام په دغه لمانځه کې مخ واړاوه وکعبې ته فتحول الرجال والنساء صفوفهم فسمي هذا المسجد مسجد القبلتين.

**درویش وایي:** چې علامه جلال الدين سيوطي رحمه الله وايي چې دا تحريف د حديث دی لان قصة بني سلمه لم يکن فيها النبي ﷺ اماماً او نه عليه الصلوة والسلام لمونځ ودوو قبلو ته کړی دی. بلکه تحول د قبلې د سهار د لمانځه په وخت کې سوی دی، او عليه السلام د سهار لمونځ پوره وکعبې ته کړی دی، لکن خبر د تحويل وبني سلمه وو ته هغه وخت ورسېدی چې دوئ د ماسپښين لمونځ دوه رکعته کړی وو، او پيو سړی راغلی وه يې ويل چې په اشهد بالله ما د سهار لمونځ د عليه السلام سره وکعبې ته وکړی، نو د مسجد لمونځ کونکو صفوف سره بدل کړه او مخ يې د کعبې شريفې پر خوا کړی، نو ځکه دغه مسجد په مسجد القبلتين سره شهرت مندلی دی من وقت التحويل الى يومنا هذا والاختلاف بين البيضاوي والسيوطي صرف په دې کې دی چې عليه الصلوة والسلام امام وو په دغه مسجد کې او دوو قبلو ته يې لمونځ وکړی، او که امام بل څوک و هغه امام په سبب د شاهدي د صحابي رضي الله عنه لمونځ و دوو قبلوته وکړی، نو پر هر تقدير حيثيت او نوم د ذي القبلتين خو د بني سلمه د مسجد دی.

**درویش وایي:** چې بخاري او مسلم د ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چې "بينما الناس بقباء في صلوة الصبح اذ جائهم آت فقال ان النبي ﷺ قد انزل عليه القرآن وقد امر ان يستقبل الکعبة فاستقبلوها وکان وجوههم

الی الشام فاستداروا الی الکعبة، ددې حدیث صحیح څخه دا خبره معلومه سوه چي علیه السلام یو لمونځ و دوو قبلو ته نه دی کړی، او بیل دا هم معلومه سوه چي امام د مسجد د بني سلمه وو چي په ذي القبلتین سره شهرت لري آنحضرت ﷺ نه وو.

**پوښتنه**: دمخه عنقریب تېره سوه چي خبر رسونکي خبره د تحویل د قبلې وبني سلمه وو ته د ماسپښین په لمانځه کي ورساوه او په حدیث کي د شیخینو راغله چي مخبر خبر د تحویل د مسجد قباء خلګو ته د سهار په وخت کي ورساوه، نو ددې دوو حدیثو تر منځ تعارض نسته که څرنګه؟

**ځواب**: هیڅ تعارض نسته ولې چي د بني سلمه کلی خو د مدینې منورې څخه ګوښه دی او قباء خو ومسجد نبوي ته ډېر نژدې دی تخمیناً درې میله دی، نو څکه خبر رسونکی د بني سلمه وو جلا سړی و، او ماسپښین یې خبر وررساوه، او خبر رسونکی د قباء بل سړی و نو یې د سهار په لمانځه کي خبر ورساوه.

**سوال**: مخبر د قباء چي د سهار لمونځ د علیه الصلوة والسلام سره په مسجد نبوي کي اداء کړی او بیا قباء ته راغلی نو څرنګه اهل قباء تر هغو پورې د سهار په لمانځه کي وه؟

**ځواب**: چونکه علیه الصلوة والسلام د سهار لمونځ ډېر وختي کاوه نو څه بعیده نه ده چي هغه مخبر د قباء دي په ډېره چټکۍ سره لېاره د زېرې په تحویل د قبلې وکعبې ته راغلی وي او اهل قباء چي لمونځ د سهار غالباً څه ناوخته کاوه؛ نو مخبر چي راغلی دوئ په لمانځه کي وه او خبر یې ورکړی.

**پوښتنه**: دا دوې قصې که دواړې صحیح وي یعني واقعه د بني سلمه وو ودوو قبلو ته، او واقعه د اهل قباء وو دوو قبلو ته، نو ولې مسجد بني مسلمه دمخه تر دې واقعې د هغه قوم په نامه یادېدی دا واقعه چي پېښه سوه هغو تبرکاً خپل پر مسجد د ذي القبلتین نوم کېښېنود تا چي د

تاريخ په پاڼو ددي مسجد دغه مبارک نوم او دې واقعې ته اشارة پاتـه او ثبت وي، او د مسجد قباء اول باني آنحضرت ﷺ لانـه ورد فـي الاحاديث الصحيحة انه صلى الله عليه وسلم لما هاجر من مكة نزل قبل د خول المدينة في قباء وامر ببناء المسجد هناک فبنى ذالک المسجد في (۱۴) يوم تخميناً وسماه النبي ﷺ بمسجد قباء ثم ذهب النبي ﷺ الى المدينة المنورة الى اخر الحديث، فلهذا لم يتبدلوا اسمه الشريف.

**فائده**: مظهري رحمه الله لکه بيضاوي رحمه الله ودې ته کلک ولاړ دی چي تحويل د قبلې په مسجد کې د بني مسلمه او هغه هم د ماسپښين لمونځ په منځ کې راغلی دی، حيث قال المظهري في المواهب وسبيل الرشاد، انه صلى الله عليه وسلم لما زار ام بشر بن براء بن معرور في بني سلمه يعني بعد ما مات براء فضعت له طعاماً وحانت الظهر فصلى رسول الله ﷺ باصحابه في مسجد هناک الظهر فلما صلى رکعتين نزل جبرائيل فاشار اليه ان صل الى البيت فاستدار الى الکعبة واستقبل الميزاب فتحول النساء مکان الرجال والرجال مکان النساء فسمى ذالک المسجد مسجد القبلتين، او مظهري دا هم وايي قال الواحدي وهذا عندنا اثبت يعني فصلى النبى ﷺ صلوة الظهر رکعتين الى بيت المقدس ورکعتين الى الکعبة.

**درويش وايي**: چي نه بيضاوي د جلال الدين سيوطي درجه لري لان السيوطي رحمه الله اعلم بالحديث النبوي ﷺ من البيضاوي رحمه الله کما لا يخفى على الواقف على التاريخ لعلماء الاسلام، او نه مواهب او سبيل الرشاد د بخاري او مسلم درجه لري، قال الامام النواوي في مقدمة شرحه على صحيح مسلم قد اتفقت الامة على ان اصح الکتب بعد کتاب الله الصحيحان للبخاري ومسلم، انتهى.

**درويش وايي**: چي مظهري وصحيح البخاري ته حواله کړې ده په روايت د براء بن عازب چي انه صلى الله عليه وسلم صلى اول صلوة صلاها الى الکعبة صلوة العصر آه.

**درويش وايي**: چي دا حديث خو د بخاري له دمخه حديث څخه چي درويش يې عنقريب نقل وکړی چي اول لمونځ چي اول عليه السلام وکعبې ته وکړی صلوة الصبح و، او د مظهري د هغه روايت څخه هم مخالف دی چي دی وايي چي اول لمونځ وکعبې ته د ماسپښين د لمانځه دوه اخير رکعتونه وه، نو مظهري ﷺ د خپل خوا ځواب داسي ورکړی دی چي براء ﷺ په دې نه وو خبر چي عليه الصلوة والسلام د ماسپښين لمونځ يعني دوه رکعته هم وکعبې ته کړی دی، نو ځکه يې صلوة العصر ذکر کړی، نو موږ په دفع کي د تعارض د دوو حديثو د بخاري هم عيناً دغه خبره کوو چي براء ﷺ نه وو خبر چي تحويل د قبلې د سهار په لمانځه کي سوی دی، مازديگر چي يې عليه السلام وليدی چي ده د مازديگر لمونځ وکعبې ته وکړی نو دده خيال دا سو چي دغه يې اول لمونځ دی چي کعبې ته يې وکړی، نو ځکه يې اول صلوة وکعبې ته صلوة العصر وباله.

**سوال**: براء ﷺ چي عليه السلام وليدی چي د مازديگر لمونځ يې و کعبې ته وکړی نو که دی د سهار او ماسپښين په لمونځو کي حاضر نه وو، نو ده بايد پوښتنه کړې وای چي عليه الصلوة والسلام بل لمونځ هم وکعبې مبارکې ته کړی او که دغه د مازديگر لمونځ يې اول لمونځ دی وکعبې ته، نو به صحابه وو ﷺ ورته ويلي وای چي يا دا اول لمونځ وکعبې ته نه دی، بلکه سهار او ماسپښين يې هم وکعبې ته وکړی؟

**ځواب**: دا سوال خو د مظهري پر تاويل هم وارد دی چي ده وويل چي براء ﷺ د بني سلمه د مسجد په واقعه نه وو خبر موږ وايو نو ولې يې پوښتنه نه کول. تاچي خلگو به دی په واقعه د بني سلمه وو خبر کړی وای

**درويش وايي**: چي دا وو تحقيق د تحويل د قبلې د وخت او د ځای او د علماؤ اختلاف په دې باره کي، نو هر عالم دې په نظر د انصاف بدون الاعتساف وگوري چي کومه رايه به صحيح وي، پر درويش صرف نقل و هغه يې وکړی، البته د دړېش په ناقص عقل به يې يوې خواته ترجيح ورکړې وي، هغه هر عالم ددې حق لري.

وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ شَطْرَهٗ ط

او چېرې او په هر ځای کې یاست تاسې یعنې امت محمد ﷺ نو تاسې اړوئ مخان خپل یعني په وخت کې د لمانځه وجهت ته د مسجد حرام.

**بوه سه**: چې اول خدای ﷻ وعلیه الصلوة والسلام ته امر د توجه وبیت الحرام ته ورکړی لپاره د تعظیم دده، او هغه امر د نبي ﷺ که څه امت ته هم شامل وو لکن بیا یې صراحةً امت نبوي هم مخاطب کړه په توجه و مسجد الحرام ته تاکیداً لامر القبلة.

**فائده**: حیث ماکنتم لپاره د عموم د ټولو اکنافو د مځکې دي، یعني که شرقاً یاست او که غرباً جنوباً یاست او که شمالاً په وخت کې د لمانځه توجه و جهت ته د مسجد الحرام کوئ فانه القبلة الی یوم القیامة لانسخ ولا تبدیل.

وَاِنَّ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ لَيَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ ط وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۴۴﴾

او په تحقیق هغه کسان چې دوئ ته کتاب ورکړه سوی دی یعنې تورات چې هغه یهود دي حتماً پوهېږي چې دغه تحویل د قبلې او توجه وکعبې مبارکې ته حق او ثابت دی له جانبه څخه د رب ددوئ، ولې په تورات کې د نبي آخر الزمان په بیان کې یوه دا خبره هم وه چې دی به ودوو قبلو ته لمونځ کوي، مگر علماؤ د بني اسرائیلو دا خبره پټه ساتلې وه او ځندي منکره وه له جهته څخه د حسد او خوفاً علی ریاستهم وحباً للدنیا، او نه دی خدای ﷻ غافله او ناخبره د هغه کاروه څخه چې تاسې یې کوئ.

**بوه سه**: چې مخاطب په دې آیت کې مسلمانان او اهل کتاب دواړه دي تغلیبا للمسلمین المخاطبین علی اهل الکتاب الغائبین.

**بوه سه**: چې کارونه د مسلمانانو تسلیم او انقیاد د امر الهی دی او عمل د اهل کتابو انکار دی او تعنت او عناد او حسد دی، نو په دې آیت کې وعده د ثواب د مسلمانانو ته او وعید دی اهل کتابو ته.

وَلَئِنْ اَتَيْتَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ بِكُلِّ اٰيَةٍ مَّا تَبِعُوْا قِبْلَتَكَ ۚ وَمَا اَنْتَ بِتَابِعٍ قِبْلَتَهُمْ ۚ

**پوه سه:** چي لام موطئۀ د قسم دی، يعني قسم دی په خدای ﷻ که ته ای محمد ﷺ راتګ وکړې وهغو کسانو ته چي کتاب ورکړه سوی دی يعني اليهود والنصاری چي کتاب يې تورات او انجيل دی، په هر آيت يعني دليل پر دې باندي چي کعبه قبله د دوئ متابعت نه کوي ستا د قبلې.

**پوه سه:** چي "ماتبعوا" ځواب د هغه قسم مقدر دی او په ځواب کي د شرط هم ولاړ دی، يعني متابعت ستا د قبلې چي کعبه ده نه کول په سبب د اشتباه نه ده چي په حجت سره ازاله وکړي بلکه په سبب د عناد او حسد دی، او دا شی په حجت ويلو ددوئ له زړو ځخه نه وځي، او نه هم ته تابع کېدای سې ددوئ د قبلې ولي چي امر د قبلې د کعبې متسحکم دی لا ينسخ ابداً په دې آيت کي قطع ددوئ ده طمعي ده چي ګوندي عليه السلام به بېرته زموږ قبلې ته راوګرځي.

**سوال:** قبله د يهودو او نصاری وو خو سره جلا ده، ولي چي يهود وبيت المقدس ته لمونځ کوي چي هغه د مدينې منورې ځخه غربي ده، او نصری لمر خاته ته لمونځ کوي، نو ځرنګه د دواړو لپاره د "قبلتهم" په لفظ د مفرد ووېل سو؟

**ځواب:** هو! چونکه دا دواړي سره يو وې په اعتبار د بطلان او منسوخيت نو ځکه يې مفرد لفظ ووايه.

وَمَا بَعْضُهُمْ بِتَابِعٍ قِبْلَةَ بَعْضٍ ۚ

او نه سي کېدای بعض اهل کتاب تابع د نورو اهل کتابو په قبله کي لمامر آنفاً

**پوه سه:** چي حکم د عدم متابعت د قبلې زموږ په اعتبار د اعم اغلب د اهل کتابو دی ورنه عبدالله بن سلام واضرابه د يهودو د مدينې او نصاری وو د نجران خو متابعت د عليه السلام وکړی په امر د قبلې د کعبې مبارکې.

وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَآءَهُمْ مِّنْ بَعْدِ مَا جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ إِنَّكَ إِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۴۵﴾

او كه چېرې ته متابعت وكړې د خواهشاتو زائغه وو د دوئ يعني اهل كتاب چې دوئ وايي ته بيرته زموږ قبلې ته مخ كړه حتى بعض يهوديانو به ويل كه چېرې ده يعني عليه السلام زموږ له قبلې څخه روه گرداني نه واى كړې نو موږ به ويلاى چې دى هغه نبي موعود في التواة دى په دې خبره كې غرض ددوئ دا وو چې گوندي عليه السلام موږ خطاباسو او بېرته زموږ وقبلې ته مخ راواړوي، نو څكه خداى ﷻ عليه الصلوة والسلام مخاطب كړى "او لئن اتبعت آه" خطاب يې ورته وكړى كه ته بالفرض والمحال دغسي وكړې وروسته تر دې چې تاته علم له جانبه څخه د خداى ﷻ په وحي سره راغلى چې مفيد د حق اليقين دى په باره كې د قبلې د كعبې نو ته به له ډلې څخه د ظالمانو وگرځې.

**فائده**: عقلاً او نقلاً صدق د قضيه شرطيه صدق د مقدم او تالي نه غواړي بلكه بناء د صدق د شرطيه پر علاقه بين المقدم والتالي دى اما نقلاً فلقوله تعالى "قل ان للرحمن ولد فانا اول العبدين" واما عقلاً فلقول اهل المعقول ان كان زيد حماراً كان ناحقاً.

**پوښتنه**: په علم نحو كې وايي چې كلمه د "انْ" پر امور محتمله و داخلېږي، آيا د ايت احتمال د متابعت د رسول الله ﷺ د اهل كتابو قبلې لره هم سته او كه څرنگه؟

**ځواب**: امور محتمله عام دي كه يې احتمال په واقع كې وي لكه ان دخلت دار فانت طالق، او كه يې احتمال صرف فرضي وي كما في المثالين المذكورين النقلي والعقلي، وما نحن فيه يعني احتمال د متابعت د رسول الله ﷺ قبلې لره د اهل كتابو صرف فرضي دى.

**پوښتنه**: په كومه قرينه موږ دا ويلاى سو چې دلته احتمال صرف فرضي دى؟

**ځواب**: په قرينه د هغه آيت چي خداى ﷻ اخبار وكړی "وما انت بتابع قبلتهم"، ولي چي خلاف د اخبار الهي څخه چونكه مستلزم كذب لره د اخبار الهي دی، نو وقوع يې محاله ده، كما تقرر في كتب العقائد.

**پوښتنه**: وقوع د متابعت د عليه الصلوة والسلام قبلې لره د اهل كتابو محال هم وه او خداى ﷻ د مخه هم اخبار د عدم كړی وو. نو څرنګه په دې شرطيه قضيه كي يعني "ولئن آه" مخاطب يې عليه السلام وګرځاوه؟

**ځواب**: لپاره د تشديد پر امت او مسلمانانو باندي چي تاسي بايد متابعت د قبلې د اهل كتابو ونه كړئ، ولي سيد البشر ﷺ په صورت كي متابعت خداى ﷻ داسي خطاب ورته وكړی "انك اذاً لمن الظالمين" نو دا تهديد عظيم دی د امتيانو لپاره په متابعت كي د قبلې د اهل كتابو

**فائده**: خداى ﷻ په ډېرو انواعو سره د مبالغې دا متابعت ممنوع وګرځاوه.

(۱) دا شرطيه قضيه موكده په قسم مقدر سره چي لام موطئه د قسم دلالت پر كوي مصدر وګرځول.

(۲) مخاطب يې عليه السلام وګرځاوه چي هغه حبيب الله وو او عبد معصوم د ټولو معاصي څخه وو فغيره، اولى واحري بالتهديد.

(۳) تفصيل بعد الاجمال في قوله تعالى بعد ماجائك من العلم.

(۴) تعظيم د علم نبوي ﷺ لكونه معرفاً باللام.

(۵) جزاء د شرط مذكور يې په ان الموكده سره راوړه يعني انك اذاً آه

(۶) او په خبر د هغي جملې د جزاء يې لام موكده راوړی يعني لمن

(۷) جمله اسميه يې راوړه (۸) كلمه د من تبعيضيه يې راوړه يعني من الظالمين، ولي چي علماء د معاني و وايي چي زيد من العلماء ابلغ دی تر زيد عالم، ولي چي په اول صورت كي د عوی د علم د زيد سره د دليل د راجع في ذلك علم المعاني.

(۹) ظالمين يې معرفه راوړه المستلزم نسبته الظالم العظيم اليه لانهم قالوا ان المطلق يحمل على الفرد الكامل.

**درویش وایي**: چي ددې مبالغاتو بیان قاضي بیضاوي کړی دی وتبعه المظهري وزاد علیه بعض وجوه المبالغة.

**فائده**: دا شرطیه چي موږ یې تفصیل وکړی د عصمت سره د سید البشر ﷺ منافات لري کما علمت من التفصیل المذکور باحسن وجه والله الموفق.

**یادګار**: دا تفصیل په وخت کي د صبح صادق په ورځي د عید الفطر وکړه سو یوم یکشنبه پنځه نیمي بجې (۱۴۲۵ هجري قمري)

اللهم اغفرلي ذنوبي کلها واغفر لوالدي بحرمة الشهر المبارک الذي انتهی صیامه وقیامه وبحرمة یوم عید الفطر یوم نزول الرحمة العامة من الرحمن الرحیم، علی عباده المؤمنین وانصر الاسلام والمسلمین وکبت وذلل اعداء الدین واطرد الامریکین المتغلبین علی ممالک المسلمین بحولک وقدرتک یا ارحم الراحمین آمین.

**اَلَّذِیۡنَ اٰتَیۡنٰهُمُ الۡکِتٰبَ یَعۡرِفُوۡنَهٗ کَمَا یَعۡرِفُوۡنَ اَبۡنَآءَهُمۡ**

هغه کسان چي موږ ورکړی دی ودوئ ته کتاب چي تورات او انجیل دي یعني ملایان ددوئ پیژني رسول کریم ﷺ لکه چي دوئ پیژني خپل زامن یعني چي نبي موعود چي په توارت او انجیل کي یې بیان راغلی دی، همدغه محمد ﷺ دی.

**پوه سه**: چي ضمیر منصوب د "یعرفونه" و علیه الصلوة والسلام ته راجع دی وهو الاظهر.

**سوال**: د علیه الصلوة والسلام ذکر خو د مخه نه دی راغلی؟

**ځواب**: چونکه ټوله سابق آیتونه په باره کي د نبوت د علیه الصلوة والسلام وه نو مذکور حکماً دي، او بعض مفسران رح وایي چي ضمیر مذکور وقرآن ته راجع دی، او بعض مفسران وایي چي ضمیر تحویل القبله ته راجع دی.

**درويش وايي**: چي تشبيه د معرفت سره ده انبناء هم ددې دوو تفسيرو سره ډېره بعيده او مناسب نه ده.

**پوښتنه**: تخصيص د ابناء يې ولي وکړه سو نبات خو هم سړی پېژني ؟

**ځواب**: خلګ زامن ډېر پېژني تر لوڼو، ولي چي د زامنو ګزاره د پلار سره تر لوڼو ډېره وي، او بل دا چي پر عمومي خلګو زامن تر لوڼو ګران وي، او د پلاره سره زامن په کومک کي ډېر د پلار سره اخته وي تر لوڼو حتی چي خلګ وايي د لور په باره کي چي دا د بل د کور ده کما يدل عليه التجربة.

**سوال**: اقرب تر ټولو شيانو هر سړي ته خپل ځان دی، نو چي داسي ويل سوي وای کما يعرفون انفسهم ابلغ به نه وای؟

**ځواب**: هيڅ سړی خپل ځان نه پېژني تر ډېره وخته پوري يعني زمان غاية الطفولية، او زوئ د هغه وخته څخه چي و زېږي پلار يې پېژني كما لايخفی، لکن سره د هغه ملايان د اهل الکتاب د عليه الصلوة والسلام د نبوت څخه انکار کوي، نو معلومه سوه چي دوئ صرف د تعصب او عناد او حسد له سببه دا انکار کوي.

**پوه سه**: چي عبدالله بن سلام ﷺ چي يو ستر عالم د يهودو و او په اول قدوم کي د عليه الصلوة والسلام پسله څو پوښتنو په اسلام مشرف سو، نو حضرت عمر ﷺ وده ته وويل چي په قرآن کريم کي خو دا آيت نازل دی "الذين اتوا الکتاب يعرفونه کما يعرفونه ابنائهم" نو ستا ددې معرفت په باره کي څه رايه ده؟ عبدالله بن سلام ﷺ ورته وويل ياعمر! لقد عرفته حين رئيته کما اعرف ابني ومعرفتي بمحمد ﷺ اشد من معرفة ابني، فقال عمر ﷺ وکيف ذالک قال اشهد انه رسول الله حقاً وقد نعته الله في کتابنا ولا ادري ماتضع النساء، فقال عمر ﷺ وفقک الله يا ابن سلام فقد صدقت.

**ترجمه**: ای عمر قسم په خدای ﷻ دی چي ما وپېژندی عليه الصلوة والسلام يعني چي نبي آخر الزمان دی هغه وخت چي ما وليدی لکه زه

چي پېژنم خپل زوئ او پېژندل زما په محمد ﷺ یعني چي نبي دی ډېر بالا دی زما د خپل زوئ تر پېژندو، نو عمر ﷛ وویل چي څرنګه پېژندل د علیه الصلوة والسلام تاته اشد تر پېژندلو د زوئ وه، عبدالله بن سلام ﷛ ورته وویل چي زه شاهدي اداء کوم چي دی رسول د خدای ﷻ دی په حقه سره ولي ما لیدلي دده صفتونه او بیان زموږ په کتاب کي یعني په تورات کي چي هغه حتماً صادق دی، او زه نه یم خبر چي ښځي څه کارونه کوي، یعني زه نه یم خبر چي زما زوئ به زما له نطفې څخه وي او که به یې مور زنا کړې وي، نو عمر ﷛ ورته وویل چي خدای ﷻ دي تاته توفیق درکړي ای ابن سلامه په تحقیق ته رشتیا وایې.

**درویش وایي:** چي دا حدیث په صحاح سته وو کي ډېر اورد دی چي عنقریب به په طول سره راوړه سي ان شاء الله تعالی.

وَإِنَّ فَرِيقًا مِّنْهُمْ لَيَكْتُمُونَ الْحَقَّ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿۱۴۶﴾ الْحَقُّ مِن رَّبِّكَ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِينَ ﴿۱۴۷﴾

او په تحقیق سره یوه ډله د اهل کتابو یعني ملایان د دوئ هر آئینه پټوي حق عموماً خصوصاً په باره کي د علیه الصلوة والسلام اود قبلې د کعبې، او دوئ هم په حق پوهېږي، نو انکار د ملایانو ددوئ د جهل سبب نه دی بلکه د حسد او عناد او د حب المال والجاه له سببه دی، وورد في الحدیث الصحیح للجاهل ویل وللعالم سبعین ویل. فلهم سبعون ویل، او حق یعني عموماً و خصوصاً له جانبه څخه د خدای ﷻ دی، نو ته ای محمد ﷺ هرګز مه ګرځه د ډلي د شک کونکو په حق کي.

**پوه سه:** چي په دې نهي کي هم تهدید د امت مقصود دی کمامر تفصیله في بیان "ولئن اتبعت الآیة"

**پوه سه:**- چې دلته مراد په قرينه د مقام د حق څخه نعوت د عليه الصلوة والسلام دی چې په تورات او انجيل کې وه، او بل حال د قبلې د کعبې دی.

**فائده:** د اعراب له لارې ظاهر اعراب دادی چې الحق مبتداء ده او من ربک يې خبر دی، يعني الحق ماثبت من ربک، وهو ماانت عليه يعني لا غير ذالک کالذي عليه اهل الکتاب، او دا احتمال هم مظهري ذکر کړی چې الحق دی خبر د مبتداء محذوف وي، ای هذا الحق. يعني ماثبت من قبل في امر القبلة وغيرها حق دی، او من ربک دي خبر بعد الخبر وي ای کاين من ربک، او يا دي من ربک حال وي د ضمير څخه د الحق ای کائناً من ربک، او يا دي الحق فاعل د فعل مقدر وي، او من ربک متعلق په هغه فعل پورې وي ای جائک الحق من ربک، قال الامام القشيري رحمه الله في حق علماء اهل الکتاب حملهم مستکنات الحسد وسوء الاختيار على المکابرة لماعلموا بالاضطرار.

**درويش وايي:** چې د يهوديانو ملايانو که څه هم ډېر کوشش کاوه چې عليه الصلوة والسلام او دين د اسلام بدنامه کړي او دخلګو په زړو کې نفرت ددې دين الهي څخه پيدا کړي او دا لوئ کاروان د اسلام درهم برهم کړي لکن ددې مثال د سپو دی، د سپي په خوله لوئ درياب او جاري رود نه مرداريږي او کاروان د اسلام به پر مخ روان وي، او سپي به ورته غاپي الى يوم القيامة، وهذا کله لاجل حسد علماء اليهود، وهذه السلسلة جارية للعلماء الحاسدين مع العلماء الروحانيين في کل عصر وزمان فالواجب على العلماء الروحانيين الصبر على ايذاء الحاسدين واغتيابهم وبهتانهم.

**پوه سه:** چې راه رو که د هر سپي سره په مقابله او طرد اخته سي دده سفر به قطعه سي، نو ښه داده چې مسافر او راه رو وخپل سفر ته ادامه ورکړي، سپی او غفا سره پرېږدي، والله متم نوره ولوکره الکافرون وقد تم الله عزوجل نور الاسلام ولوکره کفار الهيود والنصارى.

# وَلِكُلٍّ وِّجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيهَا فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَٰتِ

**پوه سه:** چي تنوين د كل عوض دى د مضاف اليه څخه اى لكل امة من اهل الاديان، او د "وجهة" معنا هغه مكان متوجه اليه دى چي قبله ورته وايي او د هو ضمير راجع دى و كل ته، او د موليها يو مفعول محذوف دى اى هو موليها وجهه يعني في الصلوة يعني دى مخ اړونكى دى هغه جهت ته خپل مخ په لمانځه كي، حاصل دا چي خداى ﷻ هر امت ويوې قبلې ته متوجه كوي حتى جعل لموسى ﷺ قبلة وهى بيت المقدس وليشى؛ قبلة وهي جهة المشرق ولمحمد ﷺ قبلتين بيت المقدس و الكعبة، نو امر د قبلې يو تعبدي كار دى چي په عقل سره يې ادراك د حكمت الهي نه كيږي او نه هم خلكو لره نزاع په امر د قبلې بنايي بل كه پر دوئ امتثال د امر الهي لازم دى وليس لمكان اقتضاء ذاتي لكونه قبلة حتى يخوض الناس في ترجيح جهة على جهة في كونها قبلة، نو تاسي مبادرت كوئ ايهاالناس د خير و كارو ته چي هغه امتثال د امر الهي دى كه امر د استقبال د بيت المقدس وكړي او كه د كعبې وكړي فان الله يحكم مايشاء ويفعل مايريد فان لله حكم غامضة في احكامه وافعاله لا يسئال عما يفعل وهم يسئلون.

**فائده:** موصوف د خيرات محذوف دى اي الفعلات الخيرات او مراد د خيرات څخه يواځي توجه د قبلې نه ده بلكه ټوله د خير كارونه يعني چي د امر الهي سره برابر وي لان العبرة لعموم اللفظ لا لخصوص المورد كما هو الحكم المسلم والمجمع عليه عند جميع المفسرين واهل الحديث والفقهاء رحمهم الله تعالى اجمعين.

**فائده:** صاحب د روح البيان استبقوا متعدي په واسطه د حرف جر محذوف بولي اى الى الخيرات. او بعض مفسرين يې متعدي بنفسه بولي والله اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب.

أَيْنَ مَا تَكُونُوا يَأْتِ بِكُمُ اللَّهُ جَمِيعًا إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿١٤٨﴾

هر چېري چې تاسي ياست، يعني په هر مكان كي چې د خداى ﷻ رضا پكښي وي يعني په استقبال د كعبه مباركي او يا د خداى ﷻ رضا نه وي پكښي لكه استقبال وبيت المقدس ته وروسته تر نسخې راتگ به وكړي خداى ﷻ پس له مرگه ومحشر ته د قيامت لپاره د جزاء او لپاره د جلا كولو د محق او مبطل، نو دا آيت وعده د جنت و اهل طاعت ته ده او وعيد دى د اهل عصيان لپاره د دخول د دوزخ سره، او خداى ﷻ قادر دى پر هر شي چي له هغه جملې څخه احياء او اماتت دى او په يوم الحشر كي جمع كول ستاسي دي لپاره د جزاء، او بعض مفسران وايي چې معنا د آيت داده چي هر چېري چې ياست يعني كه شرقاً او كه غرباً او كه جنوباً يا شملاً ياست او لمونځ وكعبې ته كوئ، راتگ يې وكړى خداى ﷻ ستاسي په لمونځو سره، سره له اختلافه د جهاتو جميعاً يعني متحد الجهة يعني په حكم كي د يوه لمانځه لان الاعتبار لجهة الكعبة لا للشرق والغرب مثلاً، نو پر دې تفسير جميعاً حال دى د ضمير څخه د كم والمعنى مجتمعين في الجهة او اتيان بكم مجاز دى عن جعل صلاتكم متحدة في الجهة، او مظهري يې داسي تفسير هم كړى دى چې هر مسلمان لره قبله سته چي هغه جهت د كعبې دى كه چېري ورمعلومه وه نو خود به مخ په لمانځه كي هغه لوري ته كوئ، او كه قبله خندي وركه وه نو جهت د تحري دده قبله ده، او كه يي نفل كول تر ښار دباندي پر دابه باندي، نو قبله دده جهت د استقبال الدابة ده، نو حاصل دادى چي لمونځ په سبب د اشتباه القبلة تر وخت نه خطاء وئ.

**درویش وایي**: چې دا حکمونه خو تړوله صحیح او د فقه سره برابر دي لکن درویش نه پوهېږي چې سلیسه ترجمه د آیت به سرې خرنګه کوي چې دامذکوره احکام به تړوله پکښې وي، فتامل لعل الله یحدث بعد ذالک امراً

**وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۖ وَإِنَّهُ لَلْحَقُّ مِن رَّبِّكَ ۗ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ⁽¹⁴⁹⁾**

او ده هر ځای چې ته ووځې یعني سفر ته نو اړوه خپل مخ یعني په لمانځه کې ولوري ته د مسجد الحرام او په تحقیق دا امر د توجه و مسجد الحرام ته لازماً حق دی، له جانبه څخه د رب ستا او نه دی غافل یعني بې خبره خدای ﷻ له هغه کارو څخه چې تاسې یې کوئ عموماً وخصوصاً.

**پوه سه**: چې دا آیت لپاره ددې دی چې حکم د لمانځه د کور او د سفر سره برابر دی په توجه کې و جهت ته د مسجد الحرام، په حدیث صحیح کې چې روایت یې حذیفه بن الیمان رضی الله عنه کړی دی علیه الصلوة والسلام وایي چې موږ ته یعني امت محمدیه ﷺ ته خدای ﷻ فضیلت راکړی دي پر نورو خلګو په درې شیه کې، یو دادی چې صفونه زموږ یعني په لمانځه کې لکه صفونه د ملکو ګرځولي دي یعني په تسویه کې او بل دا چې موږ لره یې تړوله مځکه مسجد ګرځولې ده، یعني چې هر ځای د لمانځه وخت راسي هغه ځای زموږ لپاره د لمانځه ځای دی، مطلب لکه چې په مسجد کې د وطن او حضر چې موږ لمونځ وجهت ته د بیت الحرام کوو په سفر کې هم لازماً به موږ جهت ته د مسجد الحرام لمونځونه کوو.

**درویش وایي**: چې په دغه تفصیل دا حدیث د آیت مبارکه سره برابرېږي، او بل دا چې موږ لره خاورې د مځکې پاکې ګرځولې د حدث اصغر او اکبر څخه چې موږ اوبه نه کړو پیدا، ددې حدیث څخه معلومه سوه چې حکم د

تیمم پر امم سابقه وو نه وو، او دغه رنګه معلومه سوه چې لمونځونه د نورو امتو بیله خپلو کلیساوو او معابدو نه وه روا یعني چې امکان به یې و، او موږ که څه هم امکان د مسجد د رسیدګي هم وي لمونځونه بل ځای هم روا دي که څه هم مسجد ته ځان رسول افضل دی او بل دا هم معلومه سوه چې لمونځ د نورو امتو په صف بندي سره نه وو، رواه مسلم بطوله

**فائده**: حکم د سفر قریب او بعید سره برابر دی ویحتمل چې ده خروج څخه دي وتل د کلي او بانډو څخه وي که څه هم سفر مصطلح نه وي.

**فائده**: که څه هم مخاطب په آیت کي خو علیه الصلوة والسلام دی اما د امت لپاره هم داغه حکم دی.

**فائده**: په دې کلماتو کي وماالله بغافل آه وعده ورکوي خدای ﷻ چې تاسي ته به ستاسي پر اعمالو حسنه وو احسن الجزاء خدای ﷻ درکوي

**فائده نحویه**: "حیث" ظرف مکان دی او لازمة الاضافة دی وجملې ته غالبا. ولې چې وضع د حیث لپاره د هغه مکان د هغه ځای د حدث وي چې جمله متضمن هغه حدث لره وي، نو بعض مفسران ح وایي چې من حیث متعلق دی له "ول" پوري او ما بعد فا عمل په ماقبل کي کولای سي لکن دا تفسیر خفاجي رد کړی دی په دې سره چې تقدیر د کلام خو داسي ګرځي فول ومن حیث ولا معنی لاجتماع الواو والفاء، نو صحیح وجه داده چې من حیث متعلق په فعل مقدر پوري دی یعني افعل ما امرت به من حیث خرجت وقوله فول عطف پر هغه مقدر دی

وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۚ وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ

**درویش وایي**: چې ترجمه د آیت خو ظاهره ده لکې بعض ناپوهان به توهم ددې کوي چې په تکرار کي ددې آیت څه فائده ده؟

**ځواب**: دادی چي قبله توجه لره په ټولو امتو کي لوي شان دي کما لایخفی، او نسخ ځای د فتنې ده او د شبهي ده. ځکه بعض مسلمانان ددې نسخ له کبله کافران سوه، نو بایډ ددې نسخ د قبلې چي اوله نسخ وروسته تر هجرت د مرة بعد اخری تکرار سي هذا ماذکر روح البیان. او قاضي بیضاوي وایي وتبعه المظهري ﷺ چي دلیل د تکرار ددې آیت دادی چي علتونه ددې نسخ د قبلې درې وه، اول تعظیم د رسول کریم ﷺ چي خدای ﷻ دده مرضات پر ځای کړي چي توجه وکعبې ته وه کما یدل علیه قوله قد نری تقلب وجهک في السماء فلنولینک قبله ترضاها فول وجهک آه، دوهم خبره داده چي عادت الهي پر دې باندي دی چي هر اهل ملت او شریعت مخ به په لمانځه کي وجلا قبلې ته اړوي کما یدل علیه قوله تعالی "ولکل وجهة هو مولیها" چي تفسیر او تفصیل یې تاسي واورېدی او دریم دفع د دلائلو د مخالفینو ده لکه په دې وروسته آیت کي چي به راسي، نو خدای ﷻ پاک جوت کړی د هر علت سره خپل معلول لکه عقلاء چي د هر دلیل سره مدعي جوت راوړي یا دمخه او یا وروسته تاچي مدعي په تکرار سره د مخاطبینو او سامعانو په زړه کي ښه قرار ونسي، لکن په قرآن مبارک کي یې په اولو دوو ځایو کي علت تر معلول دمخه راوړي دي، او په اخر کي معلول تر علت دمخه راوړی کماسیئاتي

لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ ۙ إِلَّا الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْهُمْ

علة للقول السابق فولوا وجوهکم آه، یعني اړول ستاسي د مخانو مې کعبې ته وکړه له دې سببه چي خلګو لره پر تاسي حجت او دلیل نه سي پاته

**پوه سه**: چي لام جاره متعلق دی په "فول" سره او علت دی د تولیه وه جهت ته د بیت الحرام.

**فائدة**: مراد له ناس ځنې یهود دي چي دوئ به هغه وخت کی چي علیه الصلوة والسلام وبیت المقدس ته لمونځ کاوه دا یې وویله چي هغه نبي

چي منعوت فی التوراة دی د هغه قبله خو کعبه بنول سوې ده او دا نبي خو زموږ قبلې ته لمونځ کوي او مشرکانو د مکې به دا احتجاج کاوه چي محمد ﷺ د ملة ابراهیم دعوی کوي او وخلاف ته د ابراهیم علیه السلام د قبلې چي کعبه ده لمونځ کوي، قوله الاالذین آه استثناء ده له ناس څخه یعنی مګر د ظالمانو معاندانو احتجاج نه قطع کیږی ولې چي د یهودو معاندانو ظالمانو به وروسته تر تحویل القبلة داسې ویله ماترک قبلتنا الی الکعبة الا میلا الی دین آبانه ای الشرک وحباً لبلده ولوکان علی الحق للزم قبلة الانبیاء یعنی بیت المقدس، او معاندانو ظالمانو د مکې به ویله رجع الی قبلة آبائه ویوشک ان یرجع الی دینهم.

**سوال**: دا خبره د یهودانو یا د مشرکانو خو صرف درواغ وه او فحش باطل خبري وې نو حجة ولي ورته وویل سو بلکه لائق داوه چي پر دې خبرو ددوئ نوم د جدل کېښودل سي؟

**ځواب**: تسمیه بالحجة ددوئ پر زعم باطل بناء ده، نو ګویا دا تسمیه مجاز دی تهکماً بهم، او بعض مفسران وايي چي استثناء منقطع ده، نو معنا يې داده لکن الذین ظلموا یجادلونکم بالباطل، او بعض وايي چي حجة په معنا د احتجاج دی، احتجاج خو ددوئ فعل دی وفیه انه یرد علیه مایرد علی الحجة بالمعنی الوصفی من انه لم سمی فعلهم احتجاجاً بل ینبغي ان یسمی جدالاً فافهم.

فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِیْ

نو تاسي مسلمانان ددوئ څخه مه بېرېږئ ولې چي زه ستاسي سره کومک کوم او په حجت تاسي پر دوئ غالبه ګرځوم، او نفس طعن ددوئ تاسي ته ضرر نه رسوي، او زما څخه وبېرېږي یعني مخالفت زما له امره مه کوئ چي په توجه د کعبې يې تاسي ته کړی دی.

وَلِأُتِمَّ نِعۡمَتِي عَلَيۡكُمۡ وَلَعَلَّكُمۡ تَهۡتَدُونَ ﴿١٥٠﴾

**پوه سه:** چي "ولاتم آه" معطوف دی پر "لئلا آه" باندي ای تولوا وجوهکم لئلا یکون للناس علیکم حجة ولاتم نعمتي علیکم آه، او دا هم احتمال سته چي ولاتم آه دي علت وي د جمله محذوف ای امرتکم بالتولیة الی المجسد الحرام وعدم الخشیة لاتمامي نعمتي علیکم وارادة اهتدائکم. پر دې تقدیر هم دا جمله عطف ده پر جمله معلله سابقه باندي یعني لئلا یکون للناس آه.

**پوه سه:** چي چونکه حقیقت ترجي پر خدای ﷻ محال وه، نو ځکه یې په مورږ تفسیر په اراده سره وکړی، او یا دا جمله عطف ده پر علت مقدره مثل واخشوني لاحفظکم عنهم ولاتم نعمتي علیکم آه، وعن معاذ ﷺ قال قال رسول الله ﷺ تمام نعمتي دخول الجنة والنجاة من النار رواه البخاري، وعن علي ﷺ تمام النعمة الموت علی الاسلام. هذا حاصل ما في البیضاوي والمظهري، او روح البیان ډېر په زړه پوري تفصیل داسي کړی دی، علة لمحذوف ای امرتکم بتولیة الوجوه شطر المسجد الحرام للاتمام النعمة علیکم ولي چي دا تولیه یو نعمت جلیله دی، ولي چي ټوله تکالیف الهیه که څه هم نعمتونه دي چي مکلف یې امتثال وکړی ولي چي مکلف وصل کوي و ثواب جزیل ته د آخرت، لکن امر د خدای ﷻ بالتوجه الی قبلة ابراهیم تام د نعمت دی په امر کي د قبلې، ولي چي ټولو عربو فخر کاوه په اتباع د ملت ابراهیم ﷺ في جمیع ماکانوا یفعلونه، نو چي دوئ متوجه کړه سوه وقبلة ابراهیم ته چي کعبه وه نو ځکه خدای ﷻ د اتمام د نعمت وباله پر دوئ باندي.

**درویش وایي:** چي که څه هم تفسیر د روح البیان په سبب د مناسبت د مقام سره د تحویل القبلة په زړه پوري دی، لکن چونکه تفسیر د تمام النعمة منصوصي موجود دی کمامر في الحدیثین المذکورین عنقریب، نو ځکه مفسرینو رح عموما وهغه منصوصي تفسیر ته ترجیح ورکړې ده

الآن يقال چي مراد د صاحب د روح البيان حصر د تمام نعمت چي مذکور په دي آيت دی په ماذکره نه دی بلکه مراد دده بيان د يوې نوعي د تمام النعمة ده فلا منافات بين ماذکر في الحديثين من تمام النعمة وبين ماذکره صاحب روح البيان. ولي چي نعمتونه د خدای ﷻ پر دې امت مرحومه باندې ډېر حساب تېر دي، نو هر نعمت الهي تمام النعمة ګڼل کېدای سي وماذکر في الحديثين هو التمام الحقيقي بجميع النعم الالهية لهذه الامة المرحومة. اللهم اتمم لنا نعمتک الحقيقة برحمتک يا ارحم الراحمين

**درويش وايي**: چي سليسه ترجمه د تېرو آيتو د "قد نری آه" څخه تر دې ځای پوري داده. په تحقيق ګورو ونو په بار بار کتل ستا و طرفته د اسمان په انتظار د وحي په باره کي د قبلة الکعبة نو هر آئينه موږ ستا مخ اړوو هغه قبلې ته چي ته په راضي يې يعني کعبه، نو واړوه مخ خپل يعني په لمانځه کي وجهت ته د مسجد الحرام يعني چي په هغه کي کعبه موجودده. او هر چېري چي ياست ای امت محمديه ﷺ که په سفر کي ياست او که حضر کي او که په شرق کي ياست او که په غرب کي ياست مثلاً نو تاسي اړوئ مخان خپل يعني په لمانځه کي وجهت ته دمسجد الحرام. او په تحقيق هغه کسان چي دوئ ته کتاب ورکړه سوی دی يعني تورات او انجيل چي يهود او نصارې دي. دوئ پوهېږي چي دا تحويل د قبلې حق دی له جانبه څخه د خدای ﷻ ددوئ، او نه دی خدای ﷻ غافله د هغو عملو څخه چي دوئ يې کوي. او په تحقيق که ته ای محمد ﷺ راتګ وکړې و دغو کسانو ته چي اهل کتاب دي په هر دليل او حجت سره دوئ متابعت نه کوي ستا د قبلې يعني عناداً وحسداً. او نه ته تابع کېدای سې د قبلې ددوئ. ولي چي ستا قبله په امر الهي د چي کعبه ده يعني تر ورځي د قيامت. او نه بعض اهل کتاب تابع کېدای سي د بل بعض په قبله کي. ولي چي د اهل کتابو قبلې هم يو له بله سره جلا دي. او بالفرض والتقدير که ته متابعت وکړې د خواهشاتو ددوئ يعني چي زموږ وقبلې ته بېرته مخ راواړوه. پسله دې چي تاته علم د خدای ﷻ

له خوا د ر کړه سو چې قبله بالحق کعبه ده، نو په تحقیق ته به د ظالمانو له ډلې څخه یې. او هغه کسان چې مونږ کتاب ورکړی یعني تر تاسې دمخه چې یهود او نصاری دي، پېژني آنحضرت ﷺ یعني چې بر حق دی او نبي اخر الزمان هم دی، لکه دوی چې پېژني خپل زامن یعني په سبب د هغه نعتو د علیه الصلوة والسلام چې ددوی په کتابو کې مذکور دي. او په تحقیق یوه ډله ددوی یعني چې علماء ددوی دي پټوي حق یعني چې نبوت د علیه الصلوة والسلام دی او دوی هم علم پر حق والي لري او حق یعني ستا نبوت او یا تحویل د قبلې له جانبه څخه د خدای ﷻ ستا دی، نو ته هر ګز مه ګرځه د شک کونکو څخه په باره کې ددې حق. او هر امت لره یو جهت سته چې هغه هر امت و هغه جهت ته مخ اړوي یعني په لمانځه کې. او تاسې وړاندې والې کوئ د خیر و کارو ته. او هرې چېرې چې تاسې یاست خدای ﷻ به راټګ وکړي په تاسې سره ټوله په ورځ د قیامت لپاره د جزاء بالجنة او بالنار. په تحقیق خدای ﷻ پر هر شي قادر دی. او له هر خایه چې ته ووځې یعني سفر ته نو ته مخ اړوه په لمانځه کې وجهت ته د مسجد الحرام او تحقیق سره دا امر د تولیې وکعبې ته حق دی له جانبه څخه د خدای ﷻ او نه دی خدای ﷻ بېخبره د هغو کارو څخه چې تاسې یې کوئ یعني که خیر وي او که شر. او له هرخایه چې ووځئ وسفرته نو مخ اړوه یعني له لمانځه کې و جهت ته د مسجد الحرام. او مونږ ستاسې قبله کعبه ورګرځول ددې لپاره چې خلګو لره یعني اهل کتابو لره پر تاسې دلیل نه سي پیدا چې نبي آخر الزمان خو دوو قبلوته لمونځ کوئ. مګر نه هغه کسان چې ظالمان وي ددوئ څخه یعني هغه ظالمان پسله تحویله د قبلې خپل احتجاج او جدال نه قطع کوي. نو تاسې د هغو له جداله مه بېرېږئ، او زما څخه بېرېږئ. او بل ددې لپاره تحویل د قبلې منځ ته راغلی چې زه پوره کړم نعمت خپل پر تاسې باندې یعني په باره کې د قبلې او زما اراده ده چې پر سمه لار سئ. انتهی الترجمه لتلک الآیات. او دا ترجمه پر ویه ځای د پښتنو د عوامو لپاره وه.

**درویش وایي**:- چي دا تـوله رسوایي او بد بختي او انکار د نبوت محمدي ﷺ ځکه چي اهل کتابو ته پښښه ده د دوئ د ملایانو له خوا وروپښښه ده کمایدل علیه قوله تعالی "وان فریقا منهم لیکتمون الحق وهم یعلمون کمامر تفسیره" او ملایانو د اهل کتابو بالخصوص د یهودیانو ملایانو په نصائحو کي عوامـوتـه د یهودیانو به ویـل چي پر خپـل دیـن حق یهودیت باندي قـائم ووسئ، محمد ﷺ نبي موعود ي التوارت او نبي آخر الزمان نه دی او چي ملایان خود په خانه سره یو ځای سوه دوئ به سره ویل چي محمد ﷺ خو هغه موعود دی لکن که یې موږ د رښتیا بیان وکړو زموږ ریاست پر عوامو او جاه او جلال له منځه ځي، نو نعتونه د نبي آخر الزمان چي په تورات کي موجود دي تغیر به ورکړو، او موږ به په دې ګناه خدای ﷻ په ورځ د قیامت دوږخ ته نه واچوي، ولي زموږ نیکه ګان انبیاء دي زموږ حتماً شفاعت کوي، او دا به یې هم ویل نحن ابناء الله واحبائه او دا به یې هم ویل لن تمسنا النار الا ایاماً معدودة کما حکی الله ﷻ عنهم في القرآن المجید.

حافظ شیرازي رحمه الله د ورته خلګو په باره کي داسي وایي

| | |
|---|---|
| واعظان کین جلوه در محراب ومنبر میکنند | چون بخلوت میر وند آن کار دیگر میکنند |
| مشکلي دارم ز دانشمند مجلس باز پرس | توبه فرمایان چرا خود توبه کمتر میکنند |
| گونیا با و ر نمید ا ر ند روز داوري | کین همه قلب ودغل در کار داور میکنند |
| خانه خالي کن دلا تامنزل جانان شود | کین هوسناکان دل وجان جای دیگر میکنند |

## کَمَآ اَرۡسَلۡنَا فِيۡكُمۡ رَسُوۡلًا مِّنۡكُمۡ

لکه چي موږ استولی دی په تاسي کي یا معشر قریش رسول محمد ﷺ چي ستاسي یعني له قوم او قبیلې ځخه دی، یعني تاسي په حال دده قبل النبوة وبعد النبوة تر نورو خلګو ښه خبر یاست حتی چي تاسي به دی قبل النبوة امین مکه باله.

**پوه سه:** چي دا آیت متصل دی د ماقبل سره ای لاتم نعمتي علیکم في امر القبلة او في الآخرة بدخول الجنة کما اتممتها بارسال رسول منکم. نو کلمه د ما مصدریه ده او ذکر په آیت کي ارسال دی او مراد خندي اتمام دی اقامة للسبب وهو الارسال مقام المسبب ای الاتمام، او بیضاوي رحمه الله یو احتمال بعید هم ذکر کړی دی چي دا آیت د وروسته سره تعلق لري یعني فاذکروني، نو یې تقدیر داسي بیان کړی دی فاذکروني کما ذکرتکم بارسال رسول منکم فافهم.

**فائده:** مخاطب په دې آیت کي قریش دي او نور خلګ د دوئ تبع دي، لقوله علیه الصلوة والسلام الناس تبع لقریش، وایضاً پر دې تبعیت دلالت کوي دا قول د خدای ﷻ و ابراهیم ته "اني جاعلک للناس اماماً. قال ای ابراهیم ومن ذریتي، او علیه الصلوة والسلام هم د ذریت څخه د ابراهیم دی، وایضاً قال ابراهیم علیه السلام وابعث فیهم رسولاً منهم کما حکی الله ذالک منه.

يَتْلُوا عَلَيْكُمْ اٰيٰتِنَا وَيُزَكِّيْكُمْ وَيُعَلِّمُكُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَيُعَلِّمُكُمْ مَّا لَمْ تَكُوْنُوْا تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۵۱﴾

**چي تلاوت کوي هغه رسول پر تاسي باندي آیات زمونږ چي قرآن عظیم الشان دی، او تاسي باعثه کوي پر داسي اعمالو چي تاسي په هغه عملو سره پاک سئ له خیرو څخه د ګنهو.**

**پوه سه:** چي مونږ تفسیر د تزکیه په باعثه کولو سره وکړی له دې کبله چي شان د ټولو رسولانو دعوت دی، او باعثه کول دي د خلګو پر هغو عملو چي خلګ د شرک او معاصیو څخه خلاص کړي، غرض په دې تفسیر کي دادی اصل مزکي خو خدای ﷻ دی، او تاسي ته در ښیي هغه نبي کتاب یعني ما في القرآن من الشرائع والاحکام والمعاني والاسرار والاوامر

والنواهي، او هم ددې جهته قرآن مبارک ته هدىً ونوراً ويل سوی دی، او عليه الصلوة والسلام تلاوت د قرآن عظيم الشان کاوه وا اصحابو کرامو ته تاچي دوئ يې نظم او الفاظ په ياد کړي. نو به قرآن مبارک پر ژبو د اهل تواتر پاته سي محفوظ له زيادت او نقصان څخه، نو به قرآن مبارک معجزه باقيه پاته سي الى يوم القيامة. ولي هر څوک چي په قرآن مبارک شک او نکار ولري هغه ته دا ويل کيږي "ان كنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا فاتوا بسورة الآية، ولا يوتون بمثله ولوكان بعضهم لبعض ظهيراً. نو د قرآن مبارک تلاوت په لمانځه کي او په خارج کي د لمانځه به عبادت باقيه وي الى يوم القيامة، او دربنيي دغه رسول وتاسي ته حكمت.

**پوه سه**: چي حکمت اصابت دی په قول او عمل کي او حکيم نه بلل کيږي مگر هغه سړی چي مصيب وي په قول او عمل كذا قال الامام الرازي ؒ في التفسير الكبير.

**پوه سه**: چي عمل په قران سره بناء دی پر معرفت د معنا د قرآن وهو متضرع على معرفة الفاظه من اللغة العربية والعلوم العربية من النحو، والصرف والمعاني والبيان والبديع، او دا رسول وتاسي ته درشيي هغه شيان چي تاسي پر هغو علم نه درلودی.

**پوښتنه**: د عطف څخه د "ويعلمكم آه" داسي معلوميږي چي د قرآن او حکمت څخه علاوه شيان دي، نو هغه څه شيان دي؟

**ځواب**: د کتاب او حکمت څخه مراد هغه شيان دي چي في الجملة عقل لره مجال د معرفت هم وي، او د مالم تكونوا آه هغه جزئيات او کليات دي چي ببله وحي هيڅ مدخل عقل لره نه وي. هذا مافي روح البيان. او د بيضاوي له كلامه هم دغه فهميږي حيث قال بالفكر والنظر. وقال الخفاجي في شرح البيضاوي والمراد مايستفاد من النبي ﷺ غير القرآن فهو جنس آخر، وقال البيضاوي وكرر الفعل يعني ويعلمكم آه ليدل على انه جنس آخر

**درویش وايي:** چې مظهري رحمه الله په بيان کې ددې آيت يو طويل بيان کړی دی چې د پېر مفسران د حديث د ابي هريرة رضي الله عنه څخه روايت کوي چې هغه وايي "حفظت من رسول الله ﷺ دعائين من العلم فاما احدهما فبثثته فيكم، واما الآخر فلو بثثته يقطع هذا العلوم" عام شارحين ددې حديث داسې ترجمه کوي چې ابو هريره رضي الله عنه وايي چې ما دوه لوښي يعني ظرفونه چې مراد څنې د قوت حافظې دوې خزانې دي يو ظرف له هغو دوو څخه ما په تاسې کې نشر او بيان کړی، چې مراد څنې علم العبادات دي من الزكوت والصلوة وغيرهما وعلم الحلال والحرام وعلم الجنة والنار وغيرها دي، او هر چه هغه بل ظرف د علم که يې زه نشر کړم په تاسې کې، نو زما سره غاړه به قطعه سي رواه البخاري، نو مظهري وايي او دا قول يې هم په قيل سره راوړی دی چې مراد د وعاء ثاني څخه هغه وعاء ده چې عليه الصلوة والسلام وده ته نومان د امراء الجور ښوولي لکه يزيد بن معاويه او نور مروانيان امراء الجور چې هغه کسان چې ابو هريره رضي الله عنه دا حديث وايه پر سر قدرت وه، نو اشارةً به ابو هريره رضي الله عنه داسې وويل اعوذ بالله من راس الستين وامارة الصبيان يشير الى امارة يزيد بن معاويه انتهى قول شراح الآحاديث النبوية ﷺ، نو مظهري دا تر تنقيد لاندې نيولې ده او وايي چې دا ترجمه مستحسن نه ده، او بيا يې له خانه څخه اوږد بيان کړی دی.

**درویش وايي:** چې ترجمه د حديث د ابي هريره رضي الله عنه چې نقل کړه هغه ترجمه د ټولو شراح الحديث ترجمه ده، او مظهري چې کومه ترجمه د حديث کړې ده په هيڅ شرحه کې د کتب د حديثو ما خو نه ده ليدلې او نه مې له يو محدثه څخه اورېدلې ده والعلم عندالله.

**درویش وايي:** چې په دې آيت کې خدای ﷻ تزکيه چې معنا يې پاک کول دي له شرکه او نورو نقائصو او منهياتو څخه تر تعليم الكتاب والحكمة دمخه راوړې ده او په دعاء ابراهيم کې چې دمخه تېره سوه وروسته يې راوړې

ده په دې کې ځخه حکمت الهي دی، واشار الی جوابه البیضاوي بغایة الاجمال في قوله قدمه باعتبار المقصد واخره في دعوة ابراهیم باعتبار الفعل، وتفصیل الجواب المذکور دادی چې تزکیه علت غایت ده د تعلیم الکتاب والحکمة کما لایخفی علی الو النهی، او په کتابو کې د معقول وایي چې علت غایت په قصد کې د فاعل او په تصور کې دده دمخه وي تر فعل او په عمل او وجود کې وروسته وي تر فعل نو تزکیه د مخه کړه سوه په دې آیت کې او وروسته سول په دعاء ابراهیم کې رعایة لکل جهتی الغایة، ولي چې دعا چې څوک کوي باید موافق د فعل سره وي یعني چې مبادي به تر مقاصدو ده، او مراد د مبادي ځخه تعلیم الکتاب والحکمة دی او مراد د مقاصدو ځخه تزکیه ده دمخه کوي. یعني مبادي د تزکیه چې تعلیم الکتاب والحکمة دی، نو ځکه یې په دعاء ابراهیم کې تعلیم الکتاب والحکمة دمخه راوړه سو او تزکیه چې اصل مقصد وه وروسته راوړه سوه. او دا آیت خو ځای د بیان د نعمت الهي دی پر امت محمدي ﷺ باندي، نو اول باید اصل مقصود راوړه سي چې تزکیه ده، او تعلیم الکتاب یې په دوارو آیتو کې دمخه ذکر کړی، لان ثبوت رسالة النبي ﷺ باعتبار تلاوت الآیات القرآنیة المعجزة للخصم باعتبار غایة البلاغة والاشتمال علی المغیبات کمایدل علیه قوله تعالی " ان کنتم في ریب آ. درویش به ددې خواب په یو شان سره وکړي چې نجار چې چار پایي جوړوي د پروتي لپاره، نو په قصد او تصور کې د نجار خو نقشه د مخه پرته ده او په وجود کې پروت پر چار پایي وروسته تر جوړېدو د چار پایي ده وعلی هذا فقس سائر الغایات.

**درویش وایي:** چې والعجب من بعض المفسرین رح چې ده دغه عبارت مجمله د بیضاوي راوړی دی او تفصیل یې نه دی ذکر کړی، وجه د تعجب داده چې د بیضاوي کتاب خو اوس حاشیه لري او هم شروح، نو باید دی مفسر هغه تفصیل د حواشیو او د شرحو ځخه د بیضاوي هم رانقل کړي وای ولي چې دده د تفسیر وجود خو ډېر وروسته تر بیضاوي او تر حواشیو

د هغه منځ ته راغلی دی، نو که ده تفصیل مذکور هم رانقل کړی وای دا به ده د ېر شفقت وای پر زده کونکو دده د تفسیر والله اعلم.

فَاذْكُرُونِيٓ اَذْكُرْكُمْ وَاشْكُرُوا لِي وَلَا تَكْفُرُونِ ﴿١٥٢﴾

او تاسي زما ذکر کوئ زه به ستاسي ذکر کوم او شکر وایاست زما او ناشکري مه کوئ زما .

**پوه سه:** چي مراد له ذکره د خدای ﷻ ذکر په طاعت سره دی او مراد له ذکره څخه د خدای ﷻ دوئ لره ثواب دی پر طاعت .

**فائده:** ذکر یې تر شکر دمخه راوړی ولي چي په ذکر کي اشتغال په خدای ﷻ سره دی، او په شکر کي اشتغال په نعمت د خدای ﷻ ولا ریب ان الاشتغال بذاته تعالى اولى من الاشتغال بنعمته تعالى، قال الامام الهمام ابو حامد محمد الغزالي ﷫ في احياء العلوم چي ذکر د خدای ﷻ دري قسمه دی ذکر دی په ژبه سره، ذکر دی په زړه سره او ذکر دی په اندامو سره د بدن، نو ذکر لساني د بندګانو دادی چي په ژبه د خدای ﷻ حمد ووايي او تسبیح ووايي او تحمید د خدای ﷻ ووايي یعني جل مجده مثلاً او تلاوت د قرآن پاک وکړي، او تعلیم د علوم دینه وو طالبانو ته علم وکړي الی غير ذلک ممایتعلق باللسان.

او ذکر بالقلب دري قسمه دی، یو دا چي فکر ووهي په هغه دلائلو انفسیه وو او افاقیه وو کي چي دال پر ذات او صفاتو د خدای ﷻ وي والی الدلائل الانفسیه اشیر بقوله تعالی "وفي انفسکم افلا تبصرون" او فکر وکړئ په جواباتو د اهل البدع والاهواء والدهرية والملحدين، او بل دا دی چي فکر وکړي په هغو دلائلو کي چي مشتمل پر حکم الهیه وو وي په اوامرو او نواهي وو کي د خدای ﷻ په وعده کي د خدای ﷻ اهل ایمان والطاعة ته په جنت سره او په وعید کي د خدای ﷻ د اهل الکفر والعصیان سره په دوزخ

سره، او فکر وکړي بما في الفعل من الوعد وفي الترک من الوعید فیسهل علیه الفعل والترک.

او بل ذکر بالقلب دادی چي سرې دي فکر وکړي په اسرارو کي د مخلوقاتو د خدای ﷻ من السموات العلی والکواکب النیرات، وانواع الحیوانات من الطیور والوحش والحیوانات الاهلیة وطبقات الاناسي من الاسود والاحمر وفي السنتهم المختلفة الی غیر ذالک من المخلوقات التی ورد فیها ولایعلم جنود ربک الاهو، حتی چي هره ذره د ذراتو څخه د مخلوقاتو لکه صافه انداره وګرځي لپاره د عالم قدس نو چي بنده د ذراتو په اندازو کي وګوري مشاهده د عالم الجلال ورته کېږي او دا مرتبه مرتبه مخصوصه په اولیاء کرامو پوري ده وروسته تر انبیاء کرامو علیهم الصلوة والسلام، او دا مرتبه هیڅ نهایت او پای نه لري، ولهذا خاطب الله عزوجل سید المرسلین ﷺ بقوله "وقل ربِ زدني علماً".

واما ذکره تعالی بالجوارح هغه دادي چي ټولـه اندامونه یې خالي وي د هغو عملو څخه چي خدای ﷻ دی څنـدي نهي کړی وي، نو څکه خدای ﷻ لمونځ خپل ذکر بللی دی یعني د اندامو ذکر "فاسعو الی ذکر الله" انتهی قول الغزالي رحمه الله مع زیادة کثیرة من العبدالعاصي. حاصل د کلام دادی چي فاذکروني شامل دی ټولو طاعاتو ته. وهذا من ایجاز القرآن واعجازه.

لقمان حکیم رحمه الله وخپل زوئ ته وویل چي تـه ووینې مجلس د اهل الذکر نو ورسره کښېنه، نو که ته عالم یې ستا ذکر به تاته فائده وکړي. او که ته جاهل یې اهل الذکر به یې در وښيي انتهی، په حدیث شریف کي چي روایت یې ابو هریره رضي الله عنه کړی داسي راغلي دي قال قال رسول الله ﷺ انا عند ظن عبدي بي و انا معه اذا ذکرني، فان ذکرني في نفسه ذکرته في نفسي وان ذکرني في ملاء ذکرته في ملاء خیر منه وان تقرب العبد الي شبراً تقربت الیه ذراعاً وإن تقرب الي ذراعاً تقربت الیه باعاً وان اتاني یمشي اتیته هرولةً.

**ترجمة الحدیث:** وویل ابو هریره ﷺ چي وویل علیه الصلوة والسلام زه په نیز د گمان بنده یم په ماسره، زه د بنده سره ورسره یم چي زما ذکر کوي، نو که یې زه ذکر کړم پوازي پوازي زه به یې هم پوازي ذکر کوم. او که یې زه ذکر کړم په یو جماعت کي د خلگو زه به یې ذکر کړم په داسي جماعت کي چي دده تر جماعت به خیر وي ای ملأ الملائکة، او که بنده نژدې سي وماته یوه لوېشت یعني په لږ والي زه به نژدې سمه ورده ته یوه هته، او که بنده ماته نژدې سي یوه هته زه به ده ته نژدې سمه یوه غېږ، او که بنده ماته راروان وي په عادي تګ زه به ورده ته په ځغاسته ورځم.

**یوه سه:** چي اطلاق د نفس پر خدای ﷻ مشاکلة دی.

**یوه سه:** چي لوېشت او ذراع کنایه دي د لږ قرب څخه او د ډېر قرب څخه د خدای ﷻ.

**یوه سه:** چي اطلاق د ذراع او غېږي هم تمثیلاً وي لزیادة قرب الله من العبد من قربه الیه.

**فائده:** حاصل ددې حدیث دادی چي د بنده له خوا لږ ذکر د خدای ﷻ دی د خدای ﷻ له خوا به ډېر ثواب ورکړه کېږي، او که د بنده له خوا لږ خدای طلبي وي د خدای ﷻ له خوا به ډېر توفیق ورکړه کېږي عبارات د حدیث مبارک ټوله تمثیلات دي لپاره د تفهیم د خلگو، او بغوي رحمه الله د انس ﷺ ددغه حدیث روایت کړی دی، او انس ﷺ وایي چي ما دغه حدیث د رسول الله ﷺ څخه اورېدلی دی په حساب زما د گوتو چي لس دي، هکذا قال المظهري رحمه الله.

**درویش وایي:** چي په یوه حدیث کي چي روایت یې نسائي او ترمذي وغیرهما کړی دی علیه الصلوة والسلام وایي چي افضل الذکر لا اله الا الله، وافضل الدعاء الحمد لله.

**درویش وایي:** چي کېدای سي چي د الحمد لله څخه دي پوره سورت مراد وي، له دې سببه چي فقط لفظ د الحمد لله خو ذکر دی دعاء نه ده، لکن په ټوله سورت کي چي اهدنا الصراط المستقیم آته ورسېږي، نو دعاء شروع

کېږي ولاشک ان الدعاء المذکور في الحمد لله افضل الادعیة لکونها مشتملة علی خیرات الدارین، او د سمره بن جندب ﷺ څخه روایت دی چي علیه الصلوٰة والسلام وویله افضل الکلام اربع سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اکبر رواه مسلم.

**درویش وایي**: چي ددغو څلورو کلمو فضیلت بلکه افضلیت ددې څخه هم معلومېږي چي آنحضرت ﷺ چي خپل اکا عباس ﷺ ته صلوٰة التسبیح چي افضل د نوافلو دي وروښووی په هغه لمانځه کي دغه کلماتي په مختلفو ځایو کي د لمانځه یې وروښوولې کما هو المعروف عند المسلمین، په حدیث قدسي کي چي روایت یې ترمذي او دارمي د ابي سعید خدري ﷺ څخه کړی دی داسي راغلي دي "من شغله القرآن عن ذکري ومسئلتي اعطیته افضل مااعتی السائلین وفضل کلام الله یعني القرآن علی سائر الکلام کفضل الله تعالی علی خلقه.

**درویش وایي**: چي صوفیه کرام رح کلمه طیبه بلکه هر ذکر الهي بالقلب واللسان جهراً و اخفاء ټوله روا بولي البته په افضلیت کي اختلاف سته. لکن ټوله فضائل د ذکر الهي مربوط په حضور القلب پوري او دا په اخلاص پوري منوط دي، یو شاعر وایي

بر زبانت یا صمد پیدا ودر دل یا صنم

ای بباطن کافر ظاهر مسلماني چه سود

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱسۡتَعِينُواْ بِٱلصَّبۡرِ وَٱلصَّلَوٰةِۚ إِنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلصَّٰبِرِينَ ﴿١٥٣﴾

ای هغه کسانو چي ایمان یې راوړی دی تاسي کومک وغواړئ پر شدائد دینیه او دنیویه وو په صبر سره او په لمانځه سره، او په تحقیق خدای ﷻ ملګری د صبر کونکو دی بالعون والنصرة.

**پوه سه:** چي لفظ د صبر گاهي متعدي په کلمه د علی وي، يعني صبر علی الشيئ نو ددې معنا داده که يو کار او عمل چي پر تا سخت وي پر هغه کار باندي ځان پابنده کړه په دې معنی صبر ټولـه عباداتو الهيه وو ته شامل دی ولي چي عبادت د خدای ﷻ چونکه خلاف د هوی نفساني څخه دی پر سړي ژوند شاق گرځي، نو بايد مسلمانان پر هغه عبادت صبر وکړي، او گاهي لفظ د صبر متعدي په کلمه د عن وي، ای الصبر عن الشيئ يعني ځان بندول له هغه کار څخه که څه هم وهغه ته زړه غواړي په دې معنا صبر شامل دی ترک لره د ټولو منهياتو، ولي منهيات چونکه د خواهش نفساني سره موافق دي، نو زړه طبعاً وهغو ته مائل دی لکن چونکه حکيم مطلق جله شانه انسانان خندي منع کړي دي بايد مؤمن له هغو منهياتو له کولو څخه صبر وکړي، او گاهي لفظ د صبر متعدي په کلمه د في وي ای الصبر في الشيئ يعني په نازل کار کي دي سړی وخدای ﷻ ته صبر وکړي، په دې معنا کي يو مصيبت له قسمه څخه د ناجوړی يا فقر او مسکنت او يا موت الاولاد والاقارب الی غير ذالک د خدای ﷻ له خوا څخه سړي ته پيښ سي چي د سړي زړه مضطرب سي بايد مؤمن په دې واقع کار کي وخدای ﷻ ته صبر وکړي.

**پوه سه:** چي د صبر په مصيبت کي مثلاً په ناجوړی کي دا معنا نه ده چي مريض به دوا نه کوي يا به خدای ﷻ ته د دفع د مرض خواست نه کوي، او يا په مسکنت کي به سړی د وسائلو څخه کار نه اخلي بلکه د خدای ﷻ څخه دي شکايت نه کوي، علماء کرام وايي چي شکايت الی الله جائز دی بلکه مستحب دی او شکايت من الله حرام دی، ع کشت کن پس تکيه بر جبار کن.

**درويش وايي:** چي دا حال د مبتدي او متوسط مؤمن دی او اولياء الله الکرام الکمل فيجدون في قلوبهم اللذة في المصيبة فوق اللذة في النعمة.

**فائده:** لفظ د صبر که څه هم ثلاثي دی لکن ټولو طاعاتو او ټولو منهياتو ته او ټولو مصائبوته شامل دی.

**فائده**: لفظ د صلوة تخصیص بعد التعمیم دی ولي چي په لمانځه کي هم صبر سته د اکل او شرب او خبرو څخه او نور ورته شیان چي په لمانځه کي منهي عنها وي، او لمونځ اعظم د عباداتو دی او جامع د عباداتو قلبیه وو او د عباداتو ارکانیه وو په خشوع او خضوع کي بلکه عبادات مالیه ته هم شامل دی مثلاً که د اوداسه اوبه یې په بیعه وې، او بل لمونځ معراج المؤمنین دی کما ورد في حدیث علی ﷺ مرفوعاً، او لمونځ په قرار د فرمودې د علیه الصلوة والسلام عماد الدین دی فمن اقامها فقد اقام الدین ومن هدم فقد هدم الدین، رواه ارباب الاحادیث الصحاح، او د انس ﷺ څخه روایت دی "الصلوة نور المؤمن، وقد ورد في الحدیث الصحیح المتفق علیه ان رسول الله ﷺ اذا حزبه امر، وفي روایت اذا حزنه امر افزع الی الصلوة.

**فائده**: صبر سخت ترین د اعمالو باطنه وو دی، او لمونځ سخت ترین د اعمالو ظاهره وو دی پر بدن، ولهذا خصهما بالذکر، واما الزکوة فهو مخصوص باصحاب النصاب من الاموال الظاهرة والباطنة وکذا الحج مخصوص بمن استطاع الیه سبیلاً، واما الصوم مخصوص بشهر واحد والصبر والصلوة یعمان جمیع السنة.

**پوه سه**: چي مراد د معیت څخه د خدای ﷻ نصرت واجابة الدعوة دی لا المعیة المکانیة لتنزه تعالی عن المکان کما ثبت في علم الکلام.

**پوښتنه**: خدای ﷻ په دې آیت کي وویل "ان الله مع الصابرین" ولم یقل مع المصلین، او به یو بل آیت کي خدای ﷻ داسي فرمایلي دي "واستعینوا الصبر والصلوة وانها لکبیرة، چي ضمیر د انها راجع دی ولمانځه ته، نو په هغه آیت کي یې یوازي لمانځه ته اعتبار ورکړی دی دون الصبر یعني عکس هذه الآیة؟

**ځواب**: چونکه صبر له لمانځه څخه جلا کېږي په دې معنا چي صبر خو په خارج کي د لمانځه هم ضروري دی کما في حالة الفقر والمرض وغیرهما، او لمونځ له صبره څخه نه جلا کېږي لان الصبر عن الاکل والشرب وغیرهما

ضروري في الصلوة، نو چي خداى مع الصابرين دى نو مع المصلين خو په طريق اولى دى، او په هغه بل آيت كي چې انها لكبيرة "ويلي دي لپاره د تنبيه پر دې چي لمونځ اعظم درجه دى تر صبر مجرد، خواجه عبدالله انصاري رحمه الله چه خوش نصيحت فرموده.

ای طالبي كه دعوه عشق خدا كنی بر غير او نظر محبت چرا كنی
از جستجوى خلق تو بيگانه شو اگر خواهی كه دل بحضرت او اشنا كنی
حقاً كه شور ولوله در آسمان فتد آندم كه تو زبيم خدا يک ندا كنی
انصاريا چو روز روشن از شبی خود را بعجز بر سبحان گدا كنی

**پوښته**: چي په حديث نبوي ﷺ كي راغلي دي، الصبر من الايمان بمنزلة الراس من الجسد، ددې حكمت څه دی؟

**ځواب**: چونكه په صبر كي تحمل او برداشت د ډېرو سختيو دی بېله جزع او اضطراب القلب ځكه نو صبر واسطه وهر خير ته ده، ولي چي اول د توبې صبر دی د ټولو گنهو څخه، او اول د زهد صبر دی د مستلذاتو مباحاتو څخه، نو ځكه آنحضرت ﷺ هغه مذكور ارشاد وفرمايه "وقال الصبر خير كله" او دلمانځه فضيلت ددې آيت مبارک څخه بايد سرې وفهموي "ان الصلوة تنهى عن الفحشاء والمنكر" قال الحافظ الشيرازي

صبر كن حافظ بسختي روز وشب عاقبت روزي بيابي كام را

روح البيان مع زيادة البيان

وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتٌ ۚ بَلْ أَحْيَاءٌ وَلَٰكِنْ لَا تَشْعُرُونَ ﴿١٥٤﴾

او تاسي مه وايئ هغه كسانو ته چي ووژل سي په لاركي د خداى ﷻ چي دا كسان مړه دي، بلكه ژوندي دي لكن تاسي په ژوند د هغو نه پوهېږي.

**فائده**: دا آیت په اتفاق د مفسرینو رح په شهداء کي د بدر نازل سوی دی چي هغه څورلس (۱۴) صحابه ﷺ وه، شپږ (۶) له مهاجرینو څخه وه او اته (۸) کسان د انصارو څخه ﷺ، نو خلګو به ویل په باره کي ددغو شهداء ﷺ مات فلان وذهب عنه نعیم الدنیا ولذتها فانزل الله تعالی هذه الآیة.

**فائده**: مراد له سبیل الله څخه جهاد دی له کفارو سره لپاره د اعلاء د کلمة الله فقط، دې ته ولي سبیل الله وایي له دې سببه چي دغه جهاد موصل الی الله وثوابه ونعیمه في الجنة دی.

**فائده**: اموات خبر د مبتداء محذوف دی او احیاء هم خبر د مبتداء محذوف دی، او داسي نه سي کېدای چي احیاء دي پر اموات عطف وي، عطف المفرد علی المفرد، او نه هم پس له تقدیره د "هم احیاء" عطف دي سي پر جمله د "هم اموات" عطف الجملة علی الجملة، لان هم احیاء لیس داخل تحت القول کجملة هم اموات بلکه هم احیاء اضراب دی د قول څخه د هم اموات چي خلګو به ویل.

**پوښتنه**: خدای ﷻ چي دوی ته ژوندي وویل نو باید چي ددوی اموال تقسیم نه سي، او د دوی د زوجاتو نکاح دي هم د بل چا سره روا نه سي؟

**ځواب**: ددوی ژوند خو حیات معنوي دی عند ربهم یرزقون من نعیم الجنان، او مانع د تقسیم د اموالو او د نکاح د ازواجو خو حیات ظاهري دی.

**پوښتنه**: د انبیاء علیهم الصلوة والسلام حیوة خو هم برزخي او معنوي دی، نو ولي نکاح د وزجاتو ددوی نه ده روا؟

**ځواب**: مانع د نکاح د زوجاتو ددوی په دې آیت سره دی ولاتنکحوا ازواجه من بعده ابداً، وقال وازاجه امهاتهم، واما عدم تقسیم اموالهم فلان الانبیاء علیهم الصلوة والسلام لم یورثوا دینار ولا درهم، او روح البیان دفع ته د سوال په حذ د حرف تشبیه اشاره کړې ده، حیث قال کالاحیاء في الحکم آه، په دې معنا چي هر مسلمان د خدای ﷻ په لاره کي خپل ژوند د لاسه ورکړي

الى يوم القيامة هغه شهداء د بدر يې په ثواب کي شامل دي لانهم سنوا هذه السنة الحسنة. قوله ولکن لا تشعرون اى ماحالهم في تلک الحياة.

**پوښتنه**: چي بيضاوي ﷫ وايي وهو تنبيه على ان حيوتهم لسيت بالجسد ولا من جنس ما يحسن به من الحيوانات وانما هو امر لايدرک بالعقل بل بالوحي وروي عن الحسن البصري ان الشهداء احياء عندالله تعرض ارزاقهم على ارواحهم فيصل اليهم الفرح والسرور کما تعرض النار على ارواح آل فرعون غدواً وعشياً فيصل اليهم الوجع.

**درويش وايي**: چي ټوله مفسران پر دې عقيده دي چي ارواح جواهر دي او قائم بنفسها دي مغاير دى د هغو روحانو څخه چي په هغو حسن د بدن کېږي او ارواح انسانيه باقي بعد الموت دي او ادراک او علم هم لري قال البيضاوي وعليه جمهور الصحابة ﷺ والتابيعن وبه نطقت الآيات القرآنية والسنن النبوية ﷺ.

**پوښتنه**: دا حيواة روحاني خو شامل ټولو انسانانو ته دى نو تخصيص د شهداء يې ولي وکړى؟

**ځواب**: بئضاوي وايي چي تخصيص د شهداء و په سبب د زيادت قرب د دوئ دى د خداى ﷻ سره او په سبب د ډېرې خوشحالى ددوئ دى، او بعض مفسران وايي چي حيوة د شهداء بالروح والجسد دى چي موږ يې په حقيقت نه پوهېږو لکونها من احوال البرزخ. وورد في الحديث النبوي الصحيح ان ارواح الشهداء في حواصل طير خضر تسرح في الجنة حيث شائت ثم تاوي الى قناديل تحت العرش وانهم يعرض عليهم رزقهم غدوة وعشية، او بعض ارباب التفسير وايي چي ارواح ته د شهداء که څه هم د اجساد دنياوي څخه جلا سوي دي او اجساد يې په مځکه کي مدفون دي لکن دغو روحانو ته د شهداوُ خداى ﷻ قوت د اجسادو ورکړى دى، چي دوئ ګرځي په اسمانو او مځکو او جنتو کي هر ځاى چي ددوئ رضا سي او

دوئ د مؤمنانو سره په غزاو کې بعض اوقات هم کومک کوي، ان شاء الله ولاجل هذه الحيوة لاتاكل الارض اجسادهم ولا اكفانهم

**درویش وایي:** چې دا حکم د هغو شهداؤ دی چې فقط وفقط لپاره د اعلاء د کلمة الله خپل شرین ژوند یې له لاسه ورکړی وي، نه یې غرض غنیمت وي او نه د خپل خان مړانه او غیرت او شجاعت وخلګو ته ښوول وي نو دا سوال ته وارد ېږي چې بعض ځایونه خلګ وایي چې دا د یو شهید قبر دی وروسته هغه قبر په سبب د عارض د یو سړک یا نهر په سبب وشنل سي خالي هډوکي پکښې پراته وي وجه الدفع ان الشهيد في سبيل الله لا يعلمه الا الله ورسوله او موږ صرف په ظاهره سره اکتفاء کوو.

**درویش وایي:** چې چې بعض صحابه وو ﷺ د عليه الصلوة والسلام څخه پوښتنه وکړه چې د شهداؤ په ډله کې بل څوک هم حشر کېږي. قال نعم ! هغه څوک چې په شبانه روز کې شل واره مرګ وریاد ېږي، او مالک ﷺ روایت کړی دی د ابن صعصعه څخه چې عمرو بن الجموع او عبدالله بن جبير الانصاري چې په احد کې شهیدان سوي وه او په یوه قبر کې دفن سوي وه، او هغه قبر د یوه مانده پر کناره و، یو کال په مانده کې سخت سېل راغلی چې دې سېل قبر ددغو دوو صحابه وو رضي الله عنهما وکیندی او دوئ دواړه ښکاره سوه، نو دوئ داوړه په قبر کې داسي پراته وه لکه پرون چې شهیدان سوي وي او سره ددې چې د احد د غزا او ددغه شلې تر منځ څلوېښت (۴۰) کاله تېر سوي وه.

**درویش وایي:** چې د شهداء في سبيل الله په باره کې ډېر مفصل حدیثونه په کتابو کې د احادیثو مبارکه وو موجود دی، او مفسرین هم ددې په باره کې ډېر اوږده بیانونه کړي دي، او اهل تصوف هم ددوئ درجې په کشف سره معلومې کړي دي او بیان کړي دي، چې د هغو بیان به وسامعانو ته د لوئ دقت سبب سي او د خدای ﷻ جل شانه بیان د شهداء په باره کې کافي

دى لکن تر هر شي قابل د توجه دا خبره ده چي جهاد في سبيل الله وي او
شهيد هم فقط وفقط في سبيل الله وي او لپاره د اعلاء كلمة الله وي.

## وَلَنَبْلُوَنَّكُم بِشَيْءٍ

**پوه سه:** اصل معنا د ابتلاء امتحان دى لکن چونکه امتحان خو هغه ځوک د چا څخه اخلي چي هغه په حال د مبتلي نه وي خبر او د مبتلي حال په امتحان سره معلوموي كما في المدارس والمكاتب وامتحان الخليل خليله في انه صادق في الخلة او كاذب فيها والله تعالى اعلم بحال العباد فلاحاجة له تعالى الى الابتلاء بالمعنى الاصلي. نو ځکه مفسرين په يوه خوله تفسير د ابتلاء داسي كوي لمعاملتكم معاملة المختبر لاحوالكم يعني چي تاسي صبر كوئ پر بلاياوو او قضايا الهي ته تسليم ياست او كه نه. او د علم بيان د اصطلاح سره موافق په "لنبلونكم" استعاره تمثيليه ده يعني تشبيه الهيئة بالهيئة فارجع الى علم البيان. او دا جمله عطف ده پر هغه جمله "ياايها الذين امنوا استعينوا بالصبر والصلوة آه" مناسبت د معطوف او معطوف عليه تر منځ دادى چي مضمون د معطوف عليه امر دى په صبر سره او مضمون د معطوف بيان دى د ځايو د صبر.

**فائده:** كلمه د لام لپاره د قسم ده او حكمت الهي په دمخه خبرلو د مؤمنانو بما سيقع من المصائب عليهم دادى چي د مؤمنانو زړونه ډاډه سي وهغو مصائبو ته او په وخت كي د وقوع به دهشت زده نه سي، لان المصيبة الواقعة بغتة ادهش واذهب للب الرجل الحازم كما يدل عليه التجربة.

**پوه سه:** چي ابتلاء الهي ګاهي په نعمت سره وي لابتلاء شكر النعمة. او ګاهي په نقمة او عذاب او مصيبت سره وي لابتلاء الصبر وما نحن فيه من القبيل الثاني كما لايخفى.

**فائده:** په تفسير رحماني كي وايي چي خداى ﷻ په دې آيت كي بيان د مصائبو من الاشد الى الاضعف كړي دي ولي چي مراد له خوف څخه دلته

خوف د اعداء ځخه ددين دی په جنګو کي چي هغه فوتونکی د ژوند دی في الحال، او وروسته يې لوږه راوړه چي هغه مفوط د ژوند بعد حين او وروسته يې نقص من الاموال ذکر کړی چي هغه مفضي دی ولوږي ته، او بيا يې ذکر د جهاد وکړی چي هغه محتمل دی لکن بيا هم که پښتي سي مفوط د ژوند حتماً نه دی لاحتمال الفتح والظفر بدون الشهادة، او وروسته يې د ثمرات نقص بيان کړی چي مراد ځندي په بعض رواياتو کي موت الاولاد دی چي هغه مفضي وقطع ته د نسل ګرځي.

**فائده:** خدای ﷻ په اول کي بشيئ ووايه چي تنکير په معنا د تقليل دی ای شيئ قليل من المصائب المذكورة بالنسبة الى مافي قدرته تعالى من تلك المصائب حثًا للمؤمنين على الصبر على تلك المصائب القليلة، وليخفّ عليهم تلك المصائب المتوقعة وتنبيهاً على ان رحمة تعالى لاتفارقهم مع تلك المصائب حيث لم يسلط عليهم ماهو اشد في انواع تلك المصائب.

مِّنَ الْخَوْفِ وَالْجُوْعِ وَنَقْصٍ مِّنَ الْأَمْوَالِ وَالْأَنْفُسِ وَالثَّمَرٰتِ

**پوه سه:** چي محمد بن ادريس الشافعي رحمه الله وايي چي مراد له خوف ځخه خوف د خدای ﷻ دی، او د جوع ځخه مراد صوم رمضان ده، او د نقص من الاموال ځخه مراد زكوة او صدقات دي او د نقص من الانفس ځخه مراد امراض الواقعه دي على اجسامهم، او مراد د نقص ځخه د ثمراتو موت الاولاد دي، ويوافقه الآخر ماورد في الحديث الصحيح اذا مات ولد العبد قال الله تعالى للملئكة اقبضتم ولد عبدي فيقولون نعم، فيقول اقبضتم ثمرة قلبه فيقولون نعم فيقول الله تعالى فماذا قال عبدي فيقولون حمدک او استرجع يعني انا لله وانا اليه راجعون، فيقول ابنو العبدي بيتاً في الجنة وسموه بيت الحمد.

**درویش وايي:** چي مفسران رح له خوفه څخه خوف الاعداء اخلي. او له جوع څخه مراد قحط د باران بولي، او د نقص اموال څخه مراد سرقات او غارات او مصادرة الحكام الظلمة او خسران التجارت بولي، او د نقص الانفس څخه مراد قتل او مرگ او مرض او شيب او هرم بولي، او د نقص الثمرات څخه مراد ذهاب الثمرات بالعاهات والآفات الواردة على الاشجار والكروم بولي.

**درويش وايي:** ولا منافات بين تلك التفاسير المذكورة لان كلمات القرآن ههنا محتملة لتلك كلها، وهذا ايضا من محسنات ايجاز القرآن الكريم.

وَبَشِّرِ الصّٰبِرِيْنَ ﴿١٥٥﴾ الَّذِيْنَ اِذَآ اَصَابَتْهُمْ مُّصِيْبَةٌ ۙ قَالُوْٓا اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّآ اِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ ﴿١٥٦﴾

او زيرى وكړه اى محمد ﷺ وصابرو كسانو ته چي څه وخت چي دوئ ته ورسيږي يو مصيبت او تكليف يعني من المصائب المذكورة، نو دوئ وايي چي موږ د خداى ﷻ يو يعني خلقاً و ملكاً وعبيداً، يعني هر څه چي موږ ته راكړه سوي دي هغه نعمتونه د خداى ﷻ له خوا څخه زموږ سره په طور د عاريت او امانت وه، نو بايد موږ په قضاء الهي راضي اوسو. او چي خداى ﷻ بيرته هغه نعمتونه له موږ څخه واخلي نو بايد موږ جزع او فزع او بې صبري ونه كړو، ولي چي خداى ﷻ مالك دى يتصرف في ملكه كيف يشاء لامر الحكمه ولا اعتراض على مايتصرف في ملكه وعبيده، او په تحقيق سره موږ وخداى ﷻ ته راجع كيږي يعني په آخرت كي نو خداى ﷻ به موږ ته ثوابونه پر صبر راكړي او تر هغه نعمتو چي زموږ څخه يې په دنيا كي واخستل نعم العوض به راكړي.

**پوه سه:** چي خطاب د بشر و عليه الصلوة والسلام ته دى، او هر هغه چاته چي دى اهل د بشارت وي من العلماء.

**فائده**: مصیبت هر هغه مکروه ته وايي چي انسان ته ورسيږي ولو كه ډېر كم مكروه وي، په حديث مبارک کي راغلي دي چي د عليه الصلوة والسلام د چوټي بند وشکېدی، نو ده ﷺ استرجاع وويله نو صحابه کرامو ﷺ ورته وويل أمصيبة يارسول الله؟ فقال رسول الله ﷺ چي هر شی چي مؤمن ته ورسيږي او دده طبعيت يې نه غواړي هغه مصيبت دی، رواه الطبراني رحمه الله في الكبير من حديث ابي امامة ﷺ وفي الحديث الذي رواه ابن ابي حاتم والطبراني والبيهقي، آنحضرت ﷺ فرمايي كه چا انا لله وانا اليه راجعون ووايه، په وخت کي د يو مصيبت خدای ﷻ به جبيره دده د مصيبت وكړي او په آخرت کي به احسان ورسره وكړي، او ده ته به په دنيا کي داسي عوض ورکړي چي دی به په راضي وي.

**فائده**: سعيد بن جبير ﷺ وايي چي خدای ﷻ په مصيبت کي دونده لویٔ نعمت نه دی ورکړی هيڅ امت ته لكه دي امت محمديه ﷺ ته يعني كلمة الاسترجاع، نو كه يې يو چاته ورکولای نو يعقوب ﷺ ته به يې ورکړی وای الاترى الى قول يعقوب في فراق يوسف ﷺ "يااسفى على يوسف الآية.

**فائده نحويه**: پوه سه چي دا قول د خدای ﷻ وبشر الآية معطوف دی پر ټوله ماقبل آيتو باندي عطف القصة على القصة، او يا يې معطوف عليه محذوف دی يعني انذر الجازعين يعني بې صبره كسان په مصيبت کي. وبشر الصابرين آه.

**پوه سه**: چي چونكه اذا لپاره د وقت حاضر دی، نو په دې قول کي د خدای ﷻ اذا اصابتهم آه اشاره ودې ته ده چي معتبر هغه صبر دی چي په وخت کي د رسېدو د مصيبت وي ولي چي په مرور د زماني زړه پخپله ډاډه كېږي او مصيبت خندي هېرېږي.

**فائده**: يوازي استرجاع د خولې كفايت نه كوي بلكه د زړه همراهي هم شرط ده په دې معنا چي مصيبت زده به دا تصور كوي چي زه د څه شي

لپاره خدای ﷻ پیدا کړی یم، او دا به یې هم یقین وي چې زه په آخرت کې د خدای ﷻ حضورته ورځم او زما د مصیبت ثواب به راکوي، او داغه رنګه مصیبت رسېده د خدای ﷻ په نورو نعمتو کې چې خدای ﷻ وده ته ورکړي او هنوز هم باقي دي فکر وهي تا چې ده ته دا یقین سي چې مابقي نعمتونه د خدای ﷻ پر ده باندې اضعاف مضاعفه دي د هغه نعمت چې خدای ﷻ دده څخه بېرته واخستی، نو پر مصیبت به صبر وده ته آسان سي، مثلاً که یو سړي وچاته سل روپۍ ورکړي وي او یوه روپۍ بېرته خندي واخلي او نه نوي (۹۹) وربربږدي باید دا سړی ډېره بې صبري ونه کړي.

**درویش وایي:** چې په کلمه کې د استرجاع ډېرې فائدې سته

(۱) په دې کلماتو ژبه مشغوله ساتل د نالائقو خبرو څخه سړی راګرځوي، یعني الجزع په خوله.

(۲) زړه ته د مصیبت زده تسلي رسېږي او غم پر سپکېږي کمایدل علیه التجربة.

(۳) د شیطان طمع په ناوړه خبرو کې دده څخه قطع کېږي.

(۴) بل سړی چې دا کلمات د استرجاع د مصیبت زده څخه واوري هغه هم د خپل مصیبت په وخت کې په ده پسې اقتداء کوي.

(۵) دی چې په ژبه دا کلمات د استرجاع ووایي زړه به هم ان شاء الله ددې کلمې ومعنا ته متوجه او قضاء الهي ته به تسلیم سي.

**درویش وایي:** چې د سیدتنا ام سلمه ﷺ څخه روایت دی چې یو وخت په یو موعظت کې دې له رسول الله ﷺ څخه دا خبره اوریدلې وه چې که یو څوک په وخت کې د مصیبت وایي انا لله وانا الیه راجعون، او وروسته ووایي چې خدایه ماته بنه عوض راکړې تر هغه نعمت چې تا زما څخه واخستی، خدای ﷻ به مصیبت زده ته په دې دنیا کې بنه عوض ورکړي تر ماخذمنه. نو امه سلمه ﷺ وایي چې څه وخت زما مېړه وفات سو یعني ابو

سلمه نو ما استرجاع وویل لکن زه په دې فکر کې نوم چې که زه د نعم العوض خواست وکړم نو تر ابو سلمه به څوک ښه زوج وماته راکړي، خو بیاهم د علیه الصلوة والسلام د فرمودې سره موافق د ښه عوض خواست مې وکړی، نو چې زما عده تېره سوه علیه الصلوة والسلام وماته مرکه وکړه او ما هم قبوله کړه او د علیه الصلوة والسلام په زوجیت سره مشرفه سوم. نو هغه د مخه اورېدلي حدیث ته مې عقیده ټېنګه سوه.

**درویش وایي:** چې داوو نقل بالمعنی د هغه حدیث متفق علیه.

**پوښتنه:** په یو مصیبت کې ژړا بې صبري ده او که څرنګه؟

**ځواب:** خدای ﷻ وایي لا یکلف الله نفساً الا وسعها نو ددې آیت په مقتضی صرف د سترګو اوښکي تویول بې صبري نه ده ولې چې دا د سړي په اختیار کې نه وي، البته په زوره چغې وهل یا کالي پر ځان خیرل یا له خدای ﷻ څخه ګله کول ګناه او بې صبري ده، په حدیث مبارک کې چې بخاري یې هم روایت کړی دی راغلي دي چې ابراهیم چې د علیه الصلوة والسلام اخري زوئ و، هغه وخت چې د مرضعه په کور کې مریض سو او عمر یې تخمیناً شپاړس (۱۶) میاشتي و، نو علیه الصلوة والسلام د خپل زوئ پوښتني ته ورتلی یوه ورځ چې ورغلی د ابراهیم د زکندن وخت و او نفس یې په زوره زوره سره کښی، نو علیه الصلوة والسلام خپل دغه زوئ راواخستی او یو وار یې بوئ کړی او یو وار یې پخپله غېږ کې پرې ایستی او ورته کتل یې، نو د علیه الصلوة والسلام د سترګو مبارکو څخه اوښکي را وبهېدلې، عبدالرحمن بن عوف ﷺ چې په دغه واقعه کې حاضر و، و علیه الصلوة والسلام ته یې وویل وانت یا رسول الله؟ یعني ته هم ژاړې، د هغه خیال دا و چې اوښکي تویول به بې صبري وي، نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل هذه رحمة وانما یرحم الله من عباده الرحماء، ثم قال ﷺ: القلب یحزن والعین تدمع ولا نقول الا مایرضی به الله تعالی انا لله وانا الیه راجعون، ثم قال ﷺ وانا بفرقک یا ابراهیم لمحزنون، او کما قال رسول الله ﷺ.

أُولَٰٓئِكَ عَلَيۡهِمۡ صَلَوَٰتٞ مِّن رَّبِّهِمۡ وَرَحۡمَةٞۖ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُهۡتَدُونَ ﴿١٥٧﴾

او دغه کسان چي د مصیبت په وخت کي انا لله وانا الیه راجعون وایي پر دوئ باندي صلوة له جانبه څخه د رب ددوئ او رحمت دی او هم داغه کسان دي چي و حق لاري ته رسېدلي دي، ولي چي دوئ په وخت کي د مصیبت رسیده استرجاع وویله او په قضاء الهي یې رضی ښکاره کړه .

**پوه سه:** چي مذهب د جمهورو علماؤ دادی چي صلوة په اصل وضع کي دعاء ته وایي، او دلته مراد څندي هغه شی دی چي پر دعاء مترتبېږي یعني برکت او رحمت او مغفرت دی، نو رحمت یې تاکیداً ذکر کړی دی.

**فائده:** وجه د جمعیت د صلوات تنبیه ده پر کثرت د انواعو.

**پوښتنه:** صلوات خو له دي سببه چي جمع سالم ده نو جمع قلت ده کما هو القانون الصرفي، او سره ددي چي اقسام د صلوات د خدای ﷻ بېخي ډېر دي چي د جمع کثرت وحدودو ته داخل دي؟

**ځواب:** دلته جمع قلت مستعاره ده د جمع کثرت لپاره، لکه تشنیه چي مجازاً لپاره د جمع کثرت راځي کما في لبیک وسعدیک.

**پوښتنه:** څه حکمت دی چي د جمع کثرت خپل لفظ یې نه راوړی بلکه لفظ د جمع قلت یې ورته مستعار کړی؟

**ځواب:** په دې استعاره کي تنبیه ده پر دې چي صلوة مع غایة کثرتها قلیلة في جنب عظمته تعالی کذا في الحوامش للبیضاوي .

**فائده:** مراد له رحمت څخه معنا حقیقي د هغه نه ده ای رقة القلب یقتفی التفضل والاحسان من رق له لتنزیه تعالی من الاعضاء ولان الرقة انفعال وهو تعالی منزه عن الانفعال بلکه مراد څندي مایترتب علی الرقة المذکورة دی من

التفضل والاحسان، او په صحیح حدیث کي راغلي دي من استرجع عند المصیبة جبر الله تعالی مصیبته واحسن عقباه وجعل له خلفاً صالحاً یرضاه.

**درویش وایي:** چي ددې خلف صالح یقین د حدیث څخه د ام سلمه ﷞ زدکړه کمامر تفصیله عنقریب، حاکم په مستدرک کي دا حدیث راوړی دی چي څه وخت چي د معاذ بن جبل ﷜ زوئ مړ سو نو علیه الصلوة والسلام د تعزیت او تسلي لپاره ومعاذ ﷜ ته داسي نوشته کړه قبضه منک باجر کثیر الصلوات والرحمة والهدی ان احتسبت. خدای ﷻ ستا زوئ له تاڅخه واخستی په ډېر لوئ اجر وثواب چي عبارت د صلوات او د رحمت اود هدایت څخه دی که نه صبر وکړې. د عبدالله بن مسعود ﷜ څخه روایت دی چي که زه له اسمانه را ایله سم ماته خوښتر دی چي زه په یو شي کي د قضاء الهي ووایم چي کاشکي دانه وای پېښه سوې. او د حضرت علي ﷜ څخه روایت دی که چا په وخت کي د خبرو د مصیبت لاس پر ورانه ووهه فقد حبط اجره یعني ثواب د مصیبت یې له لاسه ورکړی. یعني د ورون وهل له لاس د بې صبرۍ علامه ده. وروي عن عمر ﷜ انه قال فی هذه الآیة نعم العدلان ونعمت العلاۃ یعني ښه دوه انډي دي او ښه سر باري دی له عدالانو څخه مراد د عمر ﷜ "اولئک علیهم صلوات من ربهم" د یوه انډي د بار د اوښي دی "ورحمة" دا بل انډي دی د بار "واولئک هم المهتدون" دا یې سر باري دی.

**یوه سه:** چي کلام د عمر ﷜ مبني پر کنایه دی.

**مسئله:** انسان او مؤمن ته چي یو مصیبت ورسېږي له جانبه څخه د خدای ﷻ لکه ناجوړي یا موت الاولاد والاقارب وامثال ذالک من المکاره والمصائب یجب الصبر علیها لان ماجاء من جانب العدل المطلق والحکیم بالحق لیس الا مقتفی عدله وحکمته فیجب علی المؤمن ان یرضی بقضائه تعالی ویتقبل ان ذالک خیر له في الدارین وان مافعله الحکم لیس الا لمصلحته یه فیصبر علیه صبراً جمیلاً بلا جزع، او که چېري یو مصیبت د ظالمانو له خوا پر مسلط سي پر ده یعني پر مؤمن باندي واجبه نه ده چي

صبر به کوي بلکه ده ته رواه ده چي هغه ظالم دي له ظلمه څخه منع کړي او که هغه ظالم د ظلمه څخه نه منع کېدی بیله جنګه نو جنګ دي ورسره وکړي که یې دی مړ کړی شهید دی.

**پوه سه**: چي دا مسئله په ظلم بالکفر والمعاصي کي ده او که ماسوی د کفر او معاصي وو څخه بل ظلم ظالم کاوه کالضرب والشتم وغیرها، نو په مقتضی ددې آیت جزاء سیئة سیئة بمثلها ده ته رواه ده چي له ظالمه خپل مکافات واخلي، لکن صبر اولی دی کمایدل علیه مظالم مشرکي مکة علی رسول الله ﷺ وعلی اصحابه ﷺ وقد مر نبذ من تلک المظالم في هذا التفسیر وسیئاتي بعضها فیما سیئاتي ان شاء الله تعالی.

**پوه سه**: چي بلایا له جانبه څخه د خدای ﷻ دي لپاره د تصفیه د باطن د مبتلی دي، نو څکه ددې حدیث مبارک چي علیه الصلوة والسلام وایي "ما اوذي نبي ماأوذیت" علماء د تصوفو یې داسي ترجمه کوي ماصفي نبي مثل ماصفیت.

**بیت**

صائب شکایت از ستم یار چون کند
هرجا که عشوه هست وفا وجفا یکي است

د امام حسن بن علي وفاطمة ﷺ څخه روایت دی چي "سمعت جدي رسول الله ﷺ یابني علیک بالقنوع یعن اصبر علی الفقر والمسکنت تکن من اغنی الناس، نو ته به لوئ غني له خلګو څخه یې، واداء الفرائض" او فرضي کارونه کوه هر قسم فرض چي وي "تکن من اعبد الناس" نو ته به لوئ عابد د خلګو یې "یابني ان في الجنة شجرة یقال لها شجرة البلوی یوتی باهل البلایا یوم القیامة، هغه کسان په را وسته سي چي په دنیا کي پر دوئ بلایا مسلط کړه سوي وي، فلا ینشر لهم دیوان ولا ینصب لهم میزان، نه ودوئ ته کوم دفتر یعني عمل نامه خلاصول کېږي، او نه ددوئ د عملو د

تللو لپاره کوم ترازو سته "یصب علیهم الاجر صبا؛ ثم قرء رسول الله ﷺ انما یؤتي الصابرون اجرهم بغیر حساب.

**درویش وایي:** چي له دې قبلې څخه دې هغه مصائب او مظالم چي لکه باران د پسرلي چي پر امامینو السعیدین الشهیدین ابی محمد بن الحسن وابي عبدالله الحسین رضي الله عنهما باندي د ظالمانو معلوم الحال له خوا وورېده کما هو المبسوط في التواریخ الاسلامیة ولهذا قال رسول الله ﷺ حین سئل ای الناس اشتد بلائه، قال ﷺ الانبیاء ثم الامثل فالامثل وفي روایت ثم الاولیاء ثم الامثل فالامثل. قال ﷺ یبتلی الرجل علی حسب دینه فان کان في دینه صلب اشتد بلائه وان کان في دینه رقة هون علیه حتی یمشي في الارض ماله ذنب رواه الترمذي وقال حسن صحیح ورواه ابن ماجه والدارمي رحمهم الله ایضاً.

**درویش وایي:** چي پر بلاؤ باندي د صبر په باره کي دا یو خوږ حکایت واوره. تاریخ وایي چي په زمانه کي د سلیمان بن داود علیه السلام چي سلیمان علیه السلام ته خدای ﷻ په منطق الطیر سره پوهنه ورکړې وه. یوه سړي په زرو روپۍ پر یو مرغه احسن الصوت ورکړي وې او داسې خوش اوازه و چي خلګ به د هغه مرغه وصوت ته حیران وه. او پر خپل مالک لاپر ګران و یوه ورځ یوه بل مرغه دده په رنګ پر قفص کښېنستی او رېز یې وکړی او هغه مرغه ولاړی. د قفص مرغه ګونګ سو او رېز او هغه خوش اوازي یې پرېښول او مالک یې ډېر پرېشانه سو، نو ورغلی و سلیمان علیه السلام ته ماجرا د مرغه یې ورته بیان کړه، سلیمان علیه السلام ورته وویل چي ورسه هغه مرغه سره له قفسه راوړه. مرغه چي یې ورووړی نو سلیمان علیه السلام ومرغه ته نصیحت وکړی چي ستا مالک پر تا حق د تربیه لري نو ته ولي اوس ګونګی یې او خپل پخوانی رېز دي پرېښوی، مرغه ورته وویل یانبي الله زما ومالک ته ووایي چي زما د رېز د اواز څخه زړه صبر کړه تر څو چي زه په قفص کښې یم، سلیمان علیه السلام ورته وویل ولي، مرغه ورته وویل چي زما رېز او اواز حسن د بې صبري له سببه و وخپل

وطن او هم جنسوته، نو هغه بل مرغه چي زما پر قفص راغلی ماته یې وویل چي قفص والا چي ته بندي کړی یې په سبب ستا د ژړا او رېږ ته صبر وکړه او ساکت سه په صبر به دي خدای ﷻ له بنده خلاص کړي، سلیمان ﷺ ومالک ته د مرغه حال د مرغه ووایه، نو هغه سړي ورته وویل چي حال داسي دی نو مرغه له قفصه ایله کړه یا نبي الله ولي ماچي دی په قفص کي بندي کړی و د رېږ او د ښه اواز له سببه، نو سلیمان ﷺ زر روبی، وهغه سړي ته ورکړې او مرغه یې ایله کړی او مرغه والوتی او بغاري یې کړې سبحان من صورني وفي الهواء طیرني ثم في القفص حبسني بالجزع وعدم الصبر ثم بالصبر خلصني من سجن القفص ثم ذهب الطیر الی ماشاء الله.

**مثنوي**

| | |
|---|---|
| دا نه باشي مر غکا نت بر چنند | غنچه با شي کو د کانت بر کنند |
| هر که کرد او حسن خود را در مزاد | صد قضایي بد سوي او ر و نهاد |
| تن قفص شکلست وتن شد خارجان | د ر فریب د ا خلان و خا رجان |

**درویش وایي:** چي مظهري رحمه الله په روایت د ترمذي له جابر رضي الله عنه څخه روایت کړی دی قال قال رسول الله ﷺ یود اهل العافیة یوم القیامة حین یعطی اهل البلاد الثواب" خوښه به وي د هغو کسانو چي ژوند د دنیا په عافیت کي پر تېر سوي وي یعني بلایا او مصیبتونه یې نه وي لیدلي په ورځ کي د قیامت هغه وخت چي دوئ ویني چي اهل البلاء ته یعني هغه کسان چي د دنیا ژوند په مصیبتو کي پرتېر سوی وي او دوئ هم صبر پر کړی وي خدای ﷻ څومره ثوابونه ورکوي لو ان جلودهم کانت قرضت في الدنیا بالمقاریض چي کاشکي زمونږ پوستونه په دنیا کي په غچي پرېکېدای، وروي في الحدیث المتفق علیه للبخاري ومسلم عن ابي سعید الخدري رضي الله عنه عن النبي ﷺ مایصیب المسلم من نصب ولا وصب ولا هم ولا حزن ولا اذی ولا غم حتی الشوکة یشاکها، مثلاً چي یو څوز په پښه جګ سي الا کفرالله من خطایاه. یعني بعض ګنهونه د هغه ولعل المرادبه والله اعلم المعاصي الصغیرة لان الکبائر

تحتاج کفرانها الی التوبة علی المشهور من المذهب ولا یبعد عن کرمه تعالی وعموم رحمته علی هذه الآمة ان یکفر ببعض من تلک الامور الکبائر ایضاً والله اعلم، وروي عن محمدابن خالد السلمي عن ابیه عن جده ﷺ قال قال رسول الله ﷺ ان العبد اذا سبقت له من الله منزلة لم یبلغها بعمله ابتلاه الله تعالی في جسده او في ماله او ولده ثم صبره علی ذالک حتی یبلغه المنزلة التی سبقت له من الله، رواه احمد وابو داؤد ر.

**ترجمه**: علیه الصلوة والسلام فرمایي چي یو بنده ته د خدای ﷻ له خوا څخه یوه درجه یعني درجه علیا په جنت کي وراندي منظوره سوې وي او دی یعني بنده وهغې درجې ته نه سي رسېدلای په عمل خپل سره نو خدای ﷻ دی په بلا او مصیبت سره اخته کړي یا په بدن کي او یا په مال کي او یا په اولاد کي او بیا خدای ﷻ وهغه بنده ته توفیق د صبر ورکړي حتی چي د هغو مصیبتو په سبب یې خدای ﷻ ورسوي هغه درجې د ثواب ته چي خدای ﷻ وده ته سابقاً منظوره کړې وي، وسید النساء فاطمة الزهراء ﷺ ته بعض رواتو دا بیت منسوبه کړی دی چي څه وخت چي آنحضرت ﷺ له دې زمانې څخه ودار جاوداني ته رحلت وکړی نو فاطمې ﷺ داسې وویل

صبت علی مصائب لو انها صبت علی الایام صرن لیالیا

**درویش وایي**: چي ولعل هذا هوالسر فیما اصاب الا مامین الهمامین السعیدین ابی محمد الحسن وابی عبدالله الحسني ﷺ.

إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ

**پوه سه**: چي صفا او مروا د دوو غرو نومان دي په مکه معظمه کي او شاعر جمع د شعیرة ده، شعیرة علامې ته وایي لکن وروسته یې اطلاق پر ځایو د عبادت د خدای ﷻ لکه کعبه مبارکه عرفات، منی صفا ومروة او پر زمانو د عبادت الهي لکه اشهر حرم او رمضان، او پر علامو د عبادت الهي لکه اذان وغیره کبري نو معنا د آیت داده چي په تحقیق صفا او مروه له

علاماتو څخه د عبادت الهي دي وهو السعي بينهما يعني لامن شعائر الجاهلية كما كانا في الجاهلية.

**فائده**: وجه د ربط ددې آیت دمخه آیتو سره بعض مفسرین دا بیانوي چې په ماقبل آیتو کې ذکر د جهاد في سبيل الله وشو او په دې آیتو کې بیان د حج دی، وبينهما مناسبة جليلة ولې چې په دواړو کې انفاق د اموالو غواړي او پر نفس باندې ډېر ګران پرېوځي، او بعض مفسرینو داسې مناسبت بیان کړی دی چې په دمخو آیتو کې خدای ﷻ مؤمنانو ته تلقین د صبر کړی و په مصائبو کې ددنیا، او په دې آیت اشاره وده ته کوي چې یود مصائبو څخه ددنیا چې تاسې باید صبر پر وکړي دا هم دی چې خلګ به ستاسې ددین پر طعن او عیب وایي لکه یهودانو چې به دا ویل چې مسلمانانو که څه هم هغه دوه بته چې په نامه د اساف او نائله یې شهرت درلودی او اهل جاهلیت به دا بتان مسحه کول او تر منځ ددې دوو بتانو به یې سعي کوله، دواړه یې مات کړه او وه یې غورځول لکن څایونه ورمعلوم دي اوس هم دوئ یعني مسلمانان په هغه پخواني نیت تر منځ د صفا او مروه سعي کوي فرد الله عليهم واشار الى المسلمين على الصبر على مثل هذه المطاعن.

**پوه سه**: چې اساف د یو نر نوم و په جاهلیت کې او نائله د یوې ښځې نوم و، او دوئ دوو د کعبه په خونه کې زنا سره کړې وه، نو دوئ دواړه خدای ﷻ مسخه کړه او ډبرې یې خنډې جوړې کړې، او نر یې د صفا پر غره نصب کړی او ښځه یې د مروه پر غره ودروله، اولین نیت د اهل جاهلیت دا و چې خلګ به دا ویني او عبرت به ځندې واخلي، او بل څوک به خانه کعبه ته داسې د بې عزتی په سترګه نه ګوري رفته رفته په مرور د زمانو شیطان ودوئ ته دا وسوسه ورواچول چې دا بتان پر وجه د تعظیم مسح کوئ آخر الامر اهل جاهلیت یې عبادت شروع کړی، وروسته چې مکه معظمه فتح سوه او بتان ټول مات سوه او په ضمن کې د اساف او نائله بتان هم مات او

لېږي کړه سوه، نو د مسلمانانو په زړو کي څه خيره پيدا سوه چي سعي د صفا او مروه خو د جاهليت ميراث دی موږ يې بايد نه وکړو او سره ددې چي يهوديان موږ ته پېغور هم راکوي کمامر آنفاً نو آيت د ان الصفا والمروة الى آخر الايات نازل سو. او د بخاري د روايت سره سم په حديث شريف کي راغلي دي چي انصار د مدينې په وخت کي د جاهليت به يې احرام د منات چي د يو بت نوم و په مشلل کي تاړه نو وچي دوئ به مکې ته راغله نو په منځ کي د صفا او مروه به يې سعي نه کول ددوئ خيال دا و چي د منات به خوابده سي چي احرام مو زما په نامه وتاړه او سعي تر منځ د نورو خدايانو چي اساف او نائله ده کوي، نو انصار مسلمانان سوه نو يې دا موضوع و عليه الصلوة والسلام ته پېش کړه نو آيت مذکوره نازل سو.

**درويش وايي**: چي د دغو دوو شانو نزول تر منځ منافات نسته ولي دا آيت ددارو په باره کي راغلی دی، اما الاول فقد رواه الحاكم عن ابن عباس ﷺ. واما الثاني فرواه الشيخان عن عائشة ﷺ.

**درويش وايي**: چي په حديث د حاکم بيضاوي او حواشيو د بيضاوي اکتفاء کړې ده، او صاحب د روح البيان هم په هغه اکتفاء کړې ده. واما المظهري ﷺ هغه دواړه روايته راوړي دی او دا يې هم ويلي دي چي ددغو دوو رايو تر منځ منافات نسته لان الآيت المتلوة يحتمل ان وردت في كلتا الواقعتين وهذا هو الاول.

**پوښتنه**: اول سبب د سعي بين الصفاء والمروة څه و؟

**ځواب**: قصه خو ډېره اوږده ده او د سورت بقره د الٓمٓ د جزء په تفسير کي هم مفصله تېره سوې ده لکن معه حاصل د ځواب دادی چي ابراهيم ﷺ خپل شيرخوره زوئ اسماعيل ﷺ او د هغه مور بي بي هاجره ﷺ د بکې په شېله کي چي د مکې پخواني نوم و، کښېنته کړه او يو ژی اوبه او يو څه خورما يې ور پرېښول او دی خندي ولاړی، نو هاجره يوازي او

یوازې په دغه شپله کې چې هیڅ انسان پکښې نه و شپې او ورځې به یې تېرولې، او خورما به یې خوړل او اوبه به یې څښلې، آخر الامر اوبه او خورما ختمه سوه او اسماعیل ﷺ په حالت کې د لوږې او تندې بېقراره سو، او هاجرې ددې بېقرارۍ طاقت نه درلودی نو زوئ اسماعیل یې چې د اوس د زمزم ځای دی دلته غرنی درخته ولاړه وه تر هغې لاندې یې پرېښو او دا وحرم مبارک ته نژدې غر چې نوم یې صفا دی وختل چې ګوندې یو څوک ووینې او په عین حال کې یې خپل زوئ اسماعیل ته هم کتل چې ژوندی دی او که نه. چې تر اوسه دا سنت ددې باقي دی یعنې حاجیان چې د صفا پر غره ودرېږي د کعبې شریفې وخواته ګوري، خیر پر صفا یې څوک ونه لیدی، نو د صفا څخه راکښته سوه چونکه لاندې تر صفا ژوره شپله وه چې اوس هغه شپله ډکه کړه سوې ده، نو دې په ځغاسته تر هغه شپلې خان وایستی او د مروه پر خوا روانه سوه چې د هغې مبارکې دغه ځغاستې تر اوسه سنت باقي دي، یعنې د میلینو اخضرینو تر منځ حاجیان ځغلي، خیر پر مروه ودرېدل او په عین حال کې یې خپل نازولي شیر خوار زوئ ته کتل، حاصل دا واوره دې د صفا او مروه تر منځ اوه واره ځغاستې وکړې اخیرې وار چې مروه ته راغله یو ږغ یې تر غوږ سو او یو سړی یې ولیدی چې د زمزم پر برابر یې پنده کنبکښل اوبه راوغورځېدې. هاجرې پر را میدان کړه او چابک یې خپل ژی ډک کړی او پر اوبو باندې یې خاورې او شیګې راټولولې او د اوبو منځ یې غاراوه، او هغه سړی جبرائیل و صرف یې دې ته اطمنان ورکړی چې ته خوا مه بدوه دلته بیت الله شریفه پخوا وه چې هغه ابراهیم ﷺ او ستا زوي از سر نو جوړه کړي، او سړی نور غائب سو.

**درویش وایي**: چې مفصله قصه پخپله ځای کې مطالعه کړه دلته په خواب کې د سوال مذکور ماسمعت هم کافي دی، ولله الحمد والمنة والصلوة والسلام علی خیر البریة.

فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ اَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ اَنْ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا

نو څوک چي حج د بيت الله کوي او يا عمره کوي نو ګناه نشته پر ده چي طواف وکړي پر صفا او مروه يعني السعي كما يتخيل الى البعض المؤمنين يعني بانه من افعال الجاهلية او بسبب الاحرام المناة الطاغية بالمثلل کمامر في شان نزول الآية عنقريب.

**فائده:** د امت محمديه ﷺ د مذاهبو اربعه و پر دې اجماع ده چي سعي بين الصفاء والمروة مشروع في الحج والعمرة ده، لكن قال ابو حنيفه رحمه الله چي سعي واجبه ده جيره په دم سره کېږي، او امام مالک او شافعي رح وايي چي سعي رکن ده يعني جبره يې په دم سره نه کېږي، لقوله عليه الصلوة والسلام اسعوا فان الله كتب عليكم السعي.

والجواب عن جانب الحنفية چي آيت مبارک خو صرف دلالت پر دې کوي چي په سعي بين الصفاء والمروة ګناه نشته ومعناه الجواز والحديث المذكور مورږ منو چي صحيح دی ولي احمد او طبراني يې روايت کړی دی، لكن دا نه منو چي حديث مذکور يقيناً پر رکنيت دلالت نه کوي، ولي چي امر د اسعوا سره د تعليل فان الله آه، پر وجوب هم صادق دی کمالايخفى على من زوال اصول الفقه، والوجوب ادنى رتبةً من الركنية فيحمل الحديث المذكور عليه لانه متيقن، او كه چېري ومنو چي حديث قطعي الدلالة دی پر رکنيت لكن سند خو يې ظني دی ولي دا حديث مبارک نه حديث متواتر دی او نه حديث مشهور، وقد تقرر في الاصول ان الركنية لايثبت الا بالدليل القطعي الدلالة والثبوت، نو بايد سعي واجب وګڼو تاچي آيت او حديث دواړه سره جمعه سي كذا في شروح البيضاوي والتفسير القرطبي، او د امام احمد رحمه الله څخه روايت دی چي سعي يې سنت ده وبه قال انس وابن عباس رض دوئ په دغه آيت سره استدلال کوي، فلا جناح آه، ولي چي نفي د ګناه خو دلالت کوي پر اختيار د حاجي نو چونکه سعي مباح مطلق خو نه ده لکه اکل او شرب لقوله تعالى من شعائر الله، نو ادنى درجه داده چي سنت سي.

**درویش وايي:** چي تولـه تفاسیر پر دې متفق دي چي دا استدلال ضعیف دی، ولي چي نفي د جناح خو پر جواز د لالت کوي یعني چي سعي حرامه نه ده، والجواز داخل في معنا الواجب لان الواجب هو الجائز اللازم ده فکیف یدفع بالجواز الوجوب.

**پوښتنه:** آیت که څه هم نفي د وجوب نـه کـوي لکن اثبات د وجوب خو هم نه په کېږي لانه یجوز انیکون سنتاً؟

**ځواب:** موږ په آیت سره وجوب نـه ثابت و بلکـه صرف جواز او وجوب يې په دې حدیث مذکور سره ثابته و، او بل په فعل د علیه الصلوة والسلام چي علیـه الصلوة والسـلام سعي کړې ده، او دا يې هم ویلي دي خذوا عني مناسـککم، والسـعي من مناسـک الحج وخذوا امر، وهو یقتضي الوجوب والرکنیـة لا یثبـت بالحـدیث کمـا ذهـب الیـه الشـافعي ومالـک رح لان الحدیث خبر واحد فافهم.

**فائده:** حج په لغت کي قصد تـه وايي. او اعتمار زیارت تـه وايي. او په شرع شریفه کي هغه دوو عبادتو ته وايي چي غالباً هر سړی په پوهېږي، او اصل د یطوف یتطوف دی ادغمت التاء في الطاء کما هو القانون الصرفي.

د طواف او سعي په باره باب د تفعـل وزایه چي غالباً لپاره د تکلف وي کما في الشافیة. لپاره د تنبیه پر دې چي سعي کونکی دي باید ډېر زیار او کوشش وکړي په سعي کي د صفا او مروه مع بعد مسافة السعي.

**درویش وايي:** چي خصوصاً په اوسنۍ زمانه کي چي اذدحام د خلګو په نهایت ډېر والي کي دی یعني (۱۴۲۵ هـ) وقبل ذالک بسنین کثیرة کما لایخفی.

**پوه سه:** چـي پـه اتفـاق د علمـاؤ د امـت سعي بـین الصـفاء والمـروة اوه (۷) شوطه ده، او پردې هم تقریباً اجماع ده چي لـه صفا څخـه تر مروه پوري یو شوط دی، او د مروه څخه تر صفاء پوري بـل شـوط دی. او د جریر طبري او د ابو بکر صوفي څخـه د شافعیانو او د امـام طحـاوي څخـه د حنفیـانو نـ

داسي روایت راغلی دی چي له صفا څخه تر مروه. او بېرته صفا ته راتله دا یو شوط دی وهکذا في آخیر السعي دوئ سعي قیاسوي پر طواف البیت باندي یعني په طواف البیت کي خو له حجر اسود څخه شروع او بېرته حجر ته راتله دا یو شوط دی بالاجماع. نو باید سعي هم داغسي وي، د جمهورو علماؤ رح دلیل داسي دی چي نقل مشهور له زماني څخه د آنحضرت ﷺ الی یومنا هذا پوري دادی چي طواف بالبیت او سعي بین الصفاء والمروة فرق سره لري وکفی بهذه الاستفاضة. او بناء پر قول د نامورو علماؤ خو ختم د سعي پر صفا لازمېږي کما لایخفی.

وَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَإِنَّ اللَّهَ شَاكِرٌ عَلِيمٌ ﴿١٥٨﴾

**پوه سه:** چي تطوع باب تفعل دی د طوع څخه ماخوذ دی. طوع خپل په خوښه کار کول دي یعني بېله اکراه او اجباره. لکن اکثره استعمال د تطوع په نفلي عباداتو کي کېږي ولهذا قال روح البیان فیه حث علی نوافل الطاعات مطلقاً حجاً کان او عمرة او صلوة او صدقة وغیرها. او بیضاوي اول تفسیر داسي کړی دی ای فعل کان فرضاً کان او نفلاً. او مظهري تبعاً للبیضاوي هم تفسیر عام کړی دی او دده او د ورح البیان تفسیر مروي دی له حسن بصري څخه حیث قال اراد سائر الاعمال یعني فعل غیر المفترض علیه من صلوة وزکوة وطواف وغیره من انواع سائر الطاعات. او مقاتل او کلبي رح په نفلي طاعت خو تفسیر کړی دی لکن مناسب له مقامه سره د حج او عمرې حیث قال فمن تطوع ای زاد في الطواف بعد الواجب او یا یې تطوع وکړه په حج یا په عمرې سره بعد اداء الحج المفروض.

**درویش وایي:** چي عام تفسیر او خاص تفسیر دواړه یو مرجح لري عام په اعتبار د عموم او خاص په اعتبار د مناسبت د مقام.

**الاعراب:** تطوع فعل لازمي دی نو نصب د خیراً چي منصوب دی بناء علی انه مفعول مطلق دی په اعتبار د موصوف مقدر ای تطوعاً خیراً، او یا

په عبارت کي حذف او ایصال دی یعن په اصل کي تطوع متعدي په حرف جر وو یعني تطوع بخیر بیا یې حرف جر حذف کړی او تطوع پخپله مفعول ته ورساوه، او یا تطوع چي لازمي دی متضمن معنا لره د فعل متعدي وګرځاوه ای فعل تطوعاً نو خیراً یې مفعول به دی.

**ترجمه:** او هغه څوک چي تطوع د خیر په عمل سره وکړي، نو یې په تحقیق خدای ﷻ شاکر دی د هغه سړي او ښه خبر دی په نیت او اخلاص د هغه.

**فائده:** د شکر نسبت چي وخدای ﷻ ته وسي معنا یې ثواب ورکول دي پر طاعت ولي چي معنا یې حقیقي ده شکر چي اظهار د نعمت دی پر شاکر باندي پر خدای ﷻ محاله ده کما لایخفی.

**درویش وایي:** چي حقي بروسوي د سفیان ثوري رحمه الله څخه یو حیرت انګېزه حکایت داسي کړی دی، سفیان ثوري وایي چي زه یو کال حج ته تللی وم نو پر عرفات ولاړوم او په خیال کي دا فکر راګرځېدی چي هیهات بیا به زه حج له راسم او پر دې عرفات به ودرېږم او که به مرګ زما د عرفات تر منځ حائل سي، زه په دې فکر کي یم چي په خلګو کي یو سپین ږیری سړی و، او ماته په ډېره عصه ګوري، نو زه ورغلم او السلام علیکم یا شیخ مي ورته وویل، ده راته وویل وعلیکم السلام یاسفیان د زړه وباسه هغه سودا چي ستا په دماغ کي درګرځي، سفیان وایي ماته ورته وویل سبحان الله من این تعلم اسمي وتعلم نیتي، شیخ راته وویل الهمني ربي. او شیخ زیاته کړه چي قسم په خدای ﷻ دی چي ما پنځه دېرش (۳۵) واره حج کړی دی او پنځه دېرشم وار پر دغه عرفات ولاړوم او ما په حاجیانو او پخپل ځان کي فکر وواهه چي خدای ﷻ به خپل رحمت عامه ددغو حاجیانو او زما حج قبول کړی وي او که نه، او په دغه فکر کي غرق وم چي لمر ولوېدی او حاجیان ټوله له عرفات څخه د مزدلفې پر خوا تللي وه زه د استغراق څخه د خپل فکر په هوش کي راغلم پر عرفات هیڅ څوک بېله ما

نه و، اخر الامر وروسته تر لمانځه د ماښام او ماخستن خوب راغلی او بيده سوم، نو خوب مي ليدی چي د قيامت ورځ وي او خلګ ټوله پر ميدان د حشر حاضر وي، او عمل نامې نشر سوې او ترازو د اعمالو نصب سو. او پل صراط پر دوږخ وغوړېدی او د جنتو او دوږخو دروازې خلاصي سوې، او د دوږخ له خوا مي دا اواز واورېدی "اللهم وق الحجاج حَري وبَردي. نو دوږخ ته په خواب کي دده نداء داسي وويل سوه دوږخه د نورو خلګو سوال کوه د حاجيانو غم او سوال مه کوه، ولي چي حاجيانو په سفر کي د حج ډېري تندي لوږي او کړاونه وړي دي، او ګرمي د عرفات يې هم پر ځان او د قيامت تندي يې هم پر ځان تېرې کړي دي، او د دوئ په باره کي شفاعت هم قبول سو، ولي چي دوئ زما د رضی لپاره خپل ځانونه او مالونه قربان کړي وه، او شيخ دا هم وويل چي کله راويښ سوم اودس مي تازه کړی دوه رکعته نفل مي وکړه او بېرته بيده سوم بيا مي هغه د مخه خوب عيناً وليدی، په خوب کي ما يو سړي ته وويل چي دا زما دوه خوبونه د الله ﷻ له خوا وي او که به د شيطان له خوا وي، هغه سړي راته وويل چي دا خوب د رحمن ﷻ له خوا دی، بيا يې راته وويل چي ته لاس وغځوه، ما چي لاس وغځاوه پر لاس يې رانوشته کړه من وقف بعرفة وزار البيت شفعته في سبعين من اهل بيته، ترجمه: که څوک ودرېدی پر عرفات او طواف زيارت د بيت الله شريف يې هم وکړی زه يعني خدای ﷻ وايي زه به د هغه حاجي شفاعت په اويا (۷۰) کسه کي دده د اهل بيت يعني د اقرباؤ په باره کي قبلوم يعني په ورځ د قيامت. سفيان ثوري رحمه الله وايي چي شيخ مذکور ماته د لاس نوشته راښکاره کړه او ما هم وويل، بيا شيخ وويل ددغي واقعې وروسته هر کال خدای ﷻ ماته توفيق د حج راکړی دی چي تر اوسه مي درو اويا (۷۳) حجه کړي دي کذا في زهرة الرياض.

**درويش وايي:** چي دا واقعه د عجائبو څخه د قدرت د خداى ﷻ يوه نمونه ده لان عجائب قدرته تعالى لا تنتهى الى حد . اللهم اجعل اسفارى الى الحج مثل ذالک الشيخ رحمه الله فان فى قلبي كان مثل وسوسة الشيخ رحمه الله اولا فبهذه القصة تسلى قلبى فى الجمله آمين

**مسئله:** فى الاشباه والنظائر، چي يو رباط جوړول چي مسلمانان نفع پر واخلي افضل دى تر دوهم حج يعني نفلي .

**درويش وايي:** چي دغه رنگه يو مسجد جوړول تر نفلي حج په طريق اولى بهدى او بيا اشباه وايي چي حج نفلي افضل دى تر نفلي صدقې او حج فرضي اولى دى تر اطاعت د مور او پلار بخلاف الحج النفلي، او حج د غني افضل دى تر حج د فقير ولي چي پر فقير خو حج هلته فرضيږي چي مكې ته ورسيږي او په سفر كي خو دى متطوع دى، او دغني خو سفر هم فرضي دى او ثواب د فرضو ډير دى تر ثواب د نفلو په هر عبادت كي لكن بيا هم توجه او اخلاص قلبي ضروري دى، مثنوى

ميل تو سوى مغيلانست وريگ تاچه گل چينى زخار مرده ريگ

اللهم وجه قلوبنا الى جانب الغيب لامجرد توجه القالب برحمتک ياارحم الراحمين.

***شان نزول الآية.*** ابن جرير رحمه الله او ابن ابي حاتم رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت كړى دى چي معاذ بن جبل رضي الله عنه او سعد بن معاذ رضي الله عنه او خارجة بن زيد رضي الله عنه د څو نفرو څخه علماؤ د يهودانو پوښتنه وكړه د بعض مافى التوراة او هغو منع وكړه د بيان څخه د هغو خبرو فنزل هذه الاية

# إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنزَلْنَا مِنَ الْبَيِّنَاتِ وَالْهُدَىٰ مِن بَعْدِ مَا بَيَّنَّاهُ لِلنَّاسِ فِي الْكِتَابِ

په تحقيق هغه كسان يعني احبار اليهود چي پټوي هغه چي مانازل كړي آه له آيات واضحاتو څخه يعني هغه آيات چي شاهد دي پر صدق د محمد ﷺ

او پټوي هغه هدايت چي يهودو ته لاربنيي او وروسته تر دې چي ماهغه آيات او هدی بيان کړې ده چي کتاب يعنې په تورات کي وخلګو ته يعنې د يهودانو احبارو ته ولي چي احبار خو په مافي التوراة خبر دي عوامو ته چي هرڅه دوئ وايي هغه مني.

**پوه سه:** چي ددې آيت ربط د ماقبل سره دادی چي طواف بين الصفا والمروة خو حق وو بياهم يهوديانو طعن پر وايه. ولي چي عادت ددوئ داوو چي حق يې پټوی وهم يعلمون كما كتموا نعوت رسول الله ﷺ في التوارت.

**فائده:** په للناس کي لام د جنس لپاره دی يا استغراق يعني دغه آيات او هدی مابنکاره کړي دي تولو خلګو ته نه يوازي وپتوونکو ته او سره د هغه کاتمون د امر واضح عام پټوي، وفيه اشارة الى شناعة ضيعهم في الغاية.

أُولَٰئِكَ يَلْعَنُهُمُ اللَّهُ وَيَلْعَنُهُمُ اللَّاعِنُونَ ﴿١٥٩﴾

نو دغه کسان پر دوئ لنت وايي خدای ﷻ او نور لعنت ویونکي.

**پوه سه:** چي لعنت د خدای ﷻ شرل ددوئ دي له رحمت عامه څخه. او لعنت د نورو دعاء د لعنت پر دوئ.

**پوښتنه:** پر دغو کسانو خو هم جنس ددوئ کافران لعنت نه وايي، نو د لاعنون څخه څوک مراد دي؟

**ځواب:** بيضاوي وايي ای الذين يتاتى منهم اللعن. يعني ملائکه ټوله او د انسانانو او له جناتو څخه مسلمانان پر دوئ لعنت وايي، زاد المظهري ودواب الارض كلها.

**پوښته:** الف ولام په څلورو معنا و کي دلام يعني جنس، استغراق، عهد خارجي او ذهني د کومي معنا لپاره دی؟

**ځواب:** شراح د بيضاوي وايي چي لام لپاره د استغراق عرفي دی نحو جمع الاسر الصاغة ای صاغة بلده لاصاغة الدنيا. او عرفا لاعنون د کافرانو هم دغه مذکور انواع دي.

**درويش وايي:** چي احتمال د عهد خارجي هم سته لان المعلوم حالا كالمذكور لفظاً كما لايخفى على من راجع كتب النحو والمعاني، او د ابن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي دوه کسه مؤمنان چي يو پر بل لعنت ووايي که يو مستحق و خو پر هغه لعنت قرار نسي. او که مستحق د لعنت نه و. نو لعنت يې هغو يهوديانو ته رسېږي چي لعنت رسول الله ﷺ پر کړی وي.

**فائده:** په روح البيان کي وايي چي وحوش د غرو او بهائم هم لعنت وايي پر عصاتو د بني آدم فنقول اللهم العن عصات بني آدم چي د دوئ د عملو په سبب زموږ څخه باران منع سوی دی.

إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا وَأَصْلَحُوا وَبَيَّنُوا فَأُولَٰئِكَ أَتُوبُ عَلَيْهِمْ ۚ وَأَنَا التَّوَّابُ الرَّحِيمُ ﴿۱۶۰﴾

مگر پر هغو کسانو لعنت نسته چي توبه وکاږي د کتمانه څخه او د نورو گنهو څخه. او عملونه خپل د شريعت د عليه الصلوة والسلام سره برابر کړي، او دوئ هغه پټ کړی بيان د تورات خلگو ته ښکاره کي، نو د هغو کسانو زه توبه قبلوم او زه تواب او مهربانه پر بندگانو يم.

**پوه سه:** چي تواب صيغه د مبالغې ده يعني د ډېرو کسانو توبه، او يا له ډېرو گنهو څخه توبه قبلوم حتی که د دنيا ټوله کافران په يوه ورځ توبه وکاږي خدای ﷻ يې قبلوي. او يا يو سړی د کفر او د نورو گنهو څخه توبه وکاږي خدای ﷻ يې توبه قبلوي.

**فائده:** د توبې نسبت چي بندگانو ته وسي معنا يې رجوع د گناه څخه ده، او چي نسبت يې خدای ﷻ ته وسي معنا يې رجوع د خدای ﷻ د عقوبت څخه په دې آيت کي دواړه نسبته موجود دي، وفي الحديث المتفق عليه الذي روته عائشة ﵂ قالت قال رسول الله ﷺ ان العبد اذا اعترف (اي په گناه سره اقرار وکړي) ثم تاب (ای رجع عنه) تاب الله عليه (اي رجع الله عن عقوبة.

**پوه سه:** چې مفعول د بینوا" محذوف دی ای مابینه الله في کتابه التوارة چې دا کار متمم د دوئ د توبې دی ولې مسئله فقهیه داده چې که يو چا پر بل چا دین حق فاسد کړی و د شبهې په سبب چې د هغه بل سړي په زړه کې يې ورواچول، نو پس له توبې ځخه د اول سړي پر ده لازمه ده چې د خپلو شبهاتو ازاله به دی په خپله کوي او خلګو ته به وايي چې هغه شکوک او شبهات چې ما تاسي ته په ګمراهان کړي واست زه په هغو کې پر خطا وم، وهو المراد بقوله تعالی واصلحوا وبینوا. او بعض مفسران رح وايي چې مفعول د بینوا چې محذوف دی هغه دادی ما احدثوه من التوبة يعني دغه کسان به وخلګو ته اعلان د خپلې توبې کوي تا چې د کفر عيب له خانو ځخه دفع کړي او نور خلګ په دوئ پسي اقتداء ونه کړي.

**درویش وايي:** چې خفاجي رحمه الله دا توجیه ضیفه ګڼلې ده او دلیل د ضعف يې دا ويلی دی چې نفس توبه او رجوع د کفر ځخه کافي ده چې ورغندی د کفر او طوق د لعنت ددوئ د غاړو ځخه وکاږي ولا يشترط اظهار التوبة لاضرابهم وكذا حال العاصي التائب من معصية.

**پوه سه:** چې پټ کړي آيات د تورات خلګو ته ښکاره کول او يا د خپلو شکوکو او شبهاتو ازاله کول جلا کار دی، او اعلان د توبې جلا شی دی، فلا يرد مايتوهم فافهم. مثلاً يو سړی يهودي څو و لکن امي و نه يې آيات د تورات پټ کړی و او نه يې چاته شکوک او شبهات په زړه کې ور اچولي وه، نو دې سړي چې له يهوديت ځخه توبه وکښل پر ده هيڅ شی اعلان لازم نه دی، وفي حديث رواه مسلم عن انس رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ لله اشد فرحاً بتوبة عبده حين يتوب اليه (هر آئينه خدای ﷻ ډېر خوشحاله دی په توبه سره د بنده دده هغه وخت چې توبه وکاږي بنده دده وخدای ﷻ ته) من احدكم كان راحلته بارض فلاة (تر يوه ستاسي چې هغه وي په يوه مځکه کې چې نيابان وي او اوښه هم ورسره وي) فانفلتت منه وعليها طعامه وشرابه (نو دا اوښه

ولاړه سي له دې څخه او پر اوښه دده خواړه وي او اوبه) یعني ګرمي وي دی تر یوې درختي لاندي بیده سي د یو ګړی لپاره او اوښه چوکه کړي بار پر باندي وي او زنګنونه یې نه وي تړلي ولي خو دده خیال دا وي چي یو ګړی به ارام وکړي بېرته به روانېږي، او دی چي سر ولګوي په غرق خوب بیده سي او اوښه یې په طلب د مرعي سره د طعامه او شرابه ولاړه سي ډېره لېرې. نو دی چي راوېښ سي اوښه نه وي دی یوې او بلې خواته پسي منډه کړي خو د اوښي هیڅ درک نه وي او په عین حال کي دی ډېر تږی هم وي.

فایس منها (نو د اوښه څخه یې امید قطع سي) فاتی شجرة فاضطجع في ظلها (نو دی راسي هغې درختي ته او سر ولګوي) وقد ایس من راحلته (او دده امید د اوښه څخه هم ختلی وي او د مرګ په انتظار وي د تندي په سبب، خو آخر غرق بیده سي) فبین ماهو کذالک (په دې منځ کي چي دی په حال کي د ناامیدۍ بیده سوی وي او تږی هم و) اذا هو بها قائمة عنده (او په دغه دوران کي یعني د خوب دی راویښ سي او اوښه دده وسر ته ولاړه وي سره د ما علیها من الطعام والشراب، یعني ژر ځان اوبه کړي او اوښه تر مهار ونسي) ثم قال من شدة الفرح اللهم انت عبدي وانا ربک (او بیا یې د ډېري خوشحالۍ له کبله خوله خطاوزي داسي خندي وویل سي خدای ﷻ ته زما بنده یې او زما ستا رب یم، یعني دده خو نیت دا و چي داسي ووایي چي خدایه ته زما خدای یې او زه دي بنده یم، لکن د خوشحالۍ د غلبې څخه یې عکس تر خوله ووزي.

**درویش وایي**: چي دغه حدیث مسلم په ډېر اختصار راوړی دی، ما تر نورو مفصلو حدیثو او روایاتو زیات والی بالمعنی پر وکړی تاچي د تفسیر د مطالعه کوونکو په زړو کي ددې حدیث مبارک مکمله معنا نقش سي من الله التوفیق.

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ أُولَٰئِكَ عَلَيْهِمْ لَعْنَةُ اللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ ﴿١٦١﴾

او هغه چي کافران وي او دوئ مړه سي او دوئ پر خپل کفر وي يعني د كتمان څخه د آيتو د تورات يې توبه نه وي کښلي دا تفسير په قرينه د مقام دی، او يا مطلق کافران هر څوک چي وي او دی مړ سي او د کفر څخه خپل يې توبه نه وي کښلي دا تفسير په اعتبار د عموم د لفظ دی، نو کافران پر دواړو تفسيرو پر دوئ باندي لعنت د خدای ﷻ دی او د ملکو او د خلګو ټولو.

**درويش وايي:** چي تفسير د عليهم لعنت الله آه عنقريب ذکر کړه سو فتذكر، ابو العاليه رحمه الله وايي چي دا لعنت په ورځ کي د قيامت دی چي کافران حاضر کړه سي، اول خدای ﷻ لعنت پر ووايي او بيا ملکي او بيا انسانان لعنت پر ووايي.

**سوال:** کافران خو هم انسان دي نو دوئ پر خپلو خانو څرنګه لعنت وايي؟

**ځواب:** قال الله تعالى يلعن بعضهم بعضاً. فالكافر و ان كان لايقول على لعنتي لكن مشاركه في الكفر يلعنه فيشمل اللعنة جميع الناس وان كانوا كفاراً وهذا سانح عزيز، او علامه برسوي رحمه الله وايي چي مراد له ناس څخه يوازي مؤمنان دي ولي اصل انسانان هم دغه مؤمنان دي لانهم على مقتضى الانسانية، او کافران خو كالانعام دي هم اضل سبيلاً نو د هغو لعنت لره اعتبار نه سته په نيز د خدای ﷻ انتهى.

او بعض مفسرين رح وايي چي په مخني آيت کي مراد لعنت دی پر دوئ حياً، او په دې آيت کي مراد لعنت دی پر دوئ يوم القيامة كما قال ابو العالية رحمه الله.

**بوه سه**: چي په يوه قرائت كي داسي هم راغلي دي والملائكة بالرفع والناس بالرفع اجمعون بالرفع بالواو في التاكيد، نو توجيه د رفع يې داده چي ملائكه والناس عطف دى پر محل د الله ﷻ لانه وان كان مجروراً لفظاً بالاضافة لكنه مرفوع محلاً لانه فاعل اللعنة في المعنى واللعنة مصدر يعمل عند الجمهور خلافاً لسيبويه، وهو يقول ان المصدر انما يعمل اذا امكن انحلاله الى ان المصدرية مع الفعل ولا يمكن ذالك كما لايخفى، والجمهور لا يشترطون ذالک راجع في ذالک الكتب المفصلة من النحو ومثاله اعجبنى ضرب زيد وعمرو بالرفع عطفاً على زيد، او بعض مفسرين رح وايي چي توجيه د رفع داسي هم كېدلاى سي چي الملائكة والناس دي فاعل د فعل مقدر وي. دل عليه لعنة الله اى يلعنهم الملائكة والناس اجمعون.

خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۚ لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ ﴿١٦٢﴾

همېشه به دوئ په لعنت كي وي چي د لعنة الله څخه معلوم سو، او نه سپكول كېږي ددوئ څخه عذاب يعني په ورځ كي د قيامت، او نه دوئ ته تاخير او مهلت وركول كېږي، او يا معنا داده چي دوئ ته انتظار نه كېږي چي دوئ عذر ووايي ولي چي د عذر ويولو وخت دنيا وه هغه تېره سوه. او يا خداى ﷻ ودوئ ته په نظر د رحمت نه گوري هذا ماقاله البيضاوي رحمه الله مع زيادة من القندهاري، او بعض مفسران رح وايي چي ضمير د فيها راجع دى و «نار» ته.

**سوال**: نار په ما قبل كي نه دى ذكر سوى نو اضمار قبل الذكر به نه وي؟

**ځواب**: لعنة الله آه پر اور او نار دلالت كوي، ولي پر چا چي لعنت د خداى ﷻ او د ملكو او د خلكو وي هغه به حتماً داخل النار وي، او بعض مفسران رح وايي چي ضمير ونار ته راجع كول بېله ذكره د هغه تعظيم د شان



Scanned by CamScanner

د نار دی، يعني چي دوږخ داسي يو هولناکه دی چي بايد د اذهانو څخه د خلګو غائب او هېر نه وي، او تفسير مظهري صرف دونده قدر ويلي دي واضمار قبل الذكر تفخيماً لشانها. نو ځکه يې هغه بيان د تفخيم نه دی کړی او دا يې هم په متابعت کي د بيضاوي ويلي دي.

**فائده**: خالدين حال دی د ضمير څخه د عليهم او جمله ده د لا يخفف آه استيناف دی لپاره د بيان د کثرت د عذاب ددوئ د کيفيت له لاري، لکه چي خالدين فيها د عذاب ددوئ د مقدار د لاري.

**فائده**: باعث پر يهوديانو کتمان او پټولو د حال د آنحضرت ﷺ حب الرياسة والدنيا و، نو دوئ بېرېدل چي که مو د اظهار د نعت نبوي ﷺ وکړو نو دغه دوه منفعته زموږ د لاسه وځي نو يې عذاب د النار ته ځان وسپاری، وساء لهم سبيلا. او په حديث کي چي روح البيان نقل کړی دی داسي راغلي دي چي په پېښو زمانو کي يو مسلمان او يو مشرک د ماهيانو د ښکار لپاره د درياب غاړي ته تللي وه نو مشرک چي به دام درياب ته اچاوه د خپلو بتانو او خدايانو نوم به يې اخستی. نو ماهيان به يې په دام کي لوېدل حتی چي ډېر ماهيان يې ښکار کړه او مسلمان به نوم د الله ﷻ اخستی او د هغه په دام کي ماهی نه لوېدی. او د لمر لوېدو په وخت کي يې يو ماهی په دام کي ولوېدی لکن چي ده ماهی خلاصوی د دام څخه هغه سره وښورېدی او درياب ته ولاړی، نو مسلمان خالي لاس کور ته ولاړی نو هغه ملکه چي د مسلمان پر حالاتو نګرانه وه هغې ددغه مسلمان پر حال اظهار د تاسف وکړی. نو څه وخت چي د هغې ملکې پېره پوره سوه او اسمان ته ولاړه خدای ﷻ ځای د هغه مؤمن په جنت کي ځای په وليدی نو ملکي وويل والله لا يضرها مااصاب اليه، يعني چي ماهی يې په دام نه سو بند ان يصير الى هذا يعني هذا المسكن في الجنة، او خدای ﷻ د هغه کافر ځای په دوږخ کي هم په وليدی، نو ملکي وويل والله مايغني عنه

ما اصابه یعني چي ډېر ماهیان یې وتیول بعد ان یصیر الی هذا یعني مسکنه في النار کذا في شرح الخطب.

**بیت**

نرگس اندر خواب غفلت یافت بلبل صد وصال
خفته نا بینا بود دولت ببیداران رسید

**پوه سه:** چي که د سړي پر دې یقین وي چي په دغه غار کي لړم یا مار سته په هغه غار گوته نه ځخي، نو د یهودیانو او یا نورو گناه گارانو گویا پر دې یقین نسته چي کافر یا عاصي ته عذاب الیم دوزخ سته العیاذ بالله من ذالک.

وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ لَّا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمَٰنُ الرَّحِيمُ ﴿١٦٣﴾

ستاسي ټولو خدای ﷻ او معبود یو دی، نسته معبود یعني بالحق پرته الله ﷻ چي رحمان دی.

**پوه سه:** چي دا آیت خطاب عام دی لکن کاتمون د یهودیانو پکښې داخل دی، نو دماقبل سره یې ربط حاصل کېږي فافهم، مور ووېل په تفسیر کي "اله" یعني معبود بالحق ددې لپاره چي حکم د "واحد" پر صحیح سي ولي چي معبودات بالباطل خو ډېر دي، نو حاصل دادی چي مستحق د عبادت د ټولو خلگو یو دی او شریک نه لري او نه دا صحیح ده چي غیر د خدای ﷻ دي څوک اله او معبود وبلي.

**فائده:** جمله د لا اله الا هو تقریر د واحدانیت د خدای ﷻ ده او دفع د توهم ددې ده چي په عالم وجود کي بل خدای ﷻ واجب الوجود به وي لکن مستحق د عبادت به نه وي، نو معنا ددې کلمې دلته داده لا واجب في عالم الوجود الا ذاته تعالی.

**پوه سه:** چي الرحمن الرحیم لکه دلیل پر واحدانیت د خدای ﷻ دی، ولي چي معنا د الرحمن او الرحیم داده چي ورکوونکي د ټولو نعمتو که اصول وي او که فروع، او ماسوا د خدای ﷻ یا به نعمت وي او یا به منعم علیه وي او دا دوه خو یو د عبادت وړ نه دي.

**الاعراب:** الرحمن الرحيم يا دواړه خبر د الهكم دي او يا خبر د مبتداء محذوف دي اى هو الرحمن الرحيم.

**فائده:** د اسماء بنت يزيد څخه روايت دى چي ما اوريدلي دي د نبي ﷺ څخه چي ويل يې چي په دې دوو آيتو كي اسم اعظم د خداى ﷻ موجود دى والهكم اله واحد لا اله الا هو الرحمن الرحيم ولا اله الا هو الحي القيوم، رواه ابو داؤد وترمذي وابن ماجه والدارمي.

**درويش وايي:** چي بايد علماء موږ پوه كړي چي په دې دوو آيتو كي كلمه مشتركه سته چي هغه اسم اعظم وګرځي، كه څه هم مظهري او روح البيان دغه حديث مبارك راوړى دى لكن نور يې د هغه تفصيل نه دى كړى، نو هغه بعض علماء وه چي ويلي دي الحي القيوم اسم اعظم دى هغه ددې حديث مخالف دي، اول په دې چي حي او قيوم خو دوه اسمه دي. او اسم اعظم خو يو اسم دى د باري عز وجل، او بل دا چي په اول آيت كي خو چي قيم نسته او دغه رنګه رحمن او رحيم خو په دوهم آيت كي هم نسته، او اله كه په دواړو آيتو كي سته لكن اله منكر خو اسم د خداى ﷻ نه دى.

**سوال:** خو تا د "اله" ترجمه په مستحق للعبادة سره وكړه، او مستحق للعبادة بيله خداى ﷻ بل نسته؟

**ځواب:** هو درويش د "اله" ترجمه خو دا يوازي نه ده كړې بلكه ټوله مفسرين په اجماع دا ترجمه كوي لكن په ترجمه سره خو اله د خداى ﷻ نوم نه ګرځي بلكه دا وصف عام دى، لكن منحصر په خداى ﷻ كي دى لكه خالق السموات يا رازق المخلوقات چي منحصر په خداى ﷻ كي خو دى لكن دا مضافين و امثالها خو د خداى ﷻ نومان نه دي كما لايخفى على اولى النهى.

**پوښتنه:** دا حديث مبارك خو صحيح دى كما مر نو ستا په نبز مشتركه كلمه په دوو حديثو كي كومه كلمه ده؟

**خواب**: د درويش مختاره هغه ده چي امام اعظم سراج الامة وايي چي كلمه د الله اسم اعظم دى كما رد المختار وكما نقلته في ترجمتي لبعض الكتب الفقهية، او قول د امام اعظم ﷫ بعينه مفاد ددغه حديث مذكور كېداى سي، او كه څوک د دوريش څخه پوښتنه كوي چي څرنگ مفاد د حديث نبوي ﷺ او قول د ابو حنيفه يو كېداى سي.

**درويش وايي**: چي ما معذور وبله ته پخپله فكر وكړه لكن په ډېر غور سره يو امام وايي شكوت الى وكيع سوء حفظي فاوصاني على ترق المعاصي، فان العلم فضل من اله عطى الله لا يعطى للعاصى.

**فائده**: دال او مدلول په دې آيتينو مذكورتينو كي دواړه اسم اعظم دي اما چونكه دال او مدلول په هيئت اجتماعي سره يعني چي هر يو جلا وشمېري او بيا يې ضم كړي، په قرآن كريم كي دوه زره درېسوه نهه څلوېښت (۲۳۴۹) واره ذكر سوي دي، او كه حرف د نداء د طلب د حاجت جائز ورسره ضم كړي نو بي عدد دوه زره درې سوه شپېته (۲۳۶۰) كېږي نو ورد د مثاله روزي د طالب يو د عددينو مذكورينو څخه وي وهذان العددان هما الماخوذان من الذكر في القرآن الكريم والا فعدد الدال سهل ۱۱ وعدد المدلول ۶۶ مع كل صلوة، وفائدة الذكر الكبير تصفية الباطن ده، او بل لطائف سته پر خپل كار باندي گرځي لكن حضور د زړه شرط دى، او طهارت عن الحدثين هم شرط دى او عدم الفصل في العدد المذكور هم لازم دى.

**فائده**: كه يو وذكر ته دال يا مدلول په عدد مذكور او شرائط مذكوره و سره دوام وركړي آخر الامر به وصل د مطلوب نصيب سي.

قال المولوي المعنوي في مثنويه

از هوا ها كي رهي بې جام هو ای ز هو قانع شده بنام هو
هيچ نامي بې حقيقت ديده يازگاف ولام گل گل چيده
اسم خواندي رو مسمى را بجو مه ببالادان نه اندر آب جو

گرزنام وحرف خواهي بگرري — پاک کن خودرا زخودهان یکسري
همچو آهن زآهني بی رنگ شو — در ریاضت آینه بی زنگ شو
خویش راصافی کن از اوصاف خویش — تا بیني ذات پاک وصاف خویش
بیني اندر دل علوم انبیاء — بی کتاب وبی معید وا وستا
علم کان نبود زهو بی واسطه — آن بپاید همچو رنگ ماشطه

اللهم اوصلنا الى حقيقة الحال لامحصورين في بلاغة المقال.

**درویش وایي**: چي دا وه توجیه د جمع بین الحدیث المذکور في وجود الاسم الاعظم الآیتین المذکورتین فیه وقول امام الآئمة سراج الامة ابو حنیفة علیه من الرحمن الرحمة الخاصة في الیوم واللیلة مدی جریان مذهبه في الامة المحمدیة ﷺ آمین.

**بوه سه**: چي مشرکانو چي دا آیت واورېدی "والهکم اله واحد آه" دوئ تعجب وکړی چي څرنګه اله یو دی د ټولو مخلوقاتو، او سره ددې چي مکه چي یو کوچنی ښار دی درې سوه شپېته (۳۶۰) معبودان پکښي موجود دي، نو علیه الصلوة والسلام ته یې وویل چي که ته په توحید د معبود کي صادق یې نو موږ ته یو دلیل وړاندي کړه، نو دا آیت نازل سو اخرجه البیهقي رحمه الله في شعب الایمان، خفاجي رحمه الله وایي چي دا تعجب ددوئ او طلب د دلیل پر توحید ددوئ د غایت جهل څخه ناشي دی ولي چي خدای ﷻ دلیل ته د توحید د معبود بالحق اشاره اجمالي په هو الرحمن سره وکړه.

إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ

تحقیق په پیدائښت کي د آسمانو او مځکي.

**بوه سه**: چي خبر د ان وروسته راتلونکی دی.

**فائده**: مراد له اسمانو څخه اسمانونه دي سره د مافیها من الشمس والقمر والکواکب او د مځکي څخه مراد مځکه سره د مافیها ده چي رودونه، ولې درختي قسم قسم، غرونه لوئ او کوچني، انواع د نباتاتو رقم

رقم، اقسام د حیواناتو او اختلاف د اقالیمو چي اوه دي الی غیر ذالک.
هذا ماقاله المظهري رحمه الله
**یوه سه**: چي مراد د مظهري دا نه دی چي په قرآني لفظ کي د سموات والارض دا تولـه مراد دي، لان هذه الارادة من الآیـة الکرایمـة یاباه العقل السلیم، بلکه مراد دده دادی چي سموات چونکه اصل وه د مافیها لپاره وکذا الارض لمافیها، نو استدلال په اصل سره اشاره و استدلال بالفرع سره ده والله اعلم بمراد عباده.
**یوه سه**: چي امام مظهري په وجه د جمعیت د سموات او د افراد د مځکي داسي ویلي دي چي ډېر والی د اسمانو خو مخاطبینو مشرکینو ته ثابت و بناءً علی مشاهدتهم تعدد حرکات الکواکب بخلاف الارض فان تعددها لم یثبت الا بالشرع والاستدلال انما هو معلوم عندهم انتهی.
وفیه نظر لان العرب الاول ای المشرکین لم یفهموا من حرکات الشمس والقمر وغیرهما من الکواکب تعدد افلاکها لان هذا الفهم انما یکون من الامرین في علم الهیئة والمشرکین لم یکونوا کذالک بل الماهرین من اهل الهیئة ایضاً لم یتیقنوا تعدد الافلاک من الحرکات المرصودة فانهم یحوزول اینکون ان یکون الفلک واحدا والشمس والقمر وغیرهما تتحرکوا في الخوارج والحوامل في ذالک الفلک الواحد بالماهیة کما تقرر في التصریح وشرح الچغمني فانی للمشرکین الامیین علم تعدد الافلاک من الحرکات للکواکب، بلکه غالبه گمان به ددوئ دا و چي لمر او سپوږمۍ او ستوري په اسمان کي داسي روان وي لکه ماهیان په اوبو کي کمافسر البیضاوي قول تعالی "کل في فلک یسبحون" علی طریق اهل الشریعة ای یسیرون فیها بانبساط کالحیتان في الماء، نو انسب امام مظهري لره داوه چي توجیه د جمعیت د سموات او افراد د ارض یې داسي کړي وایي چي لفظ د سموات په جمع سره او د ارض په مفرد سره په جاهلیت کي مشهور و، نو یې ځکه استدلال په معلوم او مشهور عندهم سره ووایه بدون استناد

علمهم بذالک الی علمهم بجمعية السموات الی رؤيتهم الحرکات المتعددة للکواکب فافهم هداک الله.

**فائده:** علامه مظهري رحمه الله په احاديثو مبارکه وو کي تر ډېرو مفسرينو لوړ مهارت لري او د احاديثو مبارکه وو په صحيح اسنادو او په جيدو او په ضعيفه ښه خبر دی او پخپل تفسير کي يې په احاديثو مبارکه وو سره اسناد راوړی دی، او په علم تصوفو کي خصوصاً په طريقه عليه نقشبنديه کي د ژورو معلوماتو عالم دی لکن په باره کي د بيان د اعراباتو قرآنيه وو او د جملو فرقانيه وو شبراً بشبر تابع د قاضي بيضاوي دی او په ورته مسئله قبلي کي هم تابع د بيضاوي رحمه الله دی، نو قاضي بيضاوي وجه د جمعيت د اسماتو او د افراد الارض په دې عبارت سره ويلې ده، انما جمع السموات وافرد الارض لانها (اي السموات) طبقات متفاصلة (ای بعضها منفصل عن بعض حاشيه بيضاوي) متخالفة بالحقيقة بخلاف الارضين (لانها جنس واحد وهو التراب حاشيه) او مظهري هم بعينه دغه تفسير نقل کړی لکن په لفظ د قيل، وروسته تر خپلي توجيه د جمعيت او افراد فتامل.

والعجب من بعض محققي شراح البيضاوي منهم نقلوا قول البيضاوي لان طبقات السموات متفاصلة آه وفسرها بقوله ای ممتازة کل واحدة من الاخری بذاتها الشخصية سواء کانت مماسة کما هو رای الحکيم اولا کما جاء في الاثار ان بين کل سماء وسماء مسيرة خمسمائة عام آه، وقد مر ان مراد البيضاوي من لفظ متفاصلة انها منفصلة بعضها عن بعض کمامر لا امتياز الماهية الشخصية ولهذا زاد البيضاوي قوله متخالفة الحقيقة لبيان ذالک التخالف الذي اورده ذالک الشارح، فتدبر غاية التدبر.

**فائده:** اهل الحديث وايي چي مځکه هم اوه طبقي ده، په منځ کي د هري طبقي او د بلي طبقي لوئ مسافت دی او په هغو طبقو کي نور مخلوقات سته کما وردت في الاحاديث الشريفة.

**فائده:** ابو حیان رحمه الله وجه د افراد د مخکي دا وايي چي جمع د ارض ثقيله وه او له قياسه مخالفه هم ده يعني ارضون. ولي چي جمع بالواو والنون د ذوى العقول لپاره ده نو له دې کبله يې جمع نه راوړه، او هم دا سبب دی چي خدای ﷻ داسي وايي ومن الارض مثلهن. يعني جمع يې نه راوړه چي ارضون دی بلکه تر هغه يې ډېر دوه لفظه راوړه.

**درویش وايي:** چي دا ډېره ښه وجه ده.

# وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ

او په اختلاف کي د ورځي او شپې يعني په وروسته والي کيد شپې تر ورځي او د ورځي تر شپې، او دغه رنګه اختلاف د ورځي او شپې په نور او ظلمت کي او په طول او قصر کي او په حر او برد کي.

# وَالْفُلْكِ الَّتِي تَجْرِي فِي الْبَحْرِ بِمَا يَنْفَعُ النَّاسَ

او په کيښتيو کي چي په درياب کي چلېږي.

**پوه سه:** چي لفظ د فلک جمع او مفرد پکښي برابر دی، فرق يې تقديري دی. يعني ضمه د فا چي مفرد وي لکه ضمه د قفل ده، او که جمع وي لکه ضمير د اُسْدٌ جمع اسد ده. او دلته لفظ د فلک جمع دی بقرينة اجزاء الصفة وهي تجرى موئثاً عليها.

**فائده:** لفظ د "ما" په ماينفع کي يا مصدري دی ای بنفع الناس، او يا موصوله دی ای بالذي ينفع الناس. لکه وړل د اموالو د تجارت په دوئ کي يا سپرتيا په دوئ کي الى غير ذالک من المقاصد کسفر الحج والعمرة في الازمنة القديمة فيها.

**پوه سه:** چي حکمت په ذکر کي د فلک استدلال دی په احوالو او عجائبو سره د درياب، او ذکر د فلک له دې سببه يې وکړې چي سبب د دخول د بحر غالباً کښتني دي.

**الاعراب**: الفلک مجرور دی عطف دی پر خلق السموات باندي. او د تولو معطوفاتو خبر وروسته دی یعني قوله تعالی لآیات آه. او کلمه د با لپاره د مصاحبت ده نو معنا داده مصحوبة بما ینفع آه. او دا مصحوبت حال دی له فاعل څخه د تجري چي فلک دی.

وَمَآ أَنزَلَ اللَّهُ مِنَ السَّمَآءِ مِن مَّآءٍ فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَبَثَّ فِيهَا مِن كُلِّ دَآبَّةٍ

او په هغه شي چي نازل کړی دی خدای ﷻ له اسمانو څخه "من" لپاره د ابتداء دی، د ابو څخه دا من لپاره د بیان د ما انزل دی، نو خدای ﷻ ژوندي کړي یعني په نباتو سره مځکه وروسته تر مرگ د مځکي، یعني چي هیڅ نبات نه و باندي لکه په وخت کي د ژمي، او خدای ﷻ منتشر کړی په مځکه کي یعني په سبب د باران د هر قسم دواب لان الدواب الارضیة ودواب الجبال والصحاری ینموا بالخصب والمطر کما یدل علیه التجربة.

**پوه سه**: چي "بث" عطف دی پر انزل باندي او مراد له سماء څخه یا متعارف اسمان دی او یا وریځ ده، او یا نفس جو عالي دی.

**پوه سه**: چي مقصود په دې آیت کي استدلال په نزول د باران. او په ذریعه د هغه د نباتاتو د نشو او نماء، او په هغه باران سره په مځکه کي د ډول ډول لویٔ او کوچني حیواناتو د رزق زمینه برابري ده ففي هذه الآیة استدلال علی توحیده تعالی وقدرته من وجوه متعددة کما لا یخفی.

**فائده**: درویش وایي چي چونکه نطفه انساني مثلاً په رحم کي د ښځي په مثال د تخمو د نباتاتو په اعمالو کي د مځکي ده نو کله دا تخمونه چي تر یو وخته پوري جماد وي دغه رنگه نطفه په رحم کي د ښځي جماد وي. بیا څه وخت چي فصل د ربیع پر رارسېدو سي هغه تخمونه په مځکه کي پر حرکت راسي دغه رنگه چي خدای ﷻ وغواړي چي د نطفې څخه یو انسان

پیدا کړي نو هغه نطفه هم په رحم کي پر حرکت راسي. نو علقه سي بیا مضغه سي وهکذا الی ان تکون النطفة في الرحم انسان، او هغه تخمونه هم په مځکه کي دننه حرکت کوي تر څو چي نباتات خندي جوړ سي، او تر مځکي را ووځي او مځکه سر سبز او شاداب سي او نضارت یې سبب د حسن وګرځي، دغه رنګه انسان چي د مور د رحم څخه را ووځي نو لوی لا، سي او د حسن او زیبایي څښتن سي. نو هم دا سبب دی چي د نضارت څخه د مځکي په نباتاتو سره تعبیر په حیوة سره کېږي تشبیهاً بالانسان المولود، او چونکه رفته رفته حسن د نباتاتو مخ پر زیاتېدو وي تر څو چي فصل د خریف پر راتلو سي نو نباتات مخ پر خزان او مړاوي روان سي څو چي فصل د ژمي پر راسي مځکه خپل نضارت او سر سبزي یکلخته له لاسه ورکړي، لکه د انسان چي عمر پر تېرېږي حال یې ابتر کېږي چي اجل موعود یې ورسېږي او مړ سي هغه حسن انساني ظاهري یکلخته له لاسه ورکړي. نو هم دا سبب دی چي د نباتاتو د نیستي والي څخه تعبیر په موت الارض سره کېږي. هذا ماسنح بالبال و اشار الی بعض ماقلنا ابن الشیخ في حواشیه.

## وَتَصۡرِيفِ الرِّيٰحِ

او په ګرځېدو کي د بادو یعني شرقاً او غرباً وشمالاً وجنوباً ګاهي نرم او ګاهي تېز او ګاهي فائده مند او ګاهي ضررمند، او ګاهي تاوده او ګاهي ساړه، الی غیر ذالک.

**پوه سه:** چي تصریف الریاح عطف دی پر ما انزل آه او بل دلیل پر قدرت د باري ﷻ، د عبدالله بن عباس ﷺ څخه روایت دی چي لوي له لښکره څخه د خدای ﷻ باد او اوبه دي، الا تری انه تعالی اهلک کفار قوم نوح ﷺ بجند ماء الطوفان واهلک فرعون المدعي لالوهیة في ارض مصر ایضاً بجند ماء البحر واهلک عتاة قوم عاد بجند الریح وهکذا.

# وَالسَّحَابِ الْمُسَخَّرِ بَيْنَ السَّمَآءِ وَالْأَرْضِ

او داغه رنګه وريځ چي مسخره ده په منځ کي د اسمانو او مځکي يعني نه کښته را شوه کېږي او سره ددې چي متحمل د ډېرو اوبو ده او نه سره پاشل کېږي، او سره ددې چي بادونه ورسره وي، ابن وهب رحمه الله وايي چي په درې شيانو سړی نه پوهېږي چي د کوم ځايه راځي، رعد يعني تالنده، برق يعني پېلبو او وريځ، او دا تسخير جاري به وي الى ماشاء الله تعالى.

# لَآيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ﴿١٦٤﴾

لام د تاکيد دی يعني ډېر د قدرت دلائل سته هغه قوم لره چي په عقل صحيح سره ددې شيانو فکر ووهي. سعدي

برگ درختان سبز در نظر هوشيار    هر ورقی دفتريست معرفت کردگار

نو چي بلګونه د درختو د معرفت د قدرت الهي کتاب دی مع صغرها فکيف بهذه الامور العظام المذکورة في المعطوفات.

**پوه سه:** چي قوله تعالى "لآيات آه" خبر د ان في خلق السموات سره د معطوفاتو دی.

**پوه سه:** چي خدای ﷻ ډېر معطوفات په اسم کي ان کي ذکر کړه او په پای کي يې خبر راوړی تاچ په معطوفاتو کي د اسم ان انتظار د سامعانو وخبرو ته پيداسي چي علم پسله انتظاره څخه اوقع په ذهن کي ګرځي او الذ هم وي.

جامي رحمه الله

چه خوش باش که بعد از انتظاري    باميد رسد اميدواري

**درويش وايي:** چي تفاصيل ددغو دلائلو پر وجود د باري ﷻ او پر توحيد دده او پر قدرت تامه بلا معارضه دده چي په معطوفاتو کي ددې يې اشاره ورته وسول ډېر طويل الازيال دی که درويش دا ټولو اوهمه تفصيلات بيان کړي شايد سبب د ملال د سامعين محترم به وګرځي بلکه بعض مطالعه

کونکي بادرمشت به تر تبر سي، نو بيان تفصيلي به وخپل ځای علم کلام ته وسپارو لکن دا هم مقاله دائره ده پر السنه د عقلاؤ و ان مالايدرک کله لايترک کله" نو له دې سببه به دروبښ بيان مجمل ددغو دلائلو مذکوره و سامعانو ته پيش کړي بتوفيقه تعالی وتوفيضه، نو واورئ چي دغه امور مذکوره په آيت کي د ان في خلق السموات بيا تر لآيات لقوم يعقلون پورې ټوله امور ممکنه دي يعني وجود او عدم يې برابر دی لانها ان کانت واجبة الوجود بالذات لما اتسمت بسمة العدم قبل الوجود وبورود العدم عليها بعد الوجود لان الوجوب الذاتي يابي عن العدم مطلقاً. نو چونکه دواړې پلې د ترازو د امکان سره برابري وي نو د يوې پلې تر بلې يعني وجود تر عدم وبالعکس يې سبب غواړي کمايفهم البله والصبيان، نو اوس مرجح د وجود د ممکن به يا به يې په دائره کي امکان وي يعني يو ممکن د بل ممکن مرجح الوجود سي، نو يا بيرته سلسله د ترجيح دمخ پر خوا راځي بالذات او بالواسطة، نو به دور مصرح يا مضمر لازم سي، او دور په اجماع د عقلاؤ باطل دی، او يا به سلسله د ترجيح پر مخ روانه وي الی غير النهاية فيلزم التسلسل او د تسلسل بطلان په عقولو سليمه و کي مرکوز دی، نو لازم داده چي مرجح د وجود الممکن ای ممکن کان به خارج وي له دائرې څخه د امکان او دا خبره مسلم عند الکل ده چي موجود خارج عن دائرة الامکان هو الواجب لذاته فبطل مذهب الدهرية الذين لايقولون بالواجب بالذات، ثم يجب انيکون الواجب المؤثر في الممکنات واحداً في ذاته لانه لوتعدد الواجب کما يقوله المجوس الذين يقال لهم الثنوية، نو به تاثير ددغو دوو واجبين پر ممکن باندي يا په اجماع وي او يا پر تعقب وي او يا پر تبادل وي واجتماع المؤثرين على الاثر الواحد بانحائها الثلثة باطل کمابين في کتب الکلام وفي بعض کتب المنطق ايضاً کشرح القاضي هذا اذا لم يکن بين الواجبين تمانع واختلاف يعني يقتضی احد الواجبين

ايجاده والآخر يمنعه وان كان تمانع بينهما فاما ان يحصل مراد كلا الواجبين فيلزم اجتماع النقيضين واما ان يحصل مراد احدهما فيلزم عجز الآخر والعجز ينا في الوجوب بالذات باتفاق اهل العقل، واما امكان تصالحهما على ايجاد احدهما فلا ينفى امكانه التمانع بينهما على ماهو مقتضى الوجوب الذاتى واليه اشار الباري ﷻ بقوله لوكان فيهما الهة الا الله لفسدتا، واذا ثبت توحيد الواجب وتاثيره في عالم الخلق بالايجاد فيستحق هو للمعبودية دون الاصنام وغيره فبطل مذهب المشركين الذين يقال لهم الوثنية، واذا ثبت الايجاد والاعدام له تعالى فجميع الكمالات العلمية والعملية ونعم الدنيا والآخرة والآمها ايضا مستندة اليه تعالى بلا مشارك ولا معارض فيجب علينا معشر العباد ان نطلب كل مطلوب منه تعالى لا من الاصنام السفيلة والاصنام العلوية كالكواكب عند المنجمين.

**سوال**: بعض اهل اسلام طلب د خيراتو د ذات انور څخه د عليه الصلوة والسلام كوي بعد وفاته او يا د ارواح څخه د اهل القبور صالحينو څخه كوي نو دا شرک نه دی، لکه سلفيه او وهابيه چي وايي؟

**ځواب**: د هيڅ مسلمان دا عقيده نه ده چي عليه الصلوة والسلام يا اولياء الله الكرام معطي د نعمتو دي يا دافع د بلايا وو او د مصيبتو دي بلكه قصارى امرهم الطلب من الله ﷻ باستشفاع هولاء السادات الكرام والتوسل الى الله تعالى في مطالبه ببركات هولاء المقربين، والمنكر عن التوسل كالمنكر عن النبوة.

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّتَّخِذُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَنْدَادًا يُّحِبُّوْنَهُمْ كَحُبِّ اللّٰهِ ؕ

او بعض د خلګو څخه يعني مشركان هغه كسان دي چي دوئ معبود ګرځوي ماسوا له خدايه ﷻ يعني بتان.

**پوه سه**: چي بعض مفسران وايي چي د انداد څخه مراد بتان د مشرکانو دي، نو انداد جمع د ند ده چي معنا یې مثل دی یعني مشرکان دغه بتان په زعم باطل خپل مماسل د خدای ﷻ بولي، په استحقاق کي د عبادت او تعظیم او محبت.

**سوال**: څه رنګه دوئ مساوات تر منځ د خدای ﷻ او بتانو وايي مع انه ورد في القرآن "ولان سالتهم من خلق السموات والارض ليقولن الله" یعني لايقولون خلقهن اللات والعزى مثلاً فاين التسوية؟

**ځواب**: روح البيان وايي چي دا تسويه ددوئ په تعظیم او استحقاق د عبادت تر منځ د الله او بتانو منافي نه ده اقرار سره ددوئ په ربوبيت د خدای ﷻ او یا هغه رئيسان ددوئ دي چي دوئ به یې اطاعت کاوه په دیني چارو کي، والدليل عليه قوله تعالى "اذا تبرء الذين اتبعوا من الذين اتبعوا" ولي تبرء له بتانو څخه نه ده متصوره بلکه د روښاو له خوا کېږي قال البيضاوي ولعل المراد اعم منها وهو ما يشغل العبد عن المولى الحق اى عن امتثال او امره، روح البيان د صوفيه څخه دا قول را نقل کړی کل شيئ تشغلت به قلبك فقد جعلته في قلبك نداً له تعالى.

**پوه سه**: چي مراد د صوفيه وو دا نه دی چي پر دغه سړي احکام د مشرک جاري دي او محکوم بالشرک دی، حاشاهم الله من مثل هذه المقالة بل مقصودهم التشبيه لحال هولاء بحال المشركين الذي شغلهم عبادة الاصنام عن عبادة المعبود بالحق او اطاعة الرء ساء الطغات عن قبول قول رسول الله ﷺ، او د مؤمن زړه که په یو شي مشغول سي او غفلت قلبي باندي تاري سي او حقيقةً مشرک بالله او مؤمن بالطاغوت نه دی کمالايخفى. د عمرو ابن حصين څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ زما پلار حصين ته وویل چي ته د څو خدايانو اوس عبادت کوې! زما پلار ورته وویل چي د اوو چي شپږ یې په مځکه کي دي او یو یې په اسمان کي دی، نو عليه السلام ورته وویل

چي ستا چي یو شی خوښ وي او یا د یوه شي څخه بېرېږې نو کوم خدایﷺ ته خواست کوې ده ورته وویل الذي في السماء نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل فیکفیک الہ السماء یعني هغه یو الہ السماء دي بس دی. د نورو شپږو عبادت پرېږده، او علیه الصلوة والسلام ورته وویل ای حصینه که ته اسلام راوړې زه به داسي دوې کلمې دروښیم چي تاته به فائده وکړي، نو چي حصین ﷺ مشرف بالاسلام سو او علیه الصلوة والسلام ته یې وویل چي هغه دوې کلمې راوښیه، نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل قل اللهم الهمني رشدي واعذني من شر نفسي.

**درویش وایي:** چي دا دوې کلمې په حصین پورې تخصیص نه لري مورږ ته هم فائده کوي لانها من امور الدین ودینیه علیه الصلوة والسلام لا یخص بالشخص دون الشخص.

**مسئله:** بعض جاهلان معلوم الحاله خلګ وایي که یو شاګرد د استاد في علوم الدین تعظیم وکړي او یا محبت ورسره وکړي او یا یو سړی د اولیاء الله سره محبت ولري او تعظیم یې وکړي هغه هم تر دې آیت لاندې دی بلکه دغه جاهلان ټوله هغه آیت قرآنیه چي په شان کي د کفارو د مکې یا نورو مشرکانو نازل سوي دي پر ټوله عالم الاسلام یې تطبیق وي دوئ وایي چي دا هم اتخاذ من دون الله انداداً دی او دوئ وایي چي ټوله فراخه امت محمدیه ﷺ پسله سنه شپږ سوه ټوله مشرکان سوي دي او په عبادت د غیر الله اخته سوي دي او یوازې ددوئ منحوس ګروپ موحدین دي استغفر الله من هذه الجرءة العظیمة والتفسیل في بعض رسائل هذا العبد في هذا الباب یعني البیانات الصادقة.

**فائده:** لفظ د "دون" په اصل وضع کي ظرف مکان دی، او دلته په معنا د غیر دی مجازاً، او روح البیان والا وایي چي د "اتخاذ" معنا صنع ده یعني یصنع انداداً.

**درويش وايي:** چي اتخاذ په معنا د صنع حصر دی په بتانو کي ددوئ چي دوئ به دغه بتان د ډبرو وغيره وو څخه جوړول.

**سوال:** دغه بتان خو جمادات وه نو ضمير د هم چي مخصوص په عقلاو پوري دی په يحبون هم کي څرنګه ودې بتانو ته راجع کېدای سي؟

**ځواب:** دا ضمير پر زعم باطل د مشرکانو دی چي دوئ به دغه بتان په داسي اوصافو ستايل چي هغه به د ذوي العقول اوصاف وه. مثلاً د خير غوښتنه ددوئ څخه وغير ذالک.

**فائده:** پوه سه چي محبت ميل ته د زړه وايي مشتق دی د حب څخه بفتح الحاء، او حب تخم او دانې ته وايي مثل حب الحنطة او حب الشعير وغيرهما، بيا يې لفظ د حب مستعار کړی وحبة القلب ته چي هغه يو تکی غونډي شی دی په منځ کي د زړه بيا يې له هغه څخه مشتق کړی حب بضم الحاء بمعنی ميل القلب الی الشيئ بحيث رسخ في القلب کذا في البيضاوي وروح البيان وغيرهما.

## وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَشَدُّ حُبًّا لِّلّٰهِ ؕ

او هغه کسان چي ايمان يې راوړی وي هغه سخت دی په محبت کي د خدای ﷻ تر مشرکانو په محبت کي د بتانو ولي چي د مسلمانانو څخه محبت د خدای ﷻ په هيڅ توګه نه قطع کېږي خصوصاً په وخت کي د شدائدو او مصيبتو بخلاف محبت المشرکين للاصنام ولي د هغو محبت په لږ شي د بتانو څخه قطع کېږي خصوصاً په وخت کي د شدائدو او مصيبتو کمار چي مشرکان چي به په کښتۍ کي سپربدل نو يو بت به يې ورسره وړی، او څه وخت چي به کښتۍ په درياب کي طوفاني سوه نو دوئ به هغه په درياب کي وغورځوی او د يارب يارب نارې به يې وهلې، او بل دا چي مشرکانو به يوه ورځ د يوه بت عبادت کاوه او چي تر هغه بت به يې ښه بت پيدا کړی هغه پخوانی بت به يې وغورځاوه.



Scanned by CamScanner

**تجديد النظري**: هغه کسان چي وايي چي محبان د اولياء الله او يا د شيخ مرشد هغه هم تر هغه آيت لاندي دی ومن الناس من يتخذ من دون الله الآية هغو ته مور وايو چي دا کلماتْ والذين امنوا اشد حبالله په څرنګه پر تطبيق کړي آيا تاسي ګمان کوئ چي مذکوره محبت کونکي د اولياء الله اويا د مرشدانو دوئ اشد حبالله نه دی تر اولياء الله او مرشدانو فان قالوا نعم فهو کذب بواح ولي چي دغه محبت کوونکي په حالت د سراء د خدای ﷻ شکر وايي او په حال کي د ضراء د خدای ﷻ څخه دفع د ضراء غواړي نه ده اولياء الله څخه او نه د مرشدانو څخه؟

**سوال**: مريدان خو هم ومشائخو ته ورځي لپاره ددفع د ضراء؟

**ځواب**: دوئ چي مشائخو اوّ مرشدانو ته ورسي نو دوئ داسي ورته چي مرشد زما څخه دا ضرر دفعه کړه نو دوئ خو هيڅ څوک مرشد ته دا خبره نه کوي بلکه دوئ ومرشد ته وايي چي ته زما د ضرر لپاره وخدای ﷻ ته خواست او شفاعت وکړه چي زما څخه دا مصيبت او ضرر دفع کړي وهذا جائز الاترى ان الصحابة ﷺ حين قحطوا المطر قالوا لرسول الله ﷺ ادعوا الله ان يمطرونا آه او کما قالوا ، او په حديث متفق عليه کي راغلي دي چي امير المؤمنين عمر ﷺ په يوه قحط سالي کي استشفاع په عم رسول الله ﷺ يعني عباس ﷺ سره وکړه نو د مريد او د شيخ تر منځ خو هم ببله استشفاع بله موضوع نشته.

**سوال**: مشرکانو خو هم په بتانو سره استشفاع کوله کما قالوا هؤلاء شفعاؤ عند الله؟

**ځواب**: استشفاع د بتانو وخدای ﷻ ته او استشفاع د مشائخو کرامو ډير فرق سره لري لان الاصنام لايسمعون تضرع الکفار اليهم وطلب الشفاعة منهم بخلاف المشائخ الکرام وايضاً الاصنام ليس لهم امکان التضرع الى الله عزوجل في حق المستشفع بهم بخلاف الاولياء والمشائخ فانهم يدعون ويتفرعون في حق السائل عنهم الهمة والدعاء فالفرق بين المشائخ والاصنام کالفرق بين العرش والفرش افلا يبصرون

# وَلَوْ يَرَى الَّذِينَ ظَلَمُوا إِذْ يَرَوْنَ الْعَذَابَ أَنَّ الْقُوَّةَ لِلَّهِ جَمِيعًا وَأَنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعَذَابِ ﴿١٦٥﴾

**پوه سه:** چي بعض قاريان ولو ترى. بالتاء وايي نو خطاب دى ونبي ﷺ ته او يا وهر مخاطب ته نو پر دې تقدير الذين ظلموا يې مفعول دى، او ډېر قاريان يې په ياء، سره وايي نو پر دې تقدير الذين ظلموا يې فاعل دى او مفعول يې محذوف دى يعني انفسهم. نو پر اول تقدير ترجمه داده که ته وويني اى عليه الصلوة والسلام او يا اى هر مخاطب هغه کسان چي ظلم يې کړى وي يعني پر خپلو ځانو او پر دوهم قرائت يې معنا داده نه ويني الذين ظلموا خپل ځانونه، خو پر هر تقدير مراد الذين ظلموا څخه هغه کسان دي چي خداى ﷻ لره شريکان وايي يحبونهم کحب الله، او پر هر صورت ځواب د "لو" محذوف دى اى لريت امراً فظيعاً عظيماً پر تقدير د خطاب او لندموا ندامتًا شديدةً پر تقدير د غيبت، اذيرون" هغه وخت چي ويني کفار عذاب يعني په ورځ د قيامت.

**سوال:** په نحو کي وايي چي "لو" او "اذ" پر ماضي داخلېږي او دلته پر مضارع داخل سوي دي؟

**ځواب:** په اخباراتو کي د خداى ﷻ مستقبل لکه ماضي ده په سبب د وجوب التحقق البته.

**سوال:** ځواب د "لو" د څه حکمت لپاره حذف سو؟

**ځواب:** مدخول د لو که خوف شى و نو چي ځواب حذف سي کامله بېره به پيداسي، او که محبوب شى و کمال شوق به وځواب ته پيدا سي، او بله فائده د حذف عموماً داده چي مخاطب ومحذوف ته په انتظار وي نو څه وخت چي په قرائنو محذوف ورمعلوم سي الم د انتظار به يې دفعه سي او محذوف به يې په ذهن کي ښه قرار ونسي.

## جامي

چه خوش باشد که بعد از انتظاري باميد رسد اميد واري

**فائده:** اول روئت علمي دی او دویم روئت بصري دی.

**پوښتنه:** د الذين ظلموا څخه کمامر هغه کسان مراد دي چي خدای ﷻ لره شریکان وایي نو که داسي ویل سوي وایي "ولو يرون" بارجاع الضمير الى الذين اتخذوا من دون الله انداداً نو اخصر عبادت به نه وای؟

**ځواب:** مفسران رح وایي چي "الذين ظلموا" وضع د اسم ظاهر ده په ځای کي د ضمير لپاره د دلالت پر دې چي اتخاذ الانداد ظلم عظيم دی.

**پوه سه:** چي قاضي بيضاوي وايي ان القوة لله جميعاً . سادمسد د مفعولي ده يرى اول دی ای على تقدير الغيبة، او ځواب د "لو" کمامر محذوف دی وعبارته هكذا سادمسد مفعولي يرى وجواب "لو" محذوف ای لو يعلمون ان القدرة والغلبة لله جميعا اذعاينوا العذاب الله لندموا اشد الندم.

**پوه سه:** چي وان الله شديد العذاب عطف دی پر ان القوة آه باندي، وفائدة هذا العطف داده چي مطلق ان القوة لله جميعاً پر سخت عذاب دلالت نه کوي لجواز ترک العذاب لهم بالعفو مع القدرة عليه فافهم.

**درويش وايي:** چي بيضاوي رحمه الله يو احتمال د عطف ان القوة لله جميعا په داسي عبارت راوړی دی وقيل هو ای ان القوة آه متلعق د ځواب د "ولو" دی والمفعولان ای مفعولا د يرى پر تقدير د غيبت محذوفان دي والتقدير ولو يرى الذين ظلموا انداد هم لا تنفع، وهذان هما مفعولان ليرى لعلموا. وهذا هو الجواب ان القوة لله جميعا ولا ينفع ولا يضر غيره وهذا يعني ان القوة آه متعلق الجواب صح.

**درويش وايي:** په دې ځای که څه هم دا احتمال ضعيف دی لاحتياجه الى حذف الجواب والمفعولين لکن سامع د عبارت د بيضاوي ددې احتمال حاصل او وجه د ضعف په ښه ډول په پوهېدلای سی، مظهري رحمه الله

ودې احتمال ته من طرف خفي اشاره کړې ده په دې قول سره، ويحتمل انيكون ان القوة لله جمعيا جواب لو والمعنى ولويرى الذين اندادهم لاينفع لعلموا ان القوة لله جميعا انتهى، ددې عبارت څخه د مظهري رحمه الله په طالب څه وفهموې چې څه شی محذوف دی او وجه د ضعف يې څه ده، والى الله المشتكى من هذا النقل والاخفاء كه درويش داسې نقل او اخفاء کړې وای نو حاسدانو به نارې سورې جوړې کړې وای، والله الموفق.

إِذْ تَبَرَّأَ الَّذِينَ اتُّبِعُوا مِنَ الَّذِينَ اتَّبَعُوا وَرَأَوُا الْعَذَابَ وَتَقَطَّعَتْ بِهِمُ الْأَسْبَابُ ﴿۱۶۶﴾

**پوه سه:** چې اذ منصوب محلاً دی په اذكر مقدر سره، ته ذكر کړه هغه وخت چې بېزاره سي هغه کسان چې ددوئ متابعت کړه سوی وو يعني په دنيا کې چې رئيسان د مشركانو وه، د هغو کسانو څخه چې ددوئ متابعت يې كاوه يعني تابعان وهذا في يوم القيامة، او بعض مفسران رح وايي چې مراد د متبوعينو څخه شيطانان دي يعني دوئ د خپلو تابعانو انسانانو څخه بېزاره سي، او دوئ يعني متبوعين او تابعين ووينې عذاب يعني جهنم دار البوار.

**پوه سه:** چې جمله د رؤوا العذاب حال ده د متبوعينو او تابعينو څخه لكن په قرار د قانون نحوي چې ماضي چې حال واقع سي قد، غواړي نو كه ظاهر نه و نو مقدر دی ويحتمل چې وروا العذاب دي عطف وي پر تبرء الذين آه باندې، او د اسباب څخه مراد اسباب د محبت دی چې ددوئ تر منځ به وه په دنيا کې لاغراض فاسدة.

**فائده:** حبل په اصل وضع کې هغه رسی ته وايي چې سرې درختې يا بام ته پر پروته كېږي ثم استعير لموجبات المحبة.

وَقَالَ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْا لَوْ اَنَّ لَنَا كَرَّةً فَنَتَبَرَّاَ مِنْهُمْ كَمَا تَبَرَّءُوْا مِنَّا ؕ

**پوه سه:** چي که څه هم قال صیغه ماضي ده، او دا وینا خو د قیامت په ورځ کېږي نو هغه خو مستقبل ده لکن مفسران رح وایي چي امر مستقبل چي یقین الوقوع وي په ماضي سره یې تعبیر روا دی، نو معنا د آیت داده چي وایي به هغه کسان چي تابعان وه په دنیا کي او کفر یې د رئیسانو په وینا مختاره کړی و، که موږ ته راکړه رجوع ودنیا ته نو به موږ هم بېزاره سو ددوئ څخه یعني د رئیسانو څخه د کفر، لکه چي دوئ بېزاره سوه زموږ څخه په ورځ د قیامت، یعني هیڅ فائده یې نه راوه رسېدل.

**فائده:** نو بیاد هیڅ انسان د بل انسان په متابعت سره کفر او عصیان د خدای ﷻ ونه کړي تاچي په ورځ د قیامت ددغسي بې فائدې تمنا سره مخامخ نه سي.

كَذٰلِكَ يُرِيْهِمُ اللّٰهُ اَعْمَالَهُمْ حَسَرٰتٍ عَلَيْهِمْ ؕ وَمَا هُمْ بِخٰرِجِيْنَ مِنَ النَّارِ ﴿۱۶۷﴾

او دغسي لکه چي خدای ﷻ ویلي دي په دوئ یعني تابعان به ووینې عملونه ددوئ چي متابعت د رئیسانو د کفر دی پښېماني پر دوئ، او نسي وتلای تابعان په دغه پښېماني له اوره څخه یعني له دوږخه ودنیا ته کما تمنوا ذلک.

**فائده:** بعض مفسران رح وایي چي کذالک مفعول مطلق دی د یریهم. ای مثل ذالک الارائة یریهم آه، او بعض مفسران رح وایي چي کذالک خبر د محذوفي مبتداء دی ای الامر کذالک نو ځکه بعض قراء وقف پر کذالک کوي ولي چي کذالک د ماقبل او مابعد څخه قطع سو.

**فائده**: رؤیت که علمي وي خو دوه مفعوله غواړي نو چي باب ته د افعال نقل سي نو درې مفعوله غواړي، مفعول اول یې ضمیر د "یریهم" دی او مفعول ثاني یې "اعمالهم" دی او دریم مفعول یې "حسرات" دی او که رؤیت بصري وي نو په باب کي د افعال دوه مفعوله غواړي نو حسرات حال دی د اعمالهم څخه.

**فائده**: مقتضی د مقام یعني د تابعانو د تمنی خو داوه وما یخرجونَ من النار ولي چي تمنی ددوئ خو د مستقبل خروج لپاره وه لکن خدای ﷻ جمله اسمیه راوړه په ځای د مضارع لپاره د مبالغې في خلودهم في النار او د قطع د امید ددوئ د رجوع څخه و دنیا ته.

**پوه سه**: چي امام مظهري رحمه الله په متابعت د بیضاوي صرف دا ویلي دي اصله وما یخرجون آه نور یې نو اصلیت د جمله فعلیه وجه نه ده ویلې.

**فائده**: دسدي رحمه الله څخه روایت دی چي کفار چي دوږخ ته خدای ﷻ داخل کړي نو دوئ ه ددوئ ځایونه په جنت کي ورښکاره کړه. یعني که تاسي ایمانونه په دنیا کي راوړي وای نو دغه به مو ځایونه وای. نو دوئ به ډېر حسرت او ندامت وکړي د دنیا پر کفر باندي نو ځکه خدای ﷻ وایي وکذالک یریهم الله الآیة.

**بیت**

په دنیا غم د آخرت کوه انسانه — چي هوري به نه یې ته پښېمانه
په دنیا کي توبه وکه له ګناه سه مسلمانه — د آخرت توبه په کار نه ده ای خوانه

**يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ كُلُوْا مِمَّا فِى الْاَرْضِ حَلٰلًا طَيِّبًا**ۡ

ای خلګو خورئ بعض د مافي الارض څخه چي حلال از روي شرع او لذیذ من جهة الطبیعة وي.

**شان نزول**: روح المعاني وايي چي دا آيت نازل سوی دی په مشركانو كي د مكې چي دوئ پر ځانو حرامي كړي وې بحيره، سائبه، وصيله، او حام كما ذكره ابن جرير وابن عباس ﷺ.

**پوه سه**: چي د مذكوره حيواناتو بيان به په دې تفسير كي راسي په خپل ځای كي ان شاء الله، او بعض مفسران رح وايي چي دا آيت په عبدالله بن سلام و امثاله كي نازل سوی دی چي دوئ د اوښ غوښې پر ځان حرامي گرځولي وې وروسته تر اسلام ولي په دين كي د يهودو سابقًا پر دوي حرامي وې والی هذا اشار الباري عزوجل ﴿يا ايها الذين آمنوا الدخلوا في السلم كآفة﴾ او بعض مفسرين وايي چي دا آيت په شان كي د قوم ثقيف او د بني عامر او د خزاعه او بني مدلج نازل سوی دی چي دوئ خرما او پنير پر ځانو حرام كړي وه، او تفسير مظهري ورته مختصر شان نزول بيان كړی دی، او روح البيان او بيضاوي وايي چي دا آيت نازل دی په شان كي د يو قوم چي هغو پر ځانو حرام كړي وه رفيع الاطعمة والملابس القاخرة. لكن دوئ دا تفصيل نه دی كړی چي دا خلگ مسلمان وه چي دا شيان يې پر ځانو حرام كړي وه لپاره د غلبه پر نفس اماره چي د جهاد اكبر په نامه يادېږي لكه په دې حديث كي چي اشاره ورته سوې ده چي آنحضرت ﷺ چي د يوې سختي غزا څخه مدينې منورې ته راغلی داسي يې وويل ﴿لقد رجعنا من الجهاد الاصغر وبقى الجهاد الاكبر او كما قال﴾

**پوښتنه**: جهاد د كفارو يې جهاد اصغر وباله او جهاد د نفس يې جهاد اكبر وباله سبب يې څه دی؟

**ځواب**: يوه وجه خو داده چي دښمن د جهاد اصغر چي كافران دي په سترگو معلومېږي او دښمن د جهاد اكبر چي نفس دی محسوس بالبصر نه دی، او بله وجه داده چي جهاد اصغر د كفارو سره گاهي وي او گاهي نه

وي، او جهاد اکبر لیلا او نهارا الی تمام مدة العمر جاري دی، او که دا کسان کافران وه نو د بیضاوي او روح البیان مراد هم کافران دي نو امکان لري چي ددوئ به هم مراد هغه کسان وي چي تفسیر مظهري ورته اشاره کړې ده کمامر، او که مراد مسلمانان وي نو دا مسئله تفصیل غواړي. تفصیل یې دادی چي که یو مسلمان لپاره د جهاد اکبر مطعومات شهیه او خوراک لذیذه نه خوري او فاخره کالي نه اغوندي دا خو ډیر ښه کار دی او پخپله د آنحضرت ﷺ او د صحابه کرامو ﷺ او د صوفیه کرامو رح داغه د جهاد اکبر لاره غوره کړې وه، په حدیث مبارک کي راغلي دي علیه الصلوة والسلام وایي که زه د خدای ﷻ څخه وغواړم چي د احد غر دي د سرو زرو وي او هر ځای چي زه یم زما سره دي وي خدای ﷻ یې کوي لکن اخترت جوع الدنیا علی شبعها او کما قال. د غزوه الاحزاب او په بل نامه غزوة الخندق په بیان کي راغلي دي چي آنحضرت ﷺ د خندق په کار کي په خپله ونډه اخستې وه او پر خپله مبارکه شا به یې د خندق څخه خاوري چلولې او پر نس مبارک یې د لوږي له کبله ډبري تړلې وې او دا شعر یې وایه

اللهم لا یعش الا عیش الاخرة فاغفر الانصار والمهاجرة

او صحابه کرامو ﷺ به یې په ځواب کي دا ویل

نحن الذین بایعوا محمدا علی الجهاد ما بقینا ابدا

چي ددې قصې تفصیلي بیان به په دې تفسیر کي په خپل ځای باندي یعنې په سیپاره ۲۱ سورة الاحزاب کي راسي ان شاء الله تعالی.

لکن خبره په دې کي ده چي حرام ګرځول د حلال شي پر ځان باندي څرنګه ده نو ددې خبري جواب دادی چي چونکه تحلیل د شي او تحریم د شي د خدای ﷻ کار دی باید مسلمانان په دې دوو کارو کي مداخلت ونه کړي. لکن بیاهم تحریم د حلال پر ځان باندي ګناه کبیره نه ده بلکه خلاف

الاولی کار دی لقوله تعالی ﴿یا ایها النبي لم تحرم ما احل الله لک الآیة﴾ چي تفصیل ددې آیت او شان نزول د هغه په دې تفسیر کي به په خپل ځای کي راسي ان شاء الله تعالی، او بعض فقهاء رح وایي که چا نقض د تحریم الحلال وکړی یعني سړي یو حلال شی حرام وګرځولی وو او هغه ماته کړه کفاره په کفارة الیمین نو پر هغه کفارة الیمین لازمه ده.

**پوښتنه**: د عقائدو په کتابو کي وایي چي تحریم د حلال یا تحلیل د حرام کفر دی؟

**ځواب**: په عقائدو کي مراد دادی چي یو سړی یو حلال قطعي حرام وبولي، او یا یو حرام قطعي حلال وبولي مطلقا هغه کافر دی مثلا یو سړی ووایي چي د پسه غوښي حرامي دي او سره ددې چي د پسه غوښي خو حلال قطعي دي، او یا ووایي چي د خنزیر غوښي حلالي دي او سره ددې چي هغه خو حرامي قطعي دي په دواړه صورتو کي سړی کافر کېږي په مانحن فیه کي خو تحریم الحلال داغسي نه دی ولي چي د سړي او مسلمان خو دا مراد نه دی چي دغه حلال شی مطلقا حرام دی یعني ټوله خلګو ته بلکه دی خو داسي وایي چي دغه حلال شی پر ما حرام دی یعني ددې مثال داسي دی لکه یو مسلمان د حلال شي څخه قسم واخلي چي زه به دا کار نه کوم

**فائده**: من" په "مما" کي لپاره د تبعیض دی ولي چي ټوله مافي الارض خو نه خوړل کېږي.

**فائده**: حلالا مفعول د کلوا دی او یا حال د ماموصله څخه دی ای حال کون مافي الارض حلالا، او یا صفت د مصدر محذوف دی اي اکلا حلالا

**فائده**: د حلال معنی داده چي شرعا حرام نه وي، او د طیب معنی بعض مفسران داسي کوي ای مایستطیبه الشرع نو پر دې تقدیر توضیح د حلال ده لکن چونکه افاده خیر ده تر اعاده نو باید تفسیر د طیب داسي وکړه سي چي د شهوة مستقیمه خوښ وي یعني د سړي او مسلمان د طبیعت سره برابر وي

یعني دانه ده لازمه چي شی حلال وي نو خواه ماخواه بې سړی خوري، ولي داسي حلال شيان ډېر دي چي د سړي طبعا نه وي خوښ، مثلا د شلغمو خوراک خو حلال دی بې شکه او شبهې لکن بعض کسانو ته تبعا خوند نه ورکوي، نو دی مکلف نه دی چي خواه ماخواه به يې خوري وامثال هذا كثيرة في المطعومات والمشروبات، او بعض علماء وايي چي مراد له حلال څخه هغه دی چي د حرمت يقيني څخه خالي وي، او مراد له طيبه هغه دی چي شبه د حرمت هم نه وي پکښې كما في الحديث النبوي ﷺ الحلال بين والحرام بين وبينهما امور مشتبهة لا يعلمها كثير من الناس الحديث.

**درویش وايي**: لکه بيعه وفا يعني ګروي چي تر اشتباء لاندي ده يا بيوع فاسده د عوامو چي دوئ نه په پوهېږي، يا حوالې د تجارانو النقد بالنسية چي علماء په پوهېږي او تجاران نه په پوهېږي، نو مسلمان لره لازمه ده چي په معاملاتو کي تحقيق د علماؤ متبحرينو څخه وکړي او تر اشتباه لاندي معاملو څخه احتراز کوي او په پوښتنه د امام مسجد چي ناقص العلم وي يا صرف قاري صاحب وي دا معاملاتي ددوئ د اشتباه څخه نه وځي، او کاشکي ناقص العلم ملا چي خپل په نقص ښه پوهېږي د هغه امي څخه چي له ده څخه يې د مشتبه مسئلې پوښتنه کړې واى مهلت يې خندي اخستى واى او بيا دغه ناقص العلم د کامل العلم څخه پوښتنه کړې واى او بيا يې هغه امي سائل ته خواب ورکړى واى.

**فائده**: مناسبت ددې آيت له ماقبله سره دادی چي مقتضى د محبت الهي دانه ده چي سړی به ترک د طيباتو خواه ماخواه کوي فضلا عن تحريمها كذا في التفسير الرحماني.

وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ۚ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿۱۶۸﴾

او تاسي متابعت او پيروي مه کوي د ګامو د شيطان ولي چي شيطان ستاسي مبين العداوة دښمن دی يعني په کفر او معاصي و عموما او خصوصا په تحريم کي د حلال او يا په تحليل کي د حرام متابعت د شيطان مه کوي.

**پوه سه**: چې متابعت د گامو د یو چا دادی چې یو سړی پر لاره روان او بل سړی گام پر گام پسي روان وي، چې دې ته کمال متابعت في المشي وایي. لکن په آیت مبارک کي متابعت د خطوات الشیطان استعاره تمثیلیه ده لپاره د اقتداء په شیطان پسي په شرک او معاصیو کي. او دا هم احتمال سته چې په "لاتتبعوا" کي دي استعاره تبعیه وي. وبیان هاتین الاستعارتین في علم البیان.

**فائده**: علت د منع د متابعت د شیطان دادی چې دی بین العداوة د ښمن دی په نیز د ذوي البصیرة مسلمانانو حتی گاهي شیطان مسلمان په طاعت سره امر کړي تاچي د طاعت له لاري یې په لویٔ مصیبت مبتلاء کړي، مثلاً گاهي شیطان مسلمان ته دا وسوسه پیدا کړي چې نن شپه په نفلو سره روڼه کړه نو هغه مسلمان نفلي لمونځو ته چمتو سي او تر صبح پوري په ښه اخلاص نفل وکړي، نو چې صبح صادق سي سړی بې خوبه او ستړی سوی هم وي نو شیطان ورته ووایي چې اوس نو خپل د سهار لمونځ فرضي په خپل کور کي وکړه یعني جماعت ته مه ځه بس دی گرده شپه دې ډېر عبادت وکړی کرار ورته بیده سي، نو دی هم دغسې وکړي او کرار لمونځ بې جماعته اداء کړي او دی په زړه ډېر خوشحاله هم وي لکن شیطان ددې لارې له عبادت سره سړی په لویٔ مصیبت سره اخته کړي، ولې چې جماعت خو یا واجب او یا سنت موکده و او هغه د ټولې شپې نفل د جماعت د ترک ځای نه سي نیولای په ثواب کي، او یا یو سړي ته وسوسه ورواچوي چې د روژې په میاشت کي د هري جمعې په ورځ یو یا دوه غوایي خیرات کړه او د روژیاتیانو نر او ښځو وکوروته یې ورواستوه چې مسکینان مسلمانان روژه مات او پیشلمی په وکړي. تاته به یې خدای ﷻ خومره ثواب در کړي، او هغه سړي هم دغسې وکړي او په خپل نفس کي ډېر خوشحاله وي چې څونده عبادت او خیرات دې ددې روژې په میاشت کي وکړی لکن پر هغه

سرې په لکهو روپۍ فرضي زکوة لازم وي، د زکوة په ورکړه کې شیطان په زړه کې د هغه سستي پیدا کړي حتی چې یو څو روپۍ بعض مسکینانو ته ورکړي بیا کرار ورته کښېني زکوة تولـه نـوش جـان کـړي، او دا ناپوه مسلمانان پـه دې نه پوهېږي چې زر غوايي خیرات کړي د زکوة د زرو ربو خای نه سي نیولای وعلی هذا فقس مکاید الشیطان لاتباعه والتفصیل لهذا المکائد الشیطانیة في مکتوبات الامام الرباني رحمه الله.

**فائده:** خطوات بعض قاریان په دوو پېښو وایي او بعض قـراء يې پـه پېښ د خا او سکون د طاء وایي او پر دواړو تقدیرو جمع د خطوة ده وهو مابین قدمي الماشي چې مورد يې گام بولو، او بعض قاریان خطواتِ په دوو فتحو وایي چې جمع د خطوة بالفتح علی وزن فعلة للمرة وهي المرة من الخطو.

**پوه سه:** چې د شیطان عداوت د بني نوع سره انسان قدیم دی او د آدم علیه السلام راایسته جاري الی یوم القیامة اعاذنا الله من اضلاله ایانا آمین.

إِنَّمَا يَأْمُرُكُم بِالسُّوٓءِ وَالْفَحْشَآءِ وَأَن تَقُولُوا عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿١٦٩﴾

**پوه سه:** چې دا جمله بیان دی او علت دی د عداوت د شیطان او د وجوب د خان ساتني دده له متابعت څخه نو څکه يې عطف ونه کړ.

**سوال:** شیطان خو علو او تسلط پر خلکو او انسانانو نه لري او په امر کې خو علو شرط ده قال الله تعالی لیس لک علیهم سلطان.

**درویش وایي:** چې ددې سوال دوه جوابونه دي، اول جواب دادی چې په اصول الفقه او علم النحو کې وایي چې په امر کې علو واقعي شرط نـه ده بلکه شرط استعلاء ده یعني عد الآمر نفسه یعني چې آمر خان عـالي بولي که څه هم په واقع کې عـالي نـه وي او شیطان خو خـان عـالي بولي. قال الله

تعالی حکایة من الشیطان لاحتنکن ذریته ای ذریت آدم ﷺ او بیضاوي ﷫ یو ډېر ګران جواب ورکړی دی چي خدای ﷻ مشابه کړي ښائسته کول د شیطان و خلګو ته اعمال د شر او کفر په امر سره د آمر لپاره د تنبیه پر ببعقلـي د تابعانو د شیطان او د تحقیر د شان ددوئ نو اولا استعاره د مصدر چي تزیین الشیطان دی د مصدر سره چي امر الآمر دی وکړه نو یې اولا اطلاق د مشبه به چي امر دی پر مشبه وکړي چي تزیین الشیطان دی وروسته یې له امر څخه یامرکم فعل مضارع جوړه کړه، چي ودې استعارې ته تبعیه وایي وتحقیق تلک الاستعارة في علم البیان.

**پوه سه:** چي سوء او فحشاء هغه شي ته وایي چي عقل سلیم یې بد بولي او شرعه شریفه یې هم منکر بولي.

**سوال:** عطف خوځه ناځه تغایر د معطوفینو چي عطف تفسیري نه وي غواړي؟

**ځواب:** په دې ځای کي هم تغایر موجود دی، ولي ګناه کبیره ته سوء وایي چي عاقل سړی په غمجن کېږي لانه من سائه یسوء سواء وسائة ای اخرنه او فحشاء چي مصدر پر وزن د باساء او ضراء یې په دې بولي چي عقل یې مستقبح بولي قاله البیضاوي وتبعه المظهري، او بعض مفسرین وایي چي سوء ټولو قبائحو ته شامل دی یعني که صغائر وي او که کبائر وي، او فحشاء هغه معاصي ته وایي چي ډېر قبیح یعني کبائر ګنهونه، او بعض مفسرین وایي چي سوء هغه معصیت دی چي حد شرعي نه لري او فحشاء هغه ګناه ده چي حد شرعي لري لکه زنا شرب الخمر وغیرهما شارحانو دا دواړه تفسیره ضعیف ګنلي دي لکه چي بیضاوي هم په قیل اشاره ورته کړې ده، وجه د ضعف یې داده چي خدای ﷻ ټولو ګنهونو ته سوء ویلي دي في قوله ﴿من کسب سیئة الآیة﴾ او ګرده ګنهونو ته یې فواحش هم ویلي دي في قوله ﴿انما حرم ربي الفواحش﴾

**فائده**: مراد د مالاتعلمون څخه خدای ﷻ ته شریک ویل او تحریم د حلالو شیانو او تحلیل دحرامو شیانو دی.

**تحقیق اصولي**: پوه سه چي علم په اصطلاح د شریعت مقابل د ظن دی يعني علم يقين ته وايي نو مجتهدين رحمهم الله خو په مسائلو قياسه وو كي خو يقين نه لري پر حكم قياسي باندي، نو دا ددوئ تر مالا يعلمون لاندي نه راځي؟

والجواب على ماقاله المحقق التفتازاني رحمه الله في التلويح والعلامة البيضاوي في كتابه في علم الاصول وصاحب الحسامي وغيرهم من محققي المذاهب الاربعة، وحاصله ان الشارع جعل ظن المجتهد مناطا للاحكام الاجتهادية وعلة لها كما جعل الفاظ العقود من البيع والشراء والنكاح وغيرها علامة على العقود فمتى تحقق ظنه بوجه القياس علم قطعا ويقينا ماكان منوطا به من الاحكام فقد افضى ظنه الى العلم بالاحكام انفسها ووجب عليه العمل بمقتضى ظنه فالطريق ظني والمقصد علم متحقق بخلاف ظن المشركين فيما يعبدونه فان الشارع لم يعتبر ظنه بل نفاه فحصل الفرق البين بين ظن المجتهدين وظن المشركين وقال بعض المحققين رح ان العمل بالقياس واجب من جهة الشارع دفعا للحرج في الدين فكان العمل بالقياس قولا على الله بما نعلم لا بما لا نعلم

**درويش وايي**: چي مزيد تحقيق ددې دوو جوابو دي په كتابو كي د اصول الفقه مطالعه كړه سي وقد اشار الى الجواب الاول المحقق البهاري رحمه الله في مسلم الثبوت وفصله بحر العلوم.

**درويش وايي**: چي دا و جواب له جانبه څخه د مقلدينو هغو كسانو ته چي د قياس څخه منكر دي لكه وهابيه، سلفيه، اصحاب ظواهر الحديث وغيرهم والعجب منهم انهم يعملون بالخبر الواحد مع كونه ظنيا على ما

تقرر في كتب اصول الحديث وينكرون مظنون المجتهد مع انه ماخوذ من الآيات القرآنية او الاحاديث النبوية فعليهم بيان الفرق بين الظنين والله اعلم

**فائده:** صاحب د روح البيان وايي چي سوء هغه گناه ته وايي چي سړى په غم کي اچوي په عاقبت کي او ټولو معاصي ووته ويل کېږي که اعمال الجوارح وي او که اعمال القلوب وي لاشتراک كلها في انها تسوء صاحبها وتحزنه، او فحشاء عطف د عام دی پر خاص ای اقبح انواع المعاصي او اعظمها فالزنى فاحشة والبخل بالزكوة فاحشة واصل الفحش مجاوزة الحد في كل شيئ.

**پوه سه:** چي مرتبې د وسوسو د شيطان شپږ دي (١) اول مرتبة الكفر والشرک او عداوت د رسوله سره د خدای ﷺ که شيطان په دې مرتبه کي کاميابه سي نو ډېر مستريح سي لانه منتهى امنية (٢) دوهمه مرتبه بدعت دی په معتقداتو کي او شيطان په بدعت تر زناء او نور د فسق تر كارو ډېر خوشحاله وي ولي چي صاحب المعصية خو گاهي د خپل فسق له كارو توبه کاږي، او صاحب البدعة خو توبه نه کاږي ولي چي دی په دې بدعت کي ځان پر حق بولي (٣) دريم چي د شيطان د بدعت څخه هم اميد قطع سي، بيا نو مسلمانان پر كبيره گنهونو باعثه كوي على اختلاف نواعها (٤) څلورم چي كله ددې څخه هم نا اميده سي نو مسلمانان پر صغيره گنهونو باعثه کوي چي سره جمع يې کړي كبيره ځندي جوړېږي، قال عليه الصلوة السلام اياكم ومحقرات الذنوب، ولي چي ددې مثال داسي دی لکه چي يو سړی لږ لږ بوټي سره جمع کوي اخر چي اور ورواچوي لويه لمبه وکړي او گاهي ټوله کور اور ځندي واخلي.

(٥) پنځم كله چي ددې څخه هم عاجزه سي بيا مسلمانان په داسي مباحاتو كارو اخته کړي چي نه ثواب پکښې وي او نه عقاب. د شيطان په

دې کې دا فائده وي چې بنده خومې د ثواب له کارو معطله کړي. مثلاً په بې ځایه مجلسو او بانډارو يې اخته کړي په عوض د ذکر يا تسبيح وغيره
(۶) شپږم، چې ددې کاره څخه هم ابليس نا اميده سي نو مسلمانان له يو افضل کاره څخه په مفضول کار اخته کړي، مثلاً مسلمان ته په زړه کې ورواچوي چې ننه شپه تر له په نفلي عباداتو يا لمونځ يا تلاوت القرآن سره مشغوله اوسه، نو چې سپېدې را وچوي نو ابليس دا وسوسه ورواچوي چې ننه شپه دې ببخي ډېر عبادت وکړی نو خپل د سهار لمونځ کور ته وکړه او کرار بیده سه د ورځې به دې دماغ سم وي، او سړی هم هغسې وکړي يعني د جماعت لمونځ پرېږدي، او دمخه په حديث کې د عمر ﷺ ددې مثال تېر سو.
**فائده**: د خدای ﷻ په پيدا کولو کې د ابليس او سره ددې چې د ابليس خباثت په علم ازلي کې خدای ﷻ ته معلوم و، حکمت دادی چې خبيث د انسانانو له طيب څخه جلا کړي، نو انبياء عليهم السلام ددې لپاره خدای ﷻ را استولي دي چې سعداء او نېک بختان خلګ اقتداء پسې وکړي، او د ابليس د خلق دا حکمت دی چې اشقياء اقتداء پسې وکړي فيظهر الفرق بين الفريقين في الدنيا وکذا في الآخرة فيدخل الله الانبياء مع من اقتدى بهم دار الابرار يعني الجنة دار النعيم والقرار ويدخل الله ابليس مع مقلديه دار البوار جهنم والنار فابليس دلال على النار او راس المال د ابليس دنيا ده کافرانو د ابليس ګويا په ژبانِ حال پوښتنه وکړه چې ددنيا قيمت څه شی دی ابليس ورته ووېل ترک الدين فقالوا نعم، او پر زاهدانو چې دنيا عرض کړه هغو اعراض څندې وکړی او په انبياء عليهم السلام پسې يې اقتداء وکړه فعلی العاقل ان يزهد ويرغب عن الدنيا ولا يقبل منها الا الحلال.
**پوه سه**: چې طلب د حلالې دنيا په داسې کسب سره چې هغه په شرعه شريفه کې روا وي سنت او طريقه د انبياء عليهم السلام ده او په کسب

حلال کي ډېرې فائدې سته (۱) اول، که یې تجارت کاوه یا دکان فائده یې زیاته وي پر راس المال ده (۲) که یې زراعت او کښت کاوه او یا یې مېوه داري درختي لکه انګور اینځر وغیره کښېنولې نو فائده یې صدقه ده پر مرغانو او نورو حیواناتو (۳) بله فائده د کسب داده چي کاسب سړی د خپل کسب په سبب د لهو او لعب او بیځایه ناستي څخه خلاص وي (۴) په کسب کي کسر النفس راځي او سرکښي د کاسب لړ وي، لکن په شرط ددې چي نقود د تجارت د قارون درجې ته نه وي رسېدلي. والا فقد قال الله تعالی ﴿ان الانسان لیطغی ان راءاه استغنی﴾ (۵) په کسب کي سړی د سوال او فقر الذي هو سواد الوجه في الدارین د سائل کېږي، او څوک چي د اولاد د ساتني لپاره کسب کوي هغه ته دا ویل کېږي بارک الله في حرکاتک وجعل نفقاتک ذخرا في الجنة، او ملکي د اسمانانو او مځکي وایي آمین.

**فائده**: افضل د کسبو جهاد في سبیل الله دی، ثم التجارة، ثم الحراثة، ثم الصناعة کذا في روح البیان مع زیادة من الفقیر.

## وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ

روح البیان وایي چي دا آیت په مشرکینو کي د عربو او په کفارو کي د قریشو نازل دی، نو مرجع د ضمیر په هغه آیت کي ذکر دی ﴿ومن الناس من یتخذ من دون الله انداداً آه﴾ والمعنی چي وویل سي یعني پر طریقه د نصیحت چي تاسي متابعت د ما انزل الله چي قران کریم دی چي آمر بالتوحید دی وکړی، یعني دغو مشرکینو ته نو دوی وتقلید ته د اباء او اجدادو میل کوي کماسیئاتي، او د ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت دی چي آنحضرت ﷺ ویهودو ته دعوت د اسلام ورکړی او دوئ یې وبېرول له عذابه څخه د خدای ﷻ، نو نافع بن حریمله او مالک بن عوف وعلیه الصلوة والسلام ته وویل چي زموږ پلرونه او نیکه ګان تر موږ خیر او خبرداره وه، نو موږ د هغو متابعت کوو، فانزل الله

تعالى هذه الآية نو پر دې تقدير مراد د ما انزل الله څخه يا قرآن کريم دی کما
هو الظاهر او يا تورات دی ولي چي تورات خو هم امر په اتباع د محمد ﷺ
دی، يعني که ددوئ ملايان د تورات د امر پټ والی ونه کړي حسدا وحبا
للرياسة. نو پر دې روايت مظهري رحمه الله وايي چي دا آيت تر پايه قصه مستقله
ده. لکن درويش وايي چي د ضمير مرجع پيدا کولو ته مظهري هم حيران دی
ولهذا قال والضمير الى غير مذكور آه او بيضاوي وايي چي ضمير د "لهم"
راجع دی وناس ته په يا ايها الناس کلوا آه.

**پوښتنه**: په آيت مذکوره کي خو دوئ مخاطب وه دلته ولي غائب کړه سوه؟

**ځواب**: ددوئ غيبت دلته لپاره د اعلان د حماقت ددوئ دی گويا
خدای ﷻ نورو عاقلانو ته وايي چي تاسي وگورئ ودغو بې وقوفو خلگو ته
چي دوئ په باره کي ددغه نصيحت د عليه السلام څرنگه جواب ورکوی
يعني بل نتبع آه فافهم.

## قَالُوا بَلْ نَتَّبِعُ مَآ أَلْفَيْنَا عَلَيْهِ آبَآءَنَا

دوئ په جواب کي د ناصح مذکور وايي چي يا موږ متابعت د ما انزل الله
نه کوو بلکه موږ متابعت کوو د هغه دين چي شرک دی يا يهوديت دی چي
موږ پر هغه دين پيدا کړي دي پلرونه او نيکه گان خپل.

**پوه سه**: چي دا د شيطان بله حيله ده چي د خلگو په زړو کي متابعت د
باطل يا د منسوخ دين پيدا کړي په وسوسه ددې چي زموږ نيکه گان تر موږ
خير وه نو موږ د هغو متابعت کوو نه د ما انزل الله يعني چي دين حق دی.

## أَوَلَوْ كَانَ آبَآؤُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ شَيْـًٔا وَلَا يَهْتَدُونَ ﴿١٧٠﴾

**فائده**: په ټوله قرآن مبارک کي چي همزه د استفهام پر واو عطف باندي
داخل سي او يا پر فاء عاطفه داخل سي نو چونکه همزه استفهام صدر د

جمله غواړي نو وروسته جمله چي مصدر په واو عطف سره وي یا فا عاطفه سره وي تر همزة الاستفهام د مخه جمله باندي نه سي عطف کېدای لغوات صدارت الهمزه. نو په هر ځای کي مایناسب المقام معطوف علیه به مقدر وي لکه په مانحن فیه تقدیر داسي دی ایتبعونهم ولو کان آه نو واو که څه هم اصلا لپاره د عطف دی لکن دلته تعجب هم ورسره ملګری دی نو ځکه بعض مفسرین رح یې واو التعجب بولي.

**پوه سه:** چي بیضاوي وایي چي دا واو لپاره د عطف دی والمعطوف علیه ماقلنا، او همزه لپاره د رد دی یعني رد د اتباع ددوئ دین لره د آباء سره د منافي د اتباع وهو انهم لا یعقلون آه، او جواب د لو شرطیه محذوف دی ای لو کان آبائهم کذا وکذا لا تتبعوهم. او همزه که څه هم لپاره د رد دی لکن معنی د توبیخ هم ځندي فهمېږي کما لا یخفی.

**درویش وایي:** چي د کلام څخه د روح البیان داسي فهمېږي چي کلمه د او لپاره د حال ده او بیضاوي خو تصریح په حالیت سره کړې ده لکن په منهیه کي یې ویلي دي چي د حالیت پر تقدیر جواب نه ضرورت نسته ولي چي کلمه د لو پر تقدیر د حالیت وصلیه د معنی څخه د شرطیه وتلې ده لپاره د مطلق تسویه ده یعني دوئ یې متابعت کوي که د دوئ پلرونه پوهېږي او که نه پوهېږي.

**پوه سه:** چي په اتفاق د مفسرینو رح لا یعلمون شیئا پر عموم نه دی پاته ولي چي دا مشرکان یا یهودیان په امورو د دنیا نه پوهېدل بلکه مراد دادی چي په امور ددین دوئ نه پوهېدل، او نه په دیني چارو کي دوئ پر هدایت وه بلکه پر ضلالت بخت وه، ولا یتفکرون في القرآن وهدایاته ولا في رسول الله ﷺ ومعجزاته. بیضاوي وایي چي په دې آیت کي دلیل دی پر منع د تقلید د هغه چا لره چي پر نظر او اجتهاد قادر وي، قال و اما اتباع

الغیر في الدین اذا علم بدلیل ما انه محق کالانبیاء علیهم السلام ومجتهدي الامة رح في الاحکام فهو في الحقیقة لیس بتقلید بل اتباع لما انزل الله او قال به رسوله ﷺ فلا دلیل فیه للوهابیة وغیرهم کما مر او منع د تقلید د مشرکانو یا یهودیانو چي دوئ اهل نظر وه د خپلو پلرو او نیکه گانو په دین کي به یې فکر وهلی چي ددوئ کتاب یې د صدق د هغه ډېري زمانې د مخه اعلان کړی دی، قال الله تعالی وکانوا یستفتحون به فلما جائهم ما عرفوا کفروا به یعني حسدا وحبا للریاسة.

**وَمَثَلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا كَمَثَلِ الَّذِىْ يَنْعِقُ بِمَا لَا يَسْمَعُ اِلَّا دُعَآءً وَّنِدَآءً**

او امثال د هغه کسانو چي کافران دي یعني المشرکین لکه مثال او حال د هغه چا دی چي نعرې وهي پر هغو حیواناتو لکه پسونه چي هغه نه اوري مگر بلنه او آواز د ناعق یعني اواز خو اوري نور یې په معنا نه پوهېږي.

**پوه سه:** چي که دا آیت په عبدة الاصنام کي نازل وي یعني مشرکانو یې معنی داده چي حال د مشرکانو چي دوئ عبادت د بتانو کوي او د دوئ څخه کومک غواړي او د رزق وغیره نعرې پر وهي لکه حال د هغه شپانه چي پسونو ته دا نعره وکي چي چېري خپ را وگرځه مثلا پسه خو اواز واورېدی نور یې په معنا نه پوهېږي چي څه یې راته وویل بلکه ددوئ بتان هغه نعره هم نه اوري، کما قال الله في شان اصنامهم ﴿ان تدعوهم لایسمعوا دعائکم﴾

**سوال:** په تشبیه د یو شي د بل شي سره خو مناسبت په منځ کي د مشبه او مشبه به لازم دی او سره ددې چي په مشبه کي چي بتان دي سماع النداء نسته او په مشبه به کي چي پسونه دي سماع النداء موجوده ده.



Scanned by CamScanner

**ځواب**: په آیت شریف کي خو تشبیه مرکب ده یعني استعاره تمثیلیه ده او په علم بیان کي وایي چي په تشبیه مرکب کي مشابهت د اجزاو د مشبه د اجزاء سره د مشبه به نه غواړي بلکه مقصود تشبیه د هیئت منتزعه د مشبه څخه په هیئت منتزعه د مشبه به غواړي وهو ههنا موجود والتحقیق في علم البیان.

**پوه سه**: چي صاحب د روح البیان وایي چي تشبیه مذکوره په دې آیت کي تشبیه مفرق ده یعني جلا جلا مشبه او جلا جلا مشبه به پکښي وایي او خو ده مضاف محذوف بللی دی یعني ومثل داعی الذین آه، او وروسته وایي چي خدای ﷻ داعي او ناصح د کافر مشابه کړی د ناعق سره د پسو مثلا. او کافران یې مشابه کړه د حیوانانو سره یعني د پسو سره مثلا، او دعوت د داعي الکفرة یې مشابه کړه د اواز سره د ناعق د پسو مثلا وقال حاصل التشبیه مثلک یا محمد ومثل الذین کفروا في وعظک لهم ودعائک لهم الی الاسلام وعدم استماعهم لتلک الدعوة کمثل الراعي الذي یصح بالغنم ویقول لهما کلي واشربي مثلا والغنم وان یسمع الصوت لکن لا یفهم مغزاه ومراد الراعي کذالک هولاء الکفار الذین هم کالبهائم لا یعقلون عنک اي لا یتدبرون حق التدبر فکانوا کانهم لم یسمعوا الاصواتک وندائک، او علامه مظهري رحمه الله چونکه دا آیت په شان کي د یهویانو نازل بولي کمامر نو پر ده باندي ددې تشبیه بیان دېر شکل سوی دی کما یظهري من مراجعة تفسیره فتدبر وخذما صنعا ودع ماکدر واعرف الرجال بالحق ولا تعرف الحق بالرجال.

صُمٌّۢ بُكۡمٌ عُمۡيٌ فَهُمۡ لَا يَعۡقِلُونَ ﴿١٧١﴾

**پوه سه**: چي دا درې سره لفظه خبر د محذوف مبتداء دي اي هم.

**فائده**: صم. جمع اصم ده چي په پښتو یې کڼ بولي، او بکم جمع د ابکم ده ابکم یعني گونگی، او عمي جمع د اعمی یعنې ړوند.

**پوښتنه**: کافرانو خو هم قوي سامعه درلوده او هم یې قوي ناطقه درلوده او هم یې قوي باصره درلوده، نو څرنګه اطلاق ددغو الفاظو ثلثه وو پر دوی صحیح دی؟

**ځواب**: هر عضو او اندام خدای ﷻ د یوې فائدې لپاره وانسان ته ورکړی دی نو چي هغه فائده پر هغه قوت مرتب نه سي نو دغه سړی ګویا عادم ددغه قوت دی مثلا د قوت سامعه فائده سماع الحق ده او د قوت ناطقه فائده اقرار بالحق دی، او د سترګو فائده لیدل د خدای ﷻ د اثارو د قدرت في الانفس والآفاق نو چونکه کافرانو دا درې قوي جزئیه د خپلو فائدو څخه محرومه کړي دي، یعني نه یې په ژبه سره اقرار وکړی په حق سره یعني کلمه لا اله الا الله محمد رسول الله. او نه یې دغه کلمه طیبه په غوږو د قبولیت واورېدل، او نه یې په سترګو معجزات د علیه السلام په رنګه د معجزې ولیدل بلکه په رنګ د سحر یې ورته کتل نو ګویا دوی عادم ددغو درو حواسو دي، فالکلام مبني علی التشبیه ای هم کصم آه، او چونکه علم عموما ددغو درو لارو په سړي کي پیدا کېږي او کفارو دا درې سره لاري پر ځانو باندي بندي کړي وې نو ځکه خدای ﷻ دا جمله پر تفریع کړه فهم لا یعقلون

**لویه فائده په تولة عربیت کي په بنه،** پوه سه چي یو صفت د مدح یا د ذم یا د ترحم چي عرب مخاطب ورته متوجه کوي په دې معنا چي دغه صفت لوی صفت مدح د موصوف دی مذکور او یا د ذم لوي صفت دی او یا د ترحم لوړ صفت دی، نو یې اعراب د موصوف څخه بدل کړی مثلا موصوف مجرور دی صفت یې مرفوع کړی نحو الحمد لله اهل الحمد برفع اهل، دې ته مرفوع علی المدح وایي بحذف المتبداء ای هو اهل الحمد اویا صفت په نصب سره راوړي لکه په مثل مذکور کي داسي ووایي الحمد لله اهل الحمد بالنصب چي دې ته منصوب علی المدح وایي بحذف الفعل والفاعل یعني اعنی اهل الحمد. دا

خو د مدح دوه مثاله وه او د ذم دوه مثاله نحو اعوذ بالله من الشيطان الرجيم بالرفع والنصب على القياس المذكور في المدح او د ترحم دوه مثاله نحو مررت بعبدک المسكين بالرفع او النصب على القياس المذكور.

**فائده**: له رفع څخه وجر ته او يا د نصب څخه وجر ته په عربي ژبه کي مثال نه لري، لان التقدير الجار سواء كان حرفا او اسما تكلف. او يا يو اسم وي چي په هغه کي معنى وصفي موجوده وي لكن پر موصوف يې اجراء د مانع لفظي په سبب نه وي روا نو بيا دوئ هغه مرفوع على المدح په حذف د مبتداء گرځوي لكه صم، بكم، عمي چي درې سره نكره دي او موصوف يې الذين كفروا دى چي معرفه دى، نو دوئ دغه درې لفظه مرفوع على الذم بولي وهذا تفصيل قول البيضاوي والمظهري رح رفع على الذم وهذا التفصيل مذكور في شرح الكافية للعارف الجامي رحمه الله وسائر كتب النحو وهذا التفصيل ينفعک في مواضع شتى من القرآن الكريم ان شاء الله تعالى، فليكن على ذكر منک.

**پوه سه**: چي مراد له سلب څخه د عقل د كافرانو څخه سلب كلي د عقل نه دى مراد لانه لا يصلح الذم، لان السلب الكلي انما يكون في المجنون والمجنون مرفوع القلم لايصلح للذم.

**تنبيه**: چونكه په اخر الزمان کي به د عامه خلكو حواس به په دنيايي چارو سره مسدد سي نو ځكه به نصيحت د علماؤ پر دوئ تاثير نه كوي،

قال السعدي الشيرازي رحمه الله

فهم سخن چون نکند مستمع — قوت طبع از متکلم مجوي

فسحت ميدان ارادت بيار — تا بزند مرد سخن گوي گوي

**درويش وايي**: چي كېداى سي علت د عدم تاثير د نصيحت دي په واعظ كي وي مثل واعظ رياء او جهلاً او عدم عمل الواعظ بوعظه .

قیل: واعظان چون جلوه در محراب ومنبر میکنند چون بخلوت میروند آن کار دیگو میکنند
چرا از غیر شکایت کنم که همچو حباب همیشه خانه خراب هوایی خویشتنم

## بیت في القسم الاول

گرچه ناصح را بود صد داعیه پند را اذنی بباید داعیه

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُلُوا مِن طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ

ای هغه کسانو چي ایمان یې راوړی دی تاسي خورک کوي د پاکو یعني شرعا او مستلذو یعني طبعا د هغو ماکولاتو څخه چي موږ تاسي ته په رزق در کړي دي.

**پوه سه**: چي مفعول د کلوا محذوف دی ای رزقکم او من بیانیه دی

**فائده**: مارزقنا کم عام دی که حلال وي او که حرام په نیز د اهل السنة والجماعة خلافا للمعتزلة، دوئ وایي چي حرام رزق نه دی، موږ وایو چي حرام که رزق نه وایي نو د طیبت د قید ضرورت به نه وایي ولي چي حرام خو په مارزقناکم سره ووتی، او دوئ وایي چي مراد د طیبت څخه مستلذات دي.

**پوه سه**: چي په دې آیت کي اشاره ودې ته ده چي مقتضی د ایمان او محبت الهي دانه ده چي سړی به ترک د اکل الطیبات کوي بل مقتضاه اکلها مع شکر الله اذ مقتضی الایمان ابلاغ حکمة الله غائبا فما خلق الله للاکل غایته الاکل.

وَاشْكُرُوا لِلَّهِ یعني مارزقکم واحل لکم إِن كُنتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ ﴿١٧٢﴾

او تاسي شکر واياست د خدای ﷻ که چېري یاست تاسي چي خاص د خدای ﷻ عبادت کوي.

**فائده**: ربط ددې آیت د ماقبل ایت سره دادی چې چونکه په مخني آیت کې پر عمومي خلګو فراخ والی وکړی او مباح يې کړه ودوئ ته مافي الارض ماسوی د حرام څخه نو په دې آیت خپل خاص بندګان چې مؤمنان دي خطاب ورته کوي، چې طیبات د مارزقوا خوري لکن حقوق د هغه هم پر خای کوي چې شکر دی، نو يې وویل ﴿یاایهاالذین آمنوا کلوا تر دی آیت پوري واشکروا الله ان کنتم ایاه تعبدون﴾

**پوه سه**: چې مظهري رحمه الله په روایت د مسلم د ابو هریره رضي الله عنه څخه داسې حدیث رانقل کړی دی ﴿ان الله طیب﴾ یعني خدای ﷻ پاک دی د ټولو عیبو څخه ﴿ولا یقبل الا الطیب﴾ او نه قبلوي مګر پاک شی یعني حلال ﴿وان الله امر المؤمنین بما امربه المرسلین﴾ فقال ﷻ یا ایهاالرسل کلوا من الطیبات واعملوا صالحا. وقال یاایهاالذین آمنوا کلوا من طیبات مارزقکم واشکروا الله ان کنتم ایاه تعبدون. وفي هذا الخطاب للمؤمنین غایة اعزاز المؤمنین حیث سوی بین خطابهم وخطاب الرسل علیهم السلام. قال الراوي رضي الله عنه ﴿ثم الرجل﴾ او بیا علیه الصلوة والسلام ذکر کړی یو سړی ﴿یطیل السفر﴾ چې اوږد سفر وکړي مثلا په طلب کې د علم او یا سفر ته د حج ولاړسي مثلا او غیر ذالک ﴿یمد یدیه یاب یارب﴾ او لاسونه پورته کړي او وایي یارب یارب یعني د خدای ﷻ څخه یو شی غواړي ﴿اشعث اغبر﴾ ببر سر يې وي او په خاورو سپیرې پښې او کالي يې وي لکن د خورک شی دده حرام وي اې د څښلو شی يې حرام وي او اغوستي کالي يې حرام وي، او غذا دده په حرام شي سره سوې وي ﴿فانی یستجاب لذالک﴾ نو به څرنګه ددغه سړي خواست خدای ﷻ قبول کړي. ولې چې علماء په متفق القول سره وایي چې شرط د اجابت ددعاء لقمه حلال ده.

**فائده**: خدای ﷻ چې امر په اکل د طیباتو سره وکړی د دوو فائدو لپاره اول دا چې مؤمنان چې اکل د طیباتو کوي باید په مقتضی د طبع نه وي بلکه باید نیت د امتثال د امر الهي وکړي لیتمیز اکلهم عن اکل الحیوانات لان اکلهم بمقتضی الطبع لا للامتثال، او دوهمه فائده داده چې دوئ په سبب د امتثال د امر الهي خورک د طیبات وکړی خدای ﷻ په سبب ددغه نیت دوئ ته ثواب ورکړي لان الاعمال بالنیات حدیث صحیح د بخاري دی ومعنی الحدیث ان ثواب الاعمال بالنیات نو که مؤمن په مقتضی د طبع طیبات خوري مباح خو دی لکن ثواب د اکل یې نسته بخلاف الاکل بنیت الامتثال.

**پوه سه**: چې د حمد او شکر او مدح معانی مشهوره دي او د هر علم په کتابو کې مسطوره دي لکن د شکر معنا چې محققان د صوفیه کرامو رح کړې ده هغه معنی داده چې بنده ټوله اعضاء ظاهره او باطنه به وهغه کار او عمل ته صرفوي چې خدای ﷻ وبنده ته د هغه کار لپاره ورکړې وي مثلا رئیس اعظم د بدن چې زړه دی خدای ﷻ ددې لپاره وبنده ته ورکړی دی چې په مصنوعاتو کې د رب ﷻ فکر وکړي تاچې هره ذره د مخلوق و معرفت ته د صانع اکبر ﷻ اندازه وګرځي او د رب ﷻ په حدانیت او قدرت کامل وغیر ذالک من صفاته الجلالیة والجمالیة سره وپېژني کما قال العارف الشیرازي رحمه الله.

برګ درختان سبز در نظر هوشیار هرورقي دفتریست معرفت کردګار

او پر دې قیاس کړه لاسونه او پښې او ژبه غوږونه الی غیر ذالک من الاعضاء، نو په دې معنا به لږ د بندګانو شاکره ګرځي کما قال الله عزوجل ﴿وقلیل من عبادي الشکور﴾

قال الشیرازي رحمه الله

مکن ګردن از شکر منعم بهیچ که روز پسین سر بر آري هیچ

روح البیان والا وایي چي امر د "واشکروا لله" نه لپاره د ندب دی او نه د اباحت بلکه امر ایجاب دی، وهذه عبارته اذ لاشک في انه یجب علی العاقل ان یعتقد بقلبه ان من اوجده وانعم علیه بما لایحصی من النعم الظاهرة والباطنة الجلیلة مستحق لغایة التعظیم وان یظهر ذالک بلسانه بان یقول هو القادر الخالق المصور الی غیر ذالک وبسائر جوارحه انتهی بزیادة یسرة.

**فائده:** تقدیم د ایاه پر تعبدون باندي لپاره د تخصیص د عبادت په خدای ﷻ پوري، وورد في الحدیث الصحیح قال رسول الله ﷺ یقول الله تعالی اني والانس والجن لفي نباء عظیم اخلق ویعبد غیري وارزق ویشکروا غیري.

## إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ

**پوه سه:** چي علماء د اصول الفقه او د فقه بلکه ټوله علماء د امت وایي چي حرمت یاحل وغیره چي مضاف و اعیانو ته سي یعني وذواتو ته د شیانو لکه په دې آیت کي چي د حرمت حکم پر ذوات د میتة وسو، مراد له هغه افعال دي ولي احکام شرعیه احکام د فعل د مکلف دي، نو معنا د آیت داده چي پر تاسي حرام دی خوراک د مرداری او نفع اخستل په هغه سره.

**فائده:** میتة هغه حیوان دی چي بېله شرعي ذبح مړ سي او په حدیث شریف کي راغلي دي چي د ژوندي حیوان څخه یو اندام پرې سي او هغه حیوان ژوندی وي لکه د پسه چي لم پرې کړي هغه جلا کړي اندام هم مړدار دی قال علیه السلام ما ابین من الحي فهو میتة

ماهی او ملخ ذبح نه غواړي لان العرف لم یجري بذبحهما، وقال علیه السلام احل لنا میتتان السمک والجراد، او بل داده چي حکمت د ذبح دادی چي د حیوان څخه دم هغه دم مسفوح چي مرداري دي ووزي او ماهی او ملخ دم مسفوح نه لري.

**پوه سه:** چي هره نفع اخستل پر مردار حیوان جائزه نه ده مګر پوست يې چي دباغت يې وکړه سي په شرعه شریفه کي نفعه اخستل پر روا دي مثلاً ژی (ګوډی) یا غړکه څندي جوړه کړي، موږ پر دم مسفوح وینو حکم د مردارو وکړی ولي چي دم جامد حلال دی، وفي الحدیث الصحیح احل لنا دمان الکبد والطحان یعني هینه او سږی.

**درویش وایي:** چي ددې آیتو د احکامو زدکړه په غور سره ضروري ده تاچي حلال او حرام سړی وپېژني یعني په حیواناتو کي.

**سوال:** نحات د بصرې وایي چي کلمه د انما لپاره د حصر ده او ډېر حرام شیان سته چي په دې آیاتو کي نه دي ذکر سوي.

مظهري رحمه الله ددې سوال په جواب کي وایي چي مختاره په نېز د حنفیانو دا ده چي کلمه د انما د قصر نه ده بلکه انما مرکب دی د ان چي لپاره د تحقق دی او د ما الکافه څخه.

**درویش وایي:** چي په دې سوال سره مظهري رحمه الله تفرد کړی دی مع ان المختار مذهب البصریة عند اکثر المفسرین ولعل المظهري رحمه الله وجد التصریح في الفقه الحنفي، نو بنه جواب هغه دی چي مظهري پر تقدیر د تسلیم راوړی دی یعني چي کلمه د انما لپاره د قصر سي چي قصر حقیقي نه دی یعني نسبت وتولو ماعداته حتی یرد السوال بلکه قصر اضافي دی یعني نسبت د بحیره او سائبه او وصیله او حام ته چي مشرکانو به دغه مذکوره حیوانات حرام بلل نو معنی د قصر داده چي داغه حیوانات حرام نه دي بلکه په دې آیت کي مذکور شیان حرام دي، الفتوی، اجمع علماء المذهب علی انه لایجوز بیع المیتة ولا اکل ثمنه، ولا الانتفاع بشحمه ولا بجلده قبل الدباغ کمامر.

**مسئله:** پوه سه چي پوست د مرداری وروسته تر دباغ امام اعظم رحمه الله او امام شافعي رحمه الله يې په دباغ سره پاک بولي، نو هم يې خرڅېدل روا دی او

هم نفع پر اخستل روا دی، او امام احمد او امام مالک رح وايي نه يې بيعه روا ده او نه نفعه پر اخستل، ودلائل الفريقين في الكتب المبسوطة من التفاسير وكتب الفقه فعليك بمطالعة شرح لمعاني الاثار للمحدث والفقيه الاعظم ابو جعفر الطحاوي رحمه الله وشرح الهداية فتح القدير على مذهب الامام الاعظم ابي حنيفه رحمه الله. او د جابر رضي الله عنه عنه څخه روايت دی چې ما واورېده د رسول الله ﷺ څخه په کال کې د فتح د مکې چې عليه السلام په مکه کې و، داسې يې ووېل چې خدای ﷻ او روسول ﷺ د خدای ﷻ حرام ګرځولې ده بيع د شرابو، او د ميتة او د سرکوزي او د بتانو، نو يو صحابي رضي الله عنه پوښتنه څندي وکړه چې وازګي د ميتة چې د کېښتي تختې خلګ په غوړوي او يا څرمني په غوړوي او يا يې په څراغانو کې لګوي څرنګه حکم يې دی، فقال ﷺ لا هو حرام، عليه الصلوة والسلام زياته کړه چې لعنت د خدای ﷻ دي وي پر يهوديانو باندي چې دوئ ته خدای ﷻ وازګي د ميتة حرامي ګرځولې وې، دوئ به دا وازګي ويلي کړې او بيا به يې خرڅولې او ثمن به يې خوړی، اخرجه البخاري ومسلم رح

**مسئله**: پوه سه چې په وېښتيانو، هډوکو، پلو، ښکرو او په نوکانو کې د مرداری مذاهب مختلف دي، امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله تولـه پاک بولي او بيعه يې روا بولي او نفع پر اخستل يې هم روا بولي، او امام شافعي رحمه الله تولـه نجس بولي.

**مسئله**: د اُسامه رضي الله عنه څخه روايت دی چې عليه الصلوة والسلام نهي وکړه د پوستو څخه د درندګانو، رواه ابو داوٗد والنسائي والحاکم رح

**درويش وايي**: چې د سباعو څخه مراد هغه حيوانان دي لکـه، زمرى، پړانګ، لېوه وغيرها يعني ګيدړه په لېوانو او سباعو کې نه ده داخله نو د هغې پوست په دباغ سره پاکېږي، نو پوستين يا مسئله څندي جوړول روا دی

## وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنْزِيرِ

يعني جاريويني لقوله تعالى ﴿او دما مسفوحا﴾ وهذا بالاجماع. يعني حرام دی د جاري وينو خورک، او د غوښو د سرکوزي.

**پوه سه:** چې سرکوزی نجس العين دی بالاجماع فانه رجس.

**مسئله:** نه ده روا بيعه د اجزاؤ د سرکوزي والانتفاع بشيئ من اجزائه حتى الشعر، په نيز د امام شافعي رحمه الله.

**سوال:** نو په آيت شريف کي تخصيص د لحم ولي کړه سوی دی؟

**ځواب:** چونکه اصل په حيواناتو کي خورک د غوښو دی، نو نور اجزاء د سرکوزي لکه تابع د غوښو دی نو ځکه يې تخصيص د غوښو وکړه سو

**مسئله:** انتفاع په وېښتانو د سرکوزي لپاره د ګنډولو د بعض ټپو د اپرېشن وغيره امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله او امام مالک رحمه الله يې روا بولي لضرورة، او امام شافعي رحمه الله يې روا نه بولي، او امام احمد رحمه الله يې مکروه بولي، وفي الهداية لو وقع يعني شعره في الماء القليل فسده وعند محمد رحمه الله لايفسده، قال امام محمد رحمه الله ان اطلاق الانتفاع بشعره دليل طهارته. ولابي يوسف رحمه الله ان اطلاق الانتفاع للضرورة ولا يظهر الضرورة الا في حالة الاستعمال يعني للخرز مثلا وحالة الوقوع يغايرها، او فقيه ابو الليث رحمه الله وايي چي که وېښته د سرکوزي په وخت کي د ضرورت بېله رانيولو نه پيدا کېدی رانيول يې روا دی. او امام همام کمال الدين رحمه الله په فتح القدير کي وايي چي بعض فقهاء وايي چي په ګنډلو کي هم ضرورت د سرکوزي وېښته ته نسته بلکه ضرورت په نورو وېښتيانو سره د فع کېږي، او دی وايي چي ابن سيرين رحمه الله هغه موزه يا بوټ يا چوټه نه په پښو کوله چي د سرکوزي په وېښتيانو په ګنډل سوي وه، نو پر دې تقدير بيع او شراء يې ناروا ده.

## وَمَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللَّهِ

او هغه شی وتاسي ته حرام دی چي په وخت کي د ذبح نوم د غير الله پر ويل سوی وی.

قال صاحب روح المعاني اى ما وقع متلسا په اى بذبحه الصوت لغير الله، يعني لكه بوت پرستانو د مكې به په وخت كي د ذبح د ذبيحې په بلند اواز ويله باسم اللات والعزى مثلا ، او روح المعاني ورروسته ويلي دي والمراد بغير الله الصنم وغيره كما هو الظاهر. وقال صاحب روح البيان اي وحرم مارفع به الصوت عند ذبحه اسم غير الله، وقال البيضاوي رحمه الله اى رفع به الصوت عند ذبحه للصنم يعني كما يرفعون المشركون عند ذبح الحيوان اسماء آلهتهم كمامر.

**درویش وایي**: چي ددې تولو تفاسيرو حاصل دادی چي سبب د حرمت فقط ذكر د غير الله دی سواء كان صنما او غيره لكن صرف په وخت كي د ذبح او امرار السكين على المذبوحة لا قبله ولا بعده.

**تفریع**: درویش وایي چي پر قول ددغو حضراتو مفسرينو رح كه يو سړى ذبح د پسه يا غوايي وغيرهما لپاره د ايصال د ثواب و روح انور ته د عليه السلام او يا وروح ته د مور او پلار او يا د استاذ او يا د شيخ الطريقة ذبح كړي لكن په وخت كي د ذبح صرف او صرف ووايي بسم الله اكبر دا ذبيحه پاكه او حلاله ده او ثواب يې هغو ته رسېږي بلا اختلاف بين ائمة المذاهب الاربعة. فلا ، والا، والا، دا مستثنى ملايان معلوم الحال دي تصريح ته يې ضرورت نسته. وكيف لا يجوز الذبح بنية ايصال الثواب الى المذبوح عنه مع انه ورد في البخاري وغيره انه عليه السلام ضحي عن ازاوجه بقرة وايضا صح انه عليه السلام كان يضحى بكشين واحد عن نفسه المباركة وواحد عمن لم يضح عن امته فهل هذا الا ايصال الثواب.

**پوه سه**: چي اهلال په لغت كي رفع د صوت ده په نېز د روئيت د هلال او مياشتي كماهو المعتاد في العرب والعجم يقولون عند روئيت الهلال باعلى صوته هذا الهلال او يا هغه ده مياشت. ثم اطلق على رفع الصوت عند ذبح الحيوان كما كان المشركون ينادون باعلى صوتهم باسم اللات والعزى،

والمؤمن يقول عند الذبح بسم الله الله اكبر. فالمنكرون من الذبح بنية ايصال الثواب الى الحي والميت لم يفرقوا بين نية المؤمن وبين الاهلال.

**درویش وايي:** چي په روح البيان کي داسي عبارت راغلی دی قال العلماء لو ذبح مسلم ذبيحة وقصدبها التقرب الى غير الله صار مرتدا وذبيحته ميتة انتهى.

**درویش وايي:** چي دا عبارت على الاطلاق نه دی صحيح کيف که پر مسلمان يوه ذبيحه ذبح کړي او نيت او قصد يې تقرب وي ورسول الله ﷺ ته په دې معنا چي تقرب ومقرب بنده ته د خدای ﷻ بعينه تقرب دی ومولی ﷻ ته لان النبي ﷺ من خواصه وحب كل واحد منها حب الآخر والتقرب الى كل واحد منها تقرب الى الآخر، نو په دې نيت سړی او مؤمن ولي مرتد ګرځي او سره ددې چي خدای ﷻ وحبيب ﷺ ته په قرآن مبارک کي داسي ويلي دي ﴿قل ان كنتم تحبون الله فاتبعوني﴾ نو په دې آيت کي خدای ﷻ خپل محبت درج کړی په اتباع د خپل حبيب ﷺ کي نو به ولي قرب الى حبيبه قرب اليه تعالى نه وي او بل ټوله مؤمنان په امر د عليه السلام هر وخت په نيت د تقرب الى حبيب الله درودونه وايي په نيت ددې انهم اذا قربنا الى حبيب الله قربنا الى من جعله حبيبا يعني المولى ﷻ وعلى هذا فما الفرق بين التقرب الى حبيب الله ﷺ وسيلة سنية الى تقرب المولى ﷻ، وعلى هذا فقس التقرب الى عباده تعالى المقربين بجعلهم وسائل الى تقربه جل سلطانه وقد ورد في الحديث الصحيح الذي رواه البخاري وغيره انما الاعمال بالنيات آه فمهاجر ام قيس لما لم ينو بالهجرة الى المدينة التقرب الى النبي ﷺ بل التقرب الى نكاح ام قيس جعل ذالک النکاح ثواب هجرته بخلاف غيره من المهاجرين ؓ الذين هاجروا الى الله ورسوله. بل كلام روح البيان له محمل آخر من حيث ان بعض العوام لما جائهم الملک او الوزير ذبحوا بحضورهم ذبائح عديدة جلبا بمحبتهم ورضائهم ولم يلتفتوا في

تلک الذبائح الى رضى الباري ﷻ ومحبته بل لم يخطروا ببالهم تلک المحبة فالذابح المذکور مرتد وذبيحته ميتة بلا شک فللعاقل ان يفرق بين التقرب الى المقربين في جنابه تعالى من حيث ان تقربهم تقربه الى تعالى وبين التقرب الى الامراء والرؤساء فافهم.

**پوښتنه:** مشرکانو خو هم په عبادت د بتانو دا ويل مانعبدهم الا ليقربونا الى الله زلفى، فما الفرق بين الفريقين؟

**جواب:** الفرق اظهر من الشمس من حيث ان عباده المقربين وسائل واقعية الى قرب الله ﷻ من حيث بعثهم الله ﷻ لتعليم الخلق قربه تعالى ومحبته بخلاف اصنام المشركين لانها انداد الله واسباب البعد عن الله تعالى والبغض منه تعالى وانما قولهم المذکور محض التوهم باغواء الشيطان فکيف يصح قياس قول اخوان الشياطين على قول اولياء الله المقربين.

**درويش وايي:** چي زما غرض په دې دونده طويل کلام کي دادی چي معلوم الحاله ډلي په دغه قول د روح البيان ډېرو مؤمنانو ته مشرکان وايي او ذبيحه يې مرداره بولي.

**بيت**

نظام ببنظام ار کافر م خواند چراغ کذب را بنود فروغی

مسلمان خوانمش زيرا که بنود مکافات دروغي جز دروغی

**پوه سه:** چي مشرکانو به همېشه غوښي د ميتة ښه په مزه خوړلي او د هديه په توګه به يې دا غوښي خپلوانو او دوستانو ته ور استولې، او دوئ به مسلمانانو ته ويله چي هغه حيوان چي تاسي مړ کړئ يعين ذبح يې کړئ د هغه غوښي تاسي خورئ او چي خدای ﷻ يې در مړ کړي يعنون ميتة هغه نه خورئ.

**فائده:** په ميتة کي المترديه، يعني چي په خاه کي حيوان ولوېږي او يا د لوړه خايه راشوه سي اومړسي هم داخله ده، او المنخنقه يعني چي رسی يې په غاړه جاروځي او مړسي، او يا يې څوک په خفه مړ کړي هم داخله ده.

اوالموقوذة " چي څوک حیوان په لرګي ووهي او مړ سي هم داخل دی، او النطیحة یعني یو حیوان بل حیوان په ښکر ووهي او مړ یې کړي هم داخل دی، او ما اکل السبع یعني چي یو حیوان درنده وداړي او مړ سي هم داخل دی، او متروک التسمیة په قصد سره هم داخل دی کما في کتب الفقه.

**فائده**: په حیوان کي چي په ذبح شرعي حلال سوی وي د نهو (۹) شیانو خورک یې مکروه دی (۱) ویني (۲) خوشایي او پچي یې (۳) د غوا، میږي او بزې کوس (۴) کونه د هر حیوان (۵) غړ د حیوان (۶) خوټې د حیوان (۷) سپوخسه د حیوان (۸) حرام مغز د حیوان (۹) تریخی.

**فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ**

او که څوک مجبوره سي وخوړلو ته د یو شي ددغو حرامو شیانو یعني غیر ددغو محرماتو څخه د خورک حلال شی نه وي، او اضطرار او مجبور والی دادی چي سړی پر خپل ځان بېرېږي چي د لوږي به مړسي، په داسي حال کي چي د ی ظالم پر بل مضطر نه وي. یعني یو بل مضطر که یو شی ددغو حرامو شیانو څخه پیدا کړی وي دغونده اندازه چي هغه بل مضطر فقط د مرګه په راګرځي نو دا بل مضطر هغه شی له هغه مضطره په زوره واخلي او خپل ځان له مرګه په راوګرځوي، او هغه بل چي حرام شی یې پیدا کړی هغه ومرګ ته وسپاري.

**پوه سه**: چي داسي کول حرام دي ولي چي خپل ځان له مرګه راګرځوي او بل ومرګ ته سپاري، او واجد د حرام هم هغه دی عقل او شرع ددې کولو څخه منع کوي ولي چي واجد الحرام اولی په ژوندی پاته کېدو دی تر ظالم، او نه به تجاوز په خورک کي د میتة کوي تر حد شرعي، یعني دنده قدر به خوري چي مضطر له مرګه په راوګرځي او دونده به نه خوري چي ځان تر ستوني په موړ کړي، لان الضرورات تبیح المحظورات بقدر الضرورة، نو په ضرورت کي په خوړونکي د میتة ګناه نسته او په تحقیق خدای ﷻ غفور او رحیم دی.

**پوه سه**: چي غفور او رحیم ددې لپاره خدای ﷻ ذکر کړی چي سړی چي له مرگه سره مخامخ وي د لوږي له کبله څخه طبعا هر څو چي احتیاط وکړي تر سدرمق بالا څندي خوړل کېږي، نو د هغه بالا خوړلو خدای ﷻ عفو ورته کوي.

**مسئله**: که چا په حال د اضطرار د میتة د خورک څخه منع وکړه او مړ سو، او یا د چا روژه وه له تندي یا له لوږي مړ سو گناه کار دی.

**مسئله**: که څوک مریض و او دوا یې نه وکړه او مړ سو گناه کار نه دی ولي ده ته دا یقین نسته چي دی به په فلانی دواء جوړېږي بلکه شاید بېله دواء یې خدای ﷻ جوړ کړي.

**مسئله**: په اشباه والنظائر کي وایي چي ومریض ته تداوي په نجاساتو سره رواه ده پر یوه قول د امام اعظم رحمه الله، او قاضي خان وایي چي نه ده روا.

**مسئله**: قاضي خان رحمه الله وایي چي که د سړي په ستوني کي ډوډی بنده سوه او پر مرگ وبېرېدی، او بېله شرابو بل مائع شی چي گوله په تېره کړي نه و په شرابو تېرول د گولې اتفاقا روا دي.

**مسئله**: په فتوی تاتارخانیه کي وایي چي که سړی د تندي له سببه وحال ته د اضطرار ورسېدی، او بېله شرابو بل د تندي ماتونکی شی نه وو شراب څښل ورته روا دي.

**سوال**: صدر شهید رحمه الله وایي چي طلب د شفاء په حرامو سره حرامه ده نو څرنگه دمخه ذکر سوي مسئلې صحیح کېږي؟

**ځواب**: د صدر شهید رحمه الله مراد دادی چي که د مریض یقین نه وي چي زه په حرامو سره جوړېږم نو د حرامو خورک ورته روا نه دی، او که چېري د مریض یقین و چي بېله دغو حرامو زما بله دوا نسته کمافي المسائل المذکورة فیجوز الاستشفاء به.

**مسئله**: په تهذیب کي وایي چي مریض ته څښل د بولو او د وینو روا دی چي مسلمان طبیب ورته ووایي چي تا لره په مباح دواء کي هیڅ دوا نسته، کذا في شرح الاربعین.

**درویش وایي**: چي ددغو مسائلو مذکوره څخه یو بل حکم هم معلوم سو چي بعض مریضان چي سخت اپریشن ته په قول د مسلمانانو ډاکټرانو مجبور سي او هغه ډاکټران ورته ووایي چي ببله اپریشنه ستا بل هیڅ علاج نسته. او هغه ډاکټران دا هم ورته ووایي چي ستا د ویني د نمبر سره برابره وینه به پیدا کوې او هغه د پیچکاریو په ذریعه یو بوتل یا دوه مثلا تاته لګول کیږي وروسته تر هغه موږ ستا اپریشن درکوو. آیا دغه مسلمان مریض ته د بل انسان د ویني پیچکاري کول روا دي؟

**ځواب**: هو! که څه هم وینه خو نجسه ده لکن مسلمانانو ډاکټرانو چي دده صحت مربوط ددغو وینو په ترزیق پوري وباله. نو ده ته دا ترزیق روا دي قیاسا علی المسائل المذکورة الماخوذة من کتب الفقهاء. کمامرت.

**مسئله**: که دغه مریض ته دغه وینه مفته نه پیدا کېدله بلکه یو بل سړي دغه وینه په رپو ورکوله. نو حکم یې دادی چي دغه مریض ته خو په سبب د ضرورت دویني رانیول روا دي. لکن بائع ته خرڅول د ویني حرام دي لانه نجس ولا ضرورة له في اخذ الثمن علیه فافهم.

**فائده**: په روح البیان کي وایي والغفور والغفار هو الذي اظهر الجمیل وستر القبیح، والذنوب من جملة القبائح التی ستر الله تعالی باسباب الستر في الدنیا والتجاوز عن عقوبتها في الآخرة وحظ العبد من هذا الاسم ان ستر من غیره مایحب ان یستر منه. وفي الحدیث الصحیح قال علیه السلام من ستر علی مؤمن عورته ای عیبه ستر الله علیه عورته یوم القیامة ای خطیئة یوم القیامة بان یغفرها له.

**پوه سه**: چي غیبت کونکی سړی او یا بهتان ویونکی څوک او یا متجسس د احوالو د خلګو او یا د بدي د چا عوض په بدو سره ورکونکی سړی په دې وصف الهي کي برخه نه لري بلکه موصوف په دې وصف سره هغه سړی کېدای سي چي د بل چا ښه صفت بیانوي او بد یې پټوي، د

عیسی ﷺ څخه روایت کړه سوی دی چي دی په داسي حال کي چي مخلصان دده ورسره ملګري وه په یوه لار کي روان وه چي یو سپی بدبویه مردار پروت و، نو مخلصانو وویل چي څرنګه مردار بوی ددې سپي ولاړېږي عیسی ﷺ وویل چي ددې سپي څرنګه سپین غاښونه دي.

# إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ مِنَ الْكِتَابِ

په تحقیق هغه کسان چي پټوي هغه شی چي نازل کړی دی خدای ﷻ د کتاب څخه.

**یوه سه:** چي دا آیت په شان کي د عیسایانو او دملایانو د یهودیانو نازل سوی دی چي هغو به د خوار او غریب خلګو څخه هدایا، صدقات تر لاسه کول، او بیان د علیه الصلوة والسلام چي به په توارت کي و هغه به یې پټاوه.

**یوه سه:** چي په تفسیر روح المعاني، روح البیان او په تفسیر مظهري کي وایي په روایت د ابن عباس ﷺ چي دا آیت په شان کي د علماؤ د یهودیانو نازل سوی دی، او مراد له کتابه تورات دی چي په هغه کي پوره حلیه او نعوت د علیه السلام مذکور وه. او د یهودیانو د ملایانو دا خیال و چي نبي آخر الزمان به زموږ د یهودو له قومه څخه وي. نو څه وخت چي خدای ﷻ محمد ﷺ د عربو له قومه څخه مبعوث کړی، نو د یهودو د ملایانو دده سره حسد پیدا سو، او چونکه دې ملایانو ملعونانو د یهودو له قومه هدایا زکواتونه او صدقات در لودل نو دوی وېرېدل چي که موږ حقیقي نعوت د نبي آخر الزمان چي په تورات کي موجود وه او یوازي صداقت د محمد ﷺ وخپل قوم یهودو ته بیان کړو هغه به ټوله پر محمد ﷺ ایمان راوړي او زموږ هدایا صدقات وغیره به قطع سي، نو اتفاق یې پر دې وکړی چي نعوتو ته د نبي اخر الزمان به تغیر ورکړو او دا کاذبانه نعوت به عوامو ته ښکاره کړو چي هغه پر دې قانع کړو چي نبي آخر الزمان محمد ﷺ نه دی، ولي چي په ده کي دغه نعوت نسته، نو نبي آخر الزمان به په

وروسته کې پیدا کېږي، نو په دغه حیله ملایانو د یهودو خپل قوم د ایمان راوړلو څخه پر علیه الصلوة والسلام بېزاره کړه او ټولو یې دا ویل چې نه منعوت في التورات نبي نه یې.

**درویش وایي:** چې په بعض روایاتو کې د کعب الاحبار څخه داسې روایت منقول سوی دی چې په تورات کې د نبي آخر الزمان په باره کې د نورو نعوت سره داسې هم راغلي دي مولده بمکه مهجره المدینه نو دغه روایت که صحیح وي نو د یهودو د ملایانو عداوت د نبي علیه الصلوة والسلام سره صرف او صرف پر ببره د خپل ریاست او حب المال والجاه باندې مبني و یعني دا سبب نه و چې نبي آخر الزمان به د یهودو څخه وي کمامر نقلا من التفاسیر المذکورة ولې په تورات کې چې مولد د آخر الزمان یې مکه ښودلې وه او مهجر یې مدینه نو خو دوئ په دې خبر وه چې نبي آخر الزمان به عرب وي ولې چې په مکه کې هېڅ یهودي گذاره او قیام گاه نه درلوده والله اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب.

## وَيَشْتَرُونَ بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا

او دوئ یعني ملایان د یهودو رانسي یعني حاصلوي خان ته لږ ثمن او قیمت د آیاتو د تورات چې دوئ پټ کړي وه.

**سوال:** دې ملایانو و ډېر شی نقود وغیره د عوامو څخه تر لاسه کما لایخفی، نو ولې ثمن قلیل وویل سوه؟

**ځواب:** ډېر شیان خو وه په دنیایي لحاظ، مگر نظر ونعموته د جنت چې دوئ هغه د لاسه ورکړي وه دا دنیایي شیان بېخي اقل قلیل دي لانها رزیلة بالنسبة الی نعیم الجنة ودنیة مع انها فانیة ونعم الجنة باقیة ابدیة فهذا التبدیل من غایة حماقتهم وقد ضلوا واضلوا سائر الیهود الی یوم القیامة فعلیهم اثم ضلالهم واضلالهم. ویحملون اثقالهم مع اثقال غیرهم، او دغه به هم حال وي د ملایانو د امت امحمدیه ﷺ چې ورته کار وکړي کالفرق الضالة

من اثنين وسبعين فرقة من الامة المرحومة كما ورد في الحديث الصحيح النبوي ﷺ كلهم في النار الا الناجية وهم اهل السنة والجماعة كثرهم الله.

أُولَٰئِكَ مَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ إِلَّا النَّارَ

او دغه كسان نه خوري په ډک نس مګر نه اور.

**پوښتنه:** ملا يانو د يهوديانو خو رشوتونه او بډي د عوامو څخه اخستې، نو اور يې څرنګه خوړی؟

**ځواب:** په دې دنيا کې چونکه د رشوتونو او بډو اخستل سبب د دوزخ د اور ګرځې نو يې دغه رشوتونه عين اور بلل کېږي من اطلاق المسبب على السبب او په اخرت کې خو ظاهره ده چې عين اور د دوزخ به خوري عقوبة لهم على ما اكلوا من الرشي على كتمان كتاب الله التوراة. يعني نعوت النبي آخر الزمان محمد ﷺ ومعنى في بطونهم ملا بطونهم. يقال اكل فلان في بطنه اذا ملاء بطنه واكل في بعض بطنه اذا كل قليلا من ملاء البطن، يعني چونکه في بطونهم يې متعلق په ياء كلون پوري كړی نو دا بيان د محل د اكل دي او د مقر د ماكول دی، نو چې ياء كلون في بعض بطونهم نه وويل سو نو معلومه سوه چې محل د اكل ټوله نس دی فيلزم منه امتلاء البطون عاية الامتلاء.

وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

او نه خدای ﷻ ددوئ سره خبرې کوي په ورځ د قيامت.

**پوه سه:** چې چونکه په بل ايت کې داسې راغلي دي فوربک لنسئالنهم اجمعين، نو سوال خو په خبرو سره دی نو ظاهرا ددې آيت او هغه آيت تر منځ د منافاتو توهم کېږي، نو بعض مفسران رح دفع د منافات متوهم په دې ډول کوي چې منفي په دې آيت کې خبرې دي په مايسرهم يعني چې دوئ دې په خوشحاله سې داسې خبرې نه ورسره کوي، او مثبت په هغه بل آيت کې

خبري د غضب دي يعني بما يسوءهم. او بيضاوي دا آيت محمول پر غضب بولي كناية، ولي چې په عرف كې داسي ويل كېږي چې فلانى د فلانى سره خبري نه كوي يعني معنا يې داده چې ورته په غضب دى، ولي د غضب سره نه خبري كول لازمي دي، او بعض مفسران رح وايي چې منفي په دې آيت كې خبري دي د خداى ﷻ بالذات او مثبت په هغه بل آيت كې خبري دي په واسطه د ملائكه وو على كل تقدير فلا منافات بين الاثبات والنفي

## وَلَا يُزَكِّيهِمْ

او نه دوئ پاكوي د خيرو څخه د كفر او ګنهو په اور د دوږخ ولي اور د دوږخ ددوئ لپاره ابداً ابداً دى بخلاف د بعض مؤمنانو چې خداى ﷻ داخل النار ورګرځوي هغه اور د دوئ د پاكوالي لپاره دى له خيرو څخه د ګنهو تاچې مستعد وګرځوي لپاره د جنت لان اهل الجنة لا يكونون الا الطاهرون او المطهرون حاصل داچي كافران په دوږخ كه په مثل د لرګو لري چې خلګ اور په بل كړي په دې كي اهانت د لرګو دى، او د مؤمن اور په مثال د اور د زرګر دى چې زر چې خيره لري هغه څندي لبري كړي نو په هغه اوركي دزرګر تعظيم دى دزرو تاچي دزيورودجوړولو قابل سي.

## وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيمٌ ﴿۱۷۴﴾

او دوئ لره عذاب درد وركونكى سته.

**پوه سه:** چې اليم كه څه هم فعيل د مجرد له بابه دى بعض مفسران رح يې په معنا د اسم فاعل له باب د افعال بولي، اى مؤلم او معنا يې درد وركونكى فعلى هذا اسناده الى العذاب على الحقيقة دى. او بعض مفسران رح يې په لازمي معنا بولي او اسناد يې وعذاب ته مجازا بولي مثل ظل ظليل، وداهية دهياء، وليل لئيل، ولايخفى مافيه من المبالغة، ومثال الاول قول الشاعر، امن ريحانة الداعي السميع اى ممع يورقني واصحابي يجوع اى نيام.

# أُولَٰئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الضَّلَالَةَ بِالْهُدَىٰ وَالْعَذَابَ بِالْمَغْفِرَةِ ۚ فَمَا أَصْبَرَهُمْ عَلَى النَّارِ ﴿١٧٥﴾

او هم دغه کسان یعني علماء الیهود چي دوئ کتاب الله تـوارت پـه ثمن قلیل سره خرڅ کړی دوئ رانیول په دنیا کي گمراهي او کفر په هـدایت او ایمان سره، یعني هدایت لکه ثمن وګرځاوه او ګمراهي لکه مبیعه وګرځوله او په اخرت کي عذاب لهي د دوږخ ېې رانیوی په مغفرت الهي سره، یعنـي که دوئ له کفره او کتمان الحق څخه توبه کښلې وایي خدای ﷻ بـه دوئ ته بخښنه کړې وایي نو څـه عجب صبر دی دوئ پر اور بانـدي یعنـي پر اسبابو د اور چي کفر او کتمان الحق دی.

**پوه سه**: چي استفهام د ما اصبرهم لپاره د تعجب د مؤمـنـانو دی وصبر تـه د یهودیانو د ملایانو پر اور د دوږخ یعني موجبات النار والا فلا صبر علی نفس النار لاحد من الناس. او عاقل سړی چي ادنی عقل لري باید هـدایت په هیڅ قیمت له لاسه ورنه کړي، او عذاب النار په هیڅ مبلغ را نه نسي.

**تنبیه**: مراد له اور څخه اسباب د اور دي کما اشرنا الیـه. او کلمـه د مـا کـه څه هم لپاره د تعجب ده لکن چونکه تعجب پر خدای ﷻ محاله دی نو دلته بلکه پـه ټولـه قرآن کریم کي لپاره د تعجیب ده یعني القاء السـامعین فـي التعجب فـافهم، امـا عـدم جـواز التعجـب علـی الله فـلان منشـاء التعجـب الجهل بسبب المتعجب منه کمالا یخفي، وهو محال علی الله ﷻ.

**فائده**: کلمـه د مـا پـه اعتبار د اصل پـه معنـا د شي منکر ده او مبتـداء ده او مصحح د ابتدائیه یې دادی چي تنکیر یې لپاره د تعظیم دی کما فـي شر اهر ذانـاب. او یـا کلمـه د مـا موصـوله ده او مـا بعـد یې صـلـه ده او خبر یې محذوف دی اي شیئ عظیم وانمـا قلنـا باعتبـار الاصـل لانهـا منقولـة مـن المعنی الخبري لانشاء العجب کذا في البنضاوي وحواشیه.

ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ نَزَّلَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ ؕ

يعني د عذاب النار په سبب ددې دی چې خدای ﷻ نازل کړی دی کتاب يعني جنس کتاب که تورات دی که قرآن په حق سره الباء للملابسة نو خود به هغه څوک چې تکذيب د حق لکه يهودانو چې تکذيب د قرآن کريم وکړی او يا حق پټوي لپاره د اغراض فاسده و دنيويه و لکه د يهوديانو ملايانو چې د تورات نازل سوي آيتونو په باره کي د نعوتو د محمد ﷺ يې پټ کړه هغه کسان به په دوږخ او اور کي وي.

**پوه سه:** چې چونکه نزول د کتاب بالحق خو سبب د عذاب النار نسي کېدای ددې سببه مفسرين رح تهولـه داسي تقدير ورسره کوي فرفضوه بالتكذيب او الكتمان واشرنا اليه في الترجمة بقولنا نو خود به هغه څوک آه.

وَاِنَّ الَّذِيْنَ اخْتَلَفُوْا فِي الْكِتٰبِ لَفِيْ شِقَاقٍۢ بَعِيْدٍ ﴿۱۷۶﴾

**او په تحقيق هغه کسان چې اختلاف کوي په کتاب کي.**

**پوه سه:** چې لام تعريف په الكتاب کي يا لپاره د جنس دی، نو اختلاف يې دادی چې په بعض کتب الهيه و سره ايمان سړی لري او په بعض کتب الهيه و سره کفر کوي لکه يهود او نصاری، او يا لام لپاره د عهد دی نو معهود يا قرآن کريم دی او اختلاف په قرآن کي دادی چې بعض کفار وايي ي قرآن سحر دی او بعض وايي كلام علمه بشر، او بعض وايي چې قرآن مبارک د پخوانيو خلګو قصې دي يعني له جانبه د خدای ﷻ نه دی او يا لام عهد اشاره وتورات ته ده او اختلاف په تورات کي تاويل د تورات دی پر خلاف د ما انزل الله او يا تحريف دی د ما انزل الله كمامر في احوال علماء اليهود، نو مذكور کسان په شقاق او اختلاف کي دي چې لري دي دوئ د حق او صواب څخه.

**فائده:** پوه سه چي په دغو آيتو کي زجر عظيم دی هغو ملايانو لره د امة محمديه ﷺ چي حق د دين اسلام پټوي د غرض فاسد دنيوي لپاره يعني چي د رئيسانو څخه د حکومت او يا د وزيرانو څخه يې پټوي او يا د دنيا دارانو څخه يا د دې غرض لپاره چي زه حق بيان کړم زما قدر او رتبه په حکومت کي د زوال يا د نقصان سره مخامخ سي او د دوئ مالي مرستو ته سترګي په لاره وي، او يا دغه ملايان د هغو مذکوره اشخاصو سره په بعض احوالو کي د هغو شريکان وي کحب الدنيا وجمع المال من الحلال والحرام، ولهذا لم يذکروا بعض المحرمات من المعاملات لاهل الدنيا لوجود تلک المحرمات فيهم ايضا، او يا يې رياست دنيوي خوښ وي، او يا يې ورجي او غوښي او چرګان او نور ماکولات شهيه خوښ وي نو دوئ ېږېږي که مو ږ حق بيان کړو دا ماکولات او مشروبات لذيذه به مو له لاسه ووځي، او يا د پېجارو موټر او يا لنډکروزر موټر مثلا سپرتيا يې محبوبه وي او په بيان الحق سره يې هغه له لاسه وځي، او يا ښه ښايسته قصر او کوټي چي حکومت دده د استوګني لپاره ورکړي وي په بيان الحق سره يې بېرته څخه ي اخلي، او يا زيب او زينت او زيورات د ماينو او د لوڼو يې خوښ وي، نو څکه دوئ په رشوت او بډي اخستلو کي سرماتي کوشش کوي، او له بېري د رشوت پر حرمت باندي رڼا نه سي اچولای او بيان يې په مجالسو کي د وعظ او تبليغ نسي کولای وغير ذالک، نو دوئ څکه غواړه مالي د امراؤ او وزراؤ او دنيا دارانو سره کوي. فعند ذالک ياکلون وياخذون بدين الله ثمنا قليلا فانيا، ولا ياکلون الا نار الحرص والشهوة والحسد التی تطلع على افئدتهم وتاکل حسناتهم کما تاکل النار الحطب فليحذر هولاء العلماء من مثل فعل علماء اليهود والنصارى ومع ذالک هم يقولون في مجلس العوام العلماء ورثة الانبياء کذا في روح البيان مع زيادة ونقصان وورد في الحديث الصحيح النبوي ﷺ ان افضل الجهاد کلمة الحق عند

سلطان جائر، قال الحسن البصري رحمه الله چي ملکي د دوږخ چي د زبانیه په نامه یادېږي وفاسقانو ته د علماء د امت مرحومه یعني هغه ملایان چي په علم یېعمل نه وي کړی او یا د اغراض فاسده دنیویه لپاره یې حق پټ کړی وي چابک د دوږخ داخلېدو ورځي تر عبدة الاصنام، نو علماء سوء شکایت و خدای ﷻ ته وکړي چي زبانیه زموږ وخواته تر عبدة الاصنام دمخه را راواني دي، خدای ﷻ به ورته ووایي لیس من یعلم کمن لایعلم انتهی. الحاصل ان من اشتری الدنیا بالدین فقد وقع في خسران مبین، اللهم نجنا من هذه البلیة العظمی.

**القصه**: د ذو القرنین رحمه الله څخه روایت کوي چي دی په دوران کي د مملکت الدنیا دده پر یو قوم ورغلی چي تارکین ددنیا د عیش او عشرت وه، او غذاء یې له نباتاتو څخه د مخکي وه، او قبر د هر چا د مړي پر دروازه دده ژوند و، او په عبادت کي د خدای ﷻ توله مصروفه وه، نو ذو القرنین ورئیس ته د هغه قوم سړی ورواستاوه چي ذو القرنین وایي ته راسه، نو رئیس د هغه قوم وقاصد ته د ذو القرنین داسي ووېل مالي حاجة الی ملاقات ذي القرنین، نو ذو القرنین پخپله د هغه قوم د رئیس ملاقات ته ورغلی. نو اوله پوښتنه یې دا خندی وکړه چي ستا سي سره ذهب او فضه ډېر سته او که لږ؟ رئیس ورته ووېل بېخي لږ. ذو القرنین ورته ووېل چي ولي؟ رئیس ورته ووېل چي زموږ په قوم کي طالب د دنیا نسته. ذو القرنین ورته ووېل چي ولي؟ رئیس ورته ووېل لانها لاتشبع احدا. ذو القرنین دوهمه پوښتنه دا ځندي وکړه چي ولي مو قبرونه د قریبانو د کورو د مخه سره گرځولي دي؟ رئیس ورته ووېل ددې لپاره چي مرگ مو هېر نه سي، بیا هغه رئیس یوه کوپړی د سر ورته راوه ایستل، او ذو القرنین ته یې ووېل چي دا د یو باچا د سر کوپړی ده چي پر رعایتو یې ظلم کاوه او اسباب د دنیا یې جمع کوله آخر مړ سو او د ظلم گنهونه پرده پاته سوه، او بیا یې

کوپړی. د بل سړي ورته راویستله او وه یې ویل چې دا د ملک عادل مشفق علی الرعیة د سر کاسه ده. او بیا هغه هم مړ سو چې رعیت دعاء د مغفرت ورته کوي، او خدای ﷻ به هم جنت ته ور استولی وي ان شاء الله. او بیا هغه رئیس د ذو القرنین پر سر لاس کښېښوی او ورته وه یې ویل من اي الراسین یکون راسک، نو ذو القرنین وژړل، او رئیس ته یې وویل چې ستا خوښه نه ده چې زما سره ملګری سې زه به خپل ټوله مملکت ستا سره نیمی کړم او یا به خپل وزارت وتاته درکړم. رئیس ورته وویل هیهات یعني دا خبره ډېره لېرې ده ذو القرنین ورته وویل چې ولې، رئیس ورته وویل چې خلګ ټوله ستا دښمنان دي په سبب د مال او جاه وجلال او مملکت، او زما ټوله دوستان دي په سبب د قناعت

## لَيْسَ الْبِرَّ اَنْ تُوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ

نه دی بر، پوه سه چې "بر" هر هغه ښه کار دی چې د خدای ﷻ رضی پکښې وي او صاحب البر وجنت ته رسوي نه، دا کار چې تاسي به ګرځوئ مخان خپل یعني په لمانځه کي وطرفته د مشرق او یا مغرب.

**پوه سه:** چې حفص رحمه الله او حمزه رحمه الله د "بر" لفظ په نصب سره وایي یعني خبر مقدم د لیس یې بولي، او اسم د لیس ان تولوا په تاویل د مصدر بولي، او نور قاریان د بر لفظ په رفع سره وایي بعکس الاعراب السابق، او لفظ د "قبل" ظرف مکان د "تولوا" دی، او صاحب د روح البیان ونصب ته د "بر" ترجیح ورکړې ده او یوه نحوي وجه یې ذکر کړې ده لکن درویش وایي چې دغه دواړه قرائته مشهور بلکه متواتر قرائته دي باید یو پر بل ترجیح ور نه کړل سي.

**پوه سه:** چې مخاطب په "تولوا" سره یهود او نصاری دي ولې چې قبله د بیت المقدس څخه کعبې ته وګرځېده نو د اهل الکتابو دوو ډلو ډېرې ناري سورې جوړې کړې او هرې ډلې ددوئ به دا دعوې کولې چې بر حصر دی په

توجه ددوئ د قبلې، فرد الله عليهم يعني ستا د قبلې ولور ته لمونځ کول هيڅ بر نه دی لکون التوجه اليها منسوخ، نو بناءً على هذا لام تعريف په البر کي لپاره د جنس دی يعني لپاره د نفي د جنس البر ددوئ له قبلې څخه، بسبب نسخها.

**پوه سه:** چي معمر د قتاده ﷺ څخه روايت کړی دی چي يهوديانو وبيت المقدس ته لمونځ کاوه چي په مدينه منوره کي وطرفته د غرب واقع ده. او نصاراوو هر څای چي وايي ولور ته د مشرق لمونځ کاوه کذا قال المظهري رحمه الله.

## وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ

**پوه سه:** چي چونکه بر مصدر دی او "من" ذات دی نو لپاره د صحت د حمل د ذات چي من آمن دی پر مصدر باندي توجيه او تاويل ته ضرورت سته، نو تاويل څو قسمه ممکن دی، يا به بر په معنا د بار يعني په معنا د فاعل وي، نو به تقدير داسي سي ولکن البار من آمن آه نو داوړه ذات سوه او حمل يې صحيح سو، او يا به د بر سره مضاف مضاف مقدر يعني ولکن ذا البر من آمن آه، بيا هم دواړه ذات سوه او حمل يې صحيح دی، او يا به د من آمن سره مضاف مقدر وي يعني لکن البر بر من آمن آه بيا هم حمل صحيح دی ولي چي اسم او خبر دواړه مصدر سوه وهذه کلها مذکورة في کلام المفسرين رح بالاتفاق نو معنا د آيت داده چي صاحب البر هغه څوک دی چي ايمان يې راوړی وي پر خدای ﷻ باندي په توحيد سره او پر ټولو صفاتو د جلال الذات او د صفات الکمال باندي المنزه عن سمات الحدوث والنقص والزوال.

## وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ

او ايمان يې وي پر ورځ د آخرت چي مراد څخه يوم القيامة ده چي شروع په نشور او احياء الموتی څخه تر ابده پوري ده، چي د هغې ورځي په ايمان کي بعث بعد الموت او حساب الحسنات والسيئات او ميزان الاعمال او

پل د صراط په نامه او جنت ومافیها من النعم والسرور، او د دوږخ او مافیها من الآلام والعقارب والحیات. والشفاعة الکبری لسیدنا محمد ﷺ او شفاعت د نورو انبیاؤ علیهم اصلوات والتسلیم او صالحین د امت رحمهم الله تعالی او مغفرت الهي ﷻ او همېشه د اهل جنت په جنت دار الثواب کي او خلود د اهل النار په دار العذاب کي. دا ټوله په ایمان د یوم الآخر داخل دي لان هذه الامور کلها ثابتة بالکتاب والسنة في الیوم المذکور. کما لایخفی.

## وَالْمَلٰٓئِكَةِ

او ایمان یې وي پر ملائکه وو چي هغه اجسام لطیفه دي خلقت من نور لهم اجنحة مثنی وثلاث ورباع آه او قادري دي پر مشکل په اشکال مختلفو باندي او ذکورة نه لري او نه انوثة لا یعصون الله ما امرهم ویفعلون مایؤمرون نه خوراک لري نه څښاک لري، او مري بیا په یوم البعث ژوندي کېږي او پر مختلفو وظیفو او کارو د خدای ﷻ له خوا مقرري دي. او عدد ددوي ېبله خدای ﷻ هیڅ چاته معلوم نه دی ولا یعلم جنود ربک الا هو. او د خدای ﷻ سره نسبي قرابت نه لري یعني د خدای ﷻ لوڼي نه دي لکه مشرکانو د مکې چي به ویل الملائکة بنات الله تعالی عن ذالک.

## وَالْكِتٰبِ

او ایمان به لري پر کتاب باندي، مراد له کتابه یا جنس کتاب دی چي ټولو کتب الهیه وو ته شامل دی او القرآن المجید، او پر هر تقدیر یهودیانو او نصاراوو په دې ایمان کي نه دي شامل ولي سره د قیام الدلیل پر دې باندي چي قرآن کتاب الله دی دواړي ډلي ایمان نه پر لري.

## وَالنَّبِيّٖنَ

او پر ټولو نبیانو علیهم السلام یې ایمان وي چي ټوله انبیاء ع مبعوث له جانبه څخه د خدای ﷻ دي د خلګو د هدایت لپاره، او صادق دي په امر او

نهي كي د خداى ﷻ او په وعد او وعيد كي د خداى ﷻ او په ټولو اخبارو كي خداى ﷻ او دوئ به ايمان پر ټولو دغو نبيانو عليهم السلام لري من غير تفرقة بينهم، قال الله ﷻ في بيان هؤلاء المؤمنين لا نفرق بين احد منهم، او يهود په دغه ايمان د ټولو انبياؤ شموليت او برخه نه لري، ولې چي دوی پر انبياء ع دوئ په قتل سره رسولي دي او په نبوت د محمد ﷺ كي هم طعن ويلی دی او د هغه د نبوت څخه يې انكار كړی دی، اوپه دې آخر انكار كي نصارا هم ورسره شريكان دي.

**پوه سه**: چي ايمان پر دې پنځو امورو د اصولو څخه ددين دی او له قواعدو څخه د عقائدو دی، حاصل هذه الآيات ان البر الذي يهتم به غاية الاهتمام ليس هو امر القبلة بل الامر المهتم به هو الايمان بالامور الخمسة المذكورة التي يجد الايمان بها كلها في دين محمد ﷺ لا في اليهود ولا في النصارى، اللهم ثبتنا على جميع عقائد الاسلام ووفقنا لمراعات فروعات الدين المبين آمين آمين آمين يا مجيب الداعين.

**درويش وايي**: چي اصول ددين چي بيان سوه اوس خداى ﷻ د بعضو فروعو ددين بيان كوي نو وايي.

## وَآتَى الْمَالَ عَلَىٰ حُبِّهِ

**پوه سه**: چي على حبه جار ومجرور په ځای كي د حال دی، او ضمير د حبه راجع دی و مال ته والمعنى وركوي مال په حال د محبت د مال يعني په حال د صحت ولي چي په حال كي د صحت سړی محبت د ډېروالي د مال لري، وهذا قول ابن مسعود ﷺ او په روايت كي د ابو هريره ﷺ داسي راغلي دي چي يو سړی راغلی او د عليه الصلوة والسلام څخه يې پوښتنه وكړه، يا رسول الله اي الصدقة اعظم اجرا قال هغه صدقه اعظم اجرا ده چي ته دا صدقه وكړې په داسي حال كي چي ته په صورت جوړ يې او بخل او حرص د دنيا هم لري، او له فقره برېږي او د غنى فكر هم درسره وي، او صدقې ته

مهلت او ځنډ مه ورکوه تر هغه وخته پورې چې روح دې حلقوم ته را ورسېږي يعني حال د زکندن دې سي، نو ته وايي چې فلاني سړي ته دومره صدقه ورکړئ او فلاني ته دونه صدقه ورکړئ وقد کان لفلان رواه البخاري ومسلم، او تائيد ددې توجيه هغه آيت مبارک کوي ﴿لن تنالوا البر حتى تنفقوا مما تحبون﴾ بيضاوي دا توجه اول راوړې ده او مظهري په قيل سره راوړې ده، او يا ضمير راجع دی وخدای ﷻ ته يعني دا ورکړه د مال يې خالصا لوجه الله وي ومحبة لرضاه تعالى فان مثل هذه الصدقة مقبولة عند الله وعليه تعالى اجره وما کان لغير الله تعالى فانه تعالى منه بريئ؛ لانه تعالى اغني الشرکاء من الشرک کما ورد في الحديث الذي رواه مسلم وعن ابي هريره ﷺ قال قال رسول الله ﷺ چې اولين د خلګو چې پر دوئ قضاء الهي د دوږخ کېږي درې نفر دي، درويش وايي چې حديث مختصر کېږي له مقام سره د مناسبت سړی حال بيانوي، نو وايي وثالثهم او دريم هغه سړی دی چې خدای ﷻ فراخي ددنيا وکړې وي او قسم قسم مالونه يې ورکړي وي، نو داسړی و ځای ته د حساب حاضر کړه سي او خدای ﷻ خپل نعمتونه ورته بيان کړي او د هغه سړي هم هغه نعمتونه وريياد سي، نو بيا خدای ﷻ ورته ووايي چې تانو څه وکړه په هغو نعمتو کي هغه سړی ورته ووايي چې مانه ده پرېښې يوه لار د خير چې ستا خوښه وه انفاق په هغه لار کي مګر په هغه لار کي ما انفاق کړی دی ستا د رضی لپاره. خدای ﷻ به ورته ووايي چې درواغ دي وويل يعني په دې قول کي چې ستا د رضی لپاره لکن تا ددې لپاره انفاق کاوه چې خلګ ووايي چې فلاني څونده جواد او سخي سړی دی، وقد قيل يعني هغه غرض خو تاته په دنيا کي ورسېدی، يعني خلګو وويل چې فلانی ډېر سخي سړی دی، نو بيا خدای ووايي يعني ملکو ته چې کش يې کړئ پر مخ باندي د دوږخ، نو ملکي يې هم دوږخ ته ورواچوي (رواه مسلم في صحيحه) وايضا ورد في الحديث الذي رواه مسلم

ایضــا ان الله لا ینظـر الـی صــورکم وامــوالکم ولکــن ینظـر الـی قلـوبکم واعمالکم، او یا ضمیر راجع دی ومصدر ته فـالمعنی واتی المـال علی حب الاعطاء، یعني په شوق او محبت سره اعطاء کوئ، بیضـاوي، مظهـري، روح المعاني، درویش،

قال السعدي الشیرازي رحمه الله

پریشان کن امروز گنجینه چست      که فردا کلید نه در دست تست
کنون بر کف دست نه هر چه هست      که فردا بزندان گزی پشت دست

## ذَوِي الْقُرْبٰى

یعني خاوندان د قرابت، نو "قربی" مصدر دی په معنا د قرابت.

**پوه سه**: چي قرابت عـام دی کـه نسبي وي لکـه پـلار مـور زوئ ورو اکا وغیرهم، او که سببي وي لکه مېړه ماینـه خسـر خواښې، او کـه ذوي القربی ذوي الفـروض وي، او کـه عصـبات وي او کـه ذوي الارحـام، بیضـاوي رحمه الله وایي چي مراد ځندي محتاجان دي او قید د محتـاجین یې نـه راوړی ولي هغه ظاهر قید دی.

**پوه سه**: چي ذوي القربی یې تر ټولو دمخه کړه لحدیث رواه الترمذي وابن ماجه والنسائي وابن حبان والحاکم رحمهم الله عن سلیمان بن عـامر رضی الله عنه قـال قـال رسـول الله ﷺ صدقتـک علـی المسلمین صـدقة وعلـی ذي رحمـک (اي نفس اهل القرابة لا المعنی الاصطلاحي)ثنتان صـدقة وصـلة نو ذوي القربی افضل د فرق مذکوره وو دي وایضـا روی مسـلم رحمه الله عـن ابـي هریـرة رضی الله عنه قـال قال رسول الله ﷺ (۱) دینار انفقته في سبیل الله

(۲) ودینار انفقته في رقبة (اي في تخلیص رقبة المملوک عن الرق)

(۳) ودینار تصدقته علی مسکین (۴) ودینـار انفقتـه علـی اهلـک اعظمهـا اجرا الـذي انفقتـه علـی اهلـک، وری البخـاري ومسـلم عن زینـب زوجة ابن مسعود رضی الله عنه قـالت قـال رسـول الله ﷺ تصدقن یا معشـر النسـاء ولـو مـن حلیکن

فقالت هي وامرئة اخرى اتجزى الصدقة عنهما على ازواجها وعلى ايتام في حجور مما فقال رسول الله ﷺ لكما اجران اجر القرابة واجر الصدقة.

**درویش وایي**: چي دا حديث ډېر طويل دی لكن مظهري دغه قدر راوړی دی يعني په قدر د حاجت د مقام، نو درويش هم اكتفاء په دغه قدر سره وكړه.

## وَالْيَتٰمٰى

**پوه سه**: چي يتيم په انسانانو كي هغه څوک دی چي دی بالغ نه وي او پلار يې مړ وي، او په حيواناتو كي هغه حيوان چي دی كوچنی وي او مور يې مړه سي لكه د خرې كوچنی بچی چي پاته سي، او په جواهراتو كي هغه جوهر دی چي مثل يې نه وي كما يقولون درة يتيمة يعني في الصدف.

**پوه سه**: چي تر ذوي القربى وروسته يې يتيمان راوړه لانهم ليس لهم من يقوم بحوائجهم، ولهذا قال رسول الله ﷺ انا وكافل اليتيم كهاتين في الجنة، يعني لكه دوې ګوتي سبابه او وسطى.

**درویش وایي**: چي بيضاوي لكه مور چي يې د مخه ذكر وكړی د ذوي القربى سره يې قيد د محتاجين ويلی دی، او مظهري داسي اعتراض پر كړی دی قلت هذا التقييد غير ظاهر لان الكلام في ايتاء المال تطوعا او ما هو اعم من الفريضة والتطوع، واما الزكوة المفروضة يعني المقيدة بالاحتياج والفقر في الموتى له فسيره ذكره، والايتاء تطوعا لايتقيد بالمحاويج فان صلة الرحم قد تكون مع كون المعطى له غنياً بل لايتوقف صله على كون المعطى مسلما. ثم اطال الكلام في رد قول البيضاوي رحمه الله كما هو ديدنه، والجواب عنه چي د بيضاوي دا مراد نه دی چي ايتا المال تطوعا حصر په مجاويجو كي دی په دې معنا چي كه غني ته صدقه تطوع وركړه نو صله رحمي نه ده او ثواب يې نسته فان هذا لا يقوله العامي فضلا عن البيضاوي بل مقصوده بيان افضل انواع ايتاء المال تطوعا مثلا د يو سړي دوه وروڼه وي يو غني او بل محتاج او فقير وي نو دې سړي ته افضله

داده چي صدقه تطوع دي وفقير ورور ته ورکړي لپاره د سد فقر دده. او د فقير ورور په ورکړه کي صلة الرحم بالا ده تر صلة الرحم د غني ورور په ورکړه کي وهذا مما لايخفى على العاقل.

## وَالْمَسٰكِيْنَ

**پوه سه:** چي مساکين جمع د مسکين ده مشتق ده "سکون" څخه دی يعني چي فقر دی پر ځای کښېنولی وي يعني لکه اغنياء چي له يوه ځای څخه بل ځای ته د تجارت لپاره چي دی قدرت د سفر دتجارت نه لري.

**پوه سه:** چي مسکين دوه قسمه دی، يو هغه دی چي له چا غوښتنه نه کوي وهو المراده، او بل هغه دی چي لاس د سوال يې وبل چاته نېولی وي هغه په سائلينو کي داخل دي.

## وَابْنَ السَّبِيْلِ

او د لاري زوئ، بعض مفسرين وايي چي مراد هغه مسافر دی چي له کوره لېري واقع وي او بې خرڅه وي که څه هم په کور کي دنيا لري. او بعض وايي چي مراد څندی مېلمه دی د ابي شريح څخه روايت دی چي رسول کريم ﷺ ووېل چي څوک ايمان لري پر خدای ﷻ او پر ورځ د آخرت نو عزت د مېلمه دي کوي رواه البخاري ومسلم، وکذا ورد في الحديث النبوي ﷺ اکرموا الضيف ولو كان كافرا.

## وَالسَّآئِلِيْنَ

يعني چي حاجت و سوال ته مجبوره کړي وي وفي الحديث الذي رواه احمد للسائل حق ولو جاء على فرسه، قال السعدي قدس سره

نه خواهندهٔ بر در ديگران    بشکرانه خواهنده از در مران

وعن ام عبيد ﷺ رد والتسائل ولو بظلف محرق رواه الترمذي وغيره.

**مسئله:** سوال که څه هم غیر محتاج ته حرام دی لکن پر مسئول عنه باندي حق ددې لري چي يو شی ورکړي ولو کان عالما بغنائه.

## وَفِي الرِّقَابِ

يعني په خلاصولو کي د مکاتب د پوره څخه د کتابت قال الله تعالی ﴿واتوهم ای المکاتبین من مال الله الذي آتاکم﴾ او بعض مفسران وايي چي مراد دادی چي بنديان د مسلمانانو دي د کفارو څخه په مال خلاص کړي.
او بعض وايي چي اغنياء دي مريان رانسي لپاره د عتق.

**يوه سه:** چي علماء د يهوديانو په يوه فرقه کي نه دي داخل لانهم اخذوا الاموال من سفلتهم بالباطل حيث کتموا حقيقة دين الاسلام عليهم واشتروا به ثمنا قليلا.

**يوه سه:** چي رقبه مجاز دی د شخص څخه من قبيل ذکر الجزء وارادة الکل.

## وَأَقَامَ الصَّلَوٰةَ

او اداء کوئ لمونځونه که فرضي وي او که نفلي سره د فرائضو د لمونځو او د واجباتو او سنتو او مستحباتو.

**يوه سه:** چي داجمله عطف ده پر صلة د من ای من آمن واتی المال واقام آه.

## وَآتَى الزَّكَوٰةَ

او ورکوئ زکواة د مالو، بيضاوي وايي چي مقصود د آتی الزکوة، او د اتی المال آه له دواړو څخه فرضي زکواة دي لکن مقصود په اتی المال کي دي بيان د مصارفو د زکواة وي، او په اتی الزکوة باعثه کول پر اداء د زکواة وي فلا يکون تکرارا.

**فائده:** ذکر د مصارفو يې تر اداء الزکوة د مخه راوړی اهتماما بشان المصارف ولي چي صدقه او زکوة هلته اعتبار عندالله لري چي پر مصرف برابره وي مثلا که سړی ډېري روپۍ وغني ته په زکواة کي ورکړي اعتبار نه

لري يعني د زكواة فرضي غاړه نه په خلاصېږي، او دا هم احتمال لري چې له اول څخه دې مراد نوافل د صدقاتو وي، او په ثاني كې دې فرضي زكواة وي، او داهم احتمال سته چې په اول كې دې عام مراد وي يعني كه فرضي وي او كه نفلي او په ثاني كې دې يوازې فرضي مراد وي فذكر الفرضي ثانيا اهتماما بشان الفرضي.

## وَالْمُوْفُوْنَ بِعَهْدِهِمْ اِذَا عٰهَدُوْا ۚ

او هغه كسان چې وفا په وعده سره كوي چې دوئ وعده وكړي كه د خداى ﷻ سره وي لكه په يوم الميثاق كې تولو انسانانو وعده كړې ده قال الله تعالى ﴿الست بربكم قالوا بلى﴾ او يا په دنيا كې قسم واخلي څان دې نه حانثوي، او كه نذر وكړي وفا په كوي، او كه د بندګانو سره وي مثلا د قضاء الدين وعده دې د پوره وړي سره وكړه بايد حتى الممكن وفاء په وكړي يا چا امانت دركړي بايد خيانت نه ورسره وكړي بلكه په وخت د غوښتني يې كاملا بېرته وركړي. او چا پر يو حق شاهد وګرځولې بايد هغه په وخت كې د غوښتني اداء كړي، او چې د چا سره خبري كوي بايد رشتيا وايي. وورد في الحديث الذي رواه البخاري ومسلم وغيرهما ﴿آية المنافق ثلث اذا احدث كذب. واذا وعد اخلف. واذا اوتمن خان﴾ او مسلم دا توري هم زيات كړي دي ﴿وان صلى وصام وزعم انه مسلم﴾ او د عبدالله بن عمر ﷺ څخه بخاري او مسلم وايي چې رسول الله ﷺ وويل چې څلور خويه چې په چا كې وي هغه منافق خالص دى، او كه په چاكي يو خوى ددغو خويو څخه وي په هغه كې يو خوى د نفاق سته څو چې پرېږدي يې، چې څوک يې امين وګرځوي دى خيانت ورسره وكړي، او چې خبري كوي درواغ وايي، او چا له چا سره عهد وكړي وفا نه په كوي بلكه غدر كوي، او چې له چا سره يې دعوه او خصومت سي فحش بنكنځل كوي.

**سوال:** په مخني حديث كې درې شيه علامه د منافق ګڼل سوي وه، او په دې حديث كې څلور شيان علامه د منافق حساب سوه نو منافات په نه وي؟

**ځواب:** اهل الفقه والاوصول پر دې متفق دي چې تصريح په اسم عدد سره نفي د زائد نه کوي.

**فائده:** په دې دوو حديثو کې نهايت تغليظ دی پر هغه کسانو چې مذکوره خوينونه تولـه يا يو پکښې وي، خکه علماء دين ودې کسانو ته منافق عملي وايي يعين کافر نه دی.

**پوه سه:** چې لفظ د "والموفون" عطف دی پر "من آمن" عطفا بالمعنى لانه في المعنى ومن افوا.

بيت

اول خدای ته وفاء دار سه مسلمانه

او د خلګو سره هم وفاء داري که مسلمانه

وَالصّٰبِرِيْنَ فِى الْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ وَحِيْنَ الْبَاْسِ

او هغه کسان دي چې صبر يې کړی وي په سختي او په فقر کې، او په مرض د بدن کې يعني هر نوع مرض چې وي، او صبر کونکی وي په وخت د جهاد في سبيل الله

**پوه سه:** چې مظهري رحمه الله وايي چې دا لفظ هم معطوف دی پر من آمن آه او وجه د نصب يې دا بيان کړې ده چې د عربو دا قانون دی چې کلام اوږد سي دوئ اعراب ته تغير ورکوي، او حواله يې پر ابو عبيده کړې ده،او روح المعاني او روح البيان او بيضاوي وايي چې دا لفظ منصوب على المدح دی بتقدير اعنی، او اخص، او امدح او دا وجه امام النحاة خليل بن احمد مختاره کړی دی.

**پوښتنه:** ولي صراحةً نه سو عطف يعني والذين صبروا؟

**ځواب:** په تغير کي اعراب تنبيه ده پر فضيلت د صبر پر نورو اعمالو سره د بر، يعني ماسوى د ايمان بالاشياء التی مر ذکرها الخمسة فلا يرد ان الايمان افضل من الصبر المذکور ههنا، او مظهري رحمه الله بعض ضعيف احتمالات نورهم راوړي دي، حاصل د ټول آياتو دادی چې معتبر به ماهيت

د بر شپږ شيه دي الايمان بالامور الخمسة المذكورة واقام الصلوة وايتاء الزكوة والايفاء بالعهد، والصبر في الامور الثلثة المذكورة ههنا فمن جمعها فهو الكامل في البر الذي يستحق المدح.

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ صَدَقُوا ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُتَّقُونَ ﴿۱۷۷﴾

دغه كسان چي موصوف په دغو صفاتو مذكوره و سره وي هغه كسان دي چي صادقان دي په ايمان او بر كي، او هم دغه كسان د ي چي خانونه يې ساتلي له كفره او نورو بدو كارو.

**پوه سه**: چي اسم اشاره يعني اولئک چي دوه واره مكرر كړه لپاره د تعظيم د شان ددغو مؤمنانو چي موصوف په صفات مذكوره و سره وي او ضمير فصل يې لپاره د حصر د حقيقت تقوی دی په دغه كسانو كي، وفي الحديث الصحيح النبوي ﷺ ﴿من عمل بهذه الآية فقد استكمل الايمان﴾ كه چا عمل وكړی په دغه آيت سره نو يې ايمان كامل كړی.

والوجه في ذالک ماقال المظهري بالاجمال والبيضاوي والبرسوي بالتفصيل وعبارة البيضاوي في ذالک هذا والآية كما ترى، جامعة الكمالات الانسانية باسرها دالة عليها صريحا او ضمنا فانها بكثرتها وتشعبها منحصرة في ثلثة اشياء صحة الاعتقاد وحسن المعاشرة وتهذيب النفس يعني من الرزائل، وقد اشير الى الاول بقوله تعالى من آمن بالله الى قوله والنبيين آه والى الثاني بقوله عزوجل ﴿واتى المال الى قوله وفي الرقاب﴾ والى الثالث بقوله واقام الصلوة الى اخره، والحديث المذكور اخرجه ابن المنذر في تفسيره عن ابي ميسرة ﷺ وهكذا عبارة روح البيان.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلَى ۖ

**پوه سه**: چي بعض مفسرين رح وايي چي مخاطب په دې آيت سره باچاهان د مؤمنانو دي په دې معنا چي خدای ﷻ واجب كړی دی پر امير المؤمنين د مسلمانانو اويا هغه څوک چي قائم د امر المؤمنين وي لكه واليان او قضات

د نواحیو د مملکت چي برپایه کوي دوئ قصاص. فالمعنی یا ایها الائمة والامراء فرض علیکم اخستل د قصاص له قاتل څخه په نبز د طلب د اولیاوٴ د مقتول، او دا احتمال هم مفسرینو رح ذکر کړی دی چي مخاطب دي قاتلان وي نو معنا داده چي اي دولي د قاتلانو پر تاسي واجبه ده چي تاسي خانونه وقصاص ته د قتل عمد تسلیم کړئ که اولیاوٴ د مقتول ستاسي څخه مطالبه د قصاص کوله، لکونه حق العبد لایجوز للقاتل ان یمنع عنه، او په تعبیر کي په یا ایها الذین اشاره ودې ته ده چي په قتل عمد سره سړی نه کافر کېږي وهکذا سائر الکبائر خلافاً لاهل البدع والا هواء، چي بعض مرتکب د کبارو کافر بولي او بعض يې نه کافر بولي نه مسلمان بلکه په منځ کي د کفر او د اسلام واسطه وايي والتفصیل في کتب العقائد.

**مسئله**: پر زاني او شارب الخمر واجب نه ده چي خان به حد ته سپاري. ولي چي هغه حد حق الله خالص دی، نو دوئ کولای سي چي د اقامت څخه د حد وتښتي کذا في کتب الفقه مفصلا.

**پوښتنه**: چي پر حکام او یا قاتل باندي قصاص واجب دی، نو ولي المقتول لره باید حق نه وي؟

**ځواب**: پر حکامو او یا قاتل باندي چي هغه ته ولي د مقتول عفوه وکړي نو پر حکامو او یا قاتل هم وجوب نسته.

**فائده**: کتابت په اصل کي خط ته وايي او وروسته په اصطلاح د قرآن کریم او د احادیثو مبارکه وو کنایه ده د الزام څخه. والقرینة علیه کلمة علی لانها صلة الالزام دون الکتابة.

**فائده**: کلمه د في په معنا د باء سببیه ده کما قوله علیه الصلوة والسلام ان امرئة دخلت النار في هرة حین ربطتها فماتت من الجوع.

**فائده**: قصاص په اصل وضع کي مساوات او مماثلت ته وايي، او له هم دې سببه غچي ته مقص وايي چي دواړي پلې يې سره برابري دي، او

حکایت ته قصه وایي لمساواتها المحکي عنه، او هغه څوک چي حکایت بیانوي قصاص ورته وایي لانه یذکر مثل اخبار الناس.

**پوه سه:** چي مقاتل بن حبان رحمه الله وایي چي په منځ کي د قریضه او بن نضیر د یهودیانو قتل او قتال وو نو دا آیت نازل سو، لکن دا شان نزول بې خایه دی ولي چي په دې آیت کي خدای ﷻ تعبیر په یا ایها الذین آمنوا سره کړی دی او یهودیان خو اعداء الله وه، بلکه صحیح شان نزول دادی چي لکه سعید بن جبیر رحمه الله چي وایي چي په منځ کي د اوس او خزرج د عربو قتل او قتال چي به پېښ سو، او یوې قبیلې لره پر هغه بلي قبیلې د ډېروالي د نفسو په سبب او د مال په سبب به یې ځانو ته مشرف وویل، او دې مشرفي ډلي به دا قسم کاوه که زموږ د قوم مریي څوک مړ کړي موږ به حر د هغې بلي ډلي پر وژنو، او که زموږ ښځه څوک مړه کړي موږ به یې نر پر وژنو او که زموږ یو نر څوک مړ کړي موږ به یې دوه کسه پر وژنو وهکذا دوئ یعني مشرفه ډلي به پخپلو تېرو کي بې هم دوچندي کوله، نو څرنګه چي دا دوه قومه په اسلام مشرفه سول او دا موضوع وعلیه السلام ته پېش سوه نو دا آیت نازل سو نو دوئ په قضاء الهي راضي سوه.

**مسئله:** د امام اعظم رحمه الله مذهب دادی چي واجب په قتل عمد کي قصاص دی فقط یعني دیت نه دی واجب په دې معنا چي اولیاء د مقتول نه دی مخیره په منځ کي د قصاص او د دیت البته که قاتل او اولیاء د مقتول دواړه په دیت راضي وه بیانو اخذ المال روا دی، او دلیل د قول د امام اعظم رحمه الله دا حدیث دی في القتل العمد القصاص رواه الشافعي وابو داؤد والنسائي وابن ماجه، او امام شافعي رحمه الله وایي چي واجب که څه هم قصاص دی لکن اولیاء د مقتول کولای سي چي تر قصاص تېر سي او دیت طلب کړي بیله رضا د قاتل، وتفصیل الدلائل والاجوبة في الفقة وعادة المظهري رحمه الله الجرح والتعدیل في الدلائل من الطرفین.

**درويش وايي:** چي د تفاسيرو د کتابو سره مناسب نفس نقل د مذاهب دی.

## اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْاُنْثٰى بِالْاُنْثٰى

يعني حُر وژل کيږي پر حُر، او مريي پر مريي وژل کيږي او ښځه پر ښځه وژل کيږي.

**سوال:** ددې آيت څخه خو دا معلوميږي حر به پر عبد نه وژل کيږي او عبد به پر حر نه وژل کيږي، او ښځه به پر نر نه وژل کيږي او نر پر ښځه نه وژل کيږي؟

**ځواب:** دا احکام مذکوره پۀ سوال کي خو مسکوت عنها دي په آيت شريف کي، البته دا احکام مفهوم مخالف د آيت دي، او امام ابو حنيفه رحمه الله خو مفهوم مخالف ته مطلقا اعتبار نه ورکوي، او امام محمد بن ادريس رحمه الله اگرچه مفهوم مخالف ته اعتبار ورکوي لکن هلته يې ورکوي چي مفهوم موافق بله فائده نه لري بېله مفهوم مخالفه، او په مانحن فيه کي د مفهوم موافق بله فائده سته وهو دفع ترفع د يوه قوم پر بل قوم باندي کما قد مر عنقريب في بيان شان نزول الآية الشريفة، نو حاصل د آيت دادی که حر بل حر قتل کړي هغه يو حر قاتل به پر قتل کيږي، بل حر به نه ورسره قتل کيږي کما کان في الجاهلية وقد مربيانه او دغه رنگه که يو مريي بل مريي قتل کړي هغه قاتل مريي پر قصاصيږي نه حر په سبب د شرف د مقتول، او داغه رنگه که يوې ښځي بله ښځه قتل کړه ولو کانت من قوم ذي شرف نو هغه قاتله ښځه پر قتل کيږي لا رجل مکان المرائة لاجل شرف المقتولة.

**مسئله:** امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله وايي «قتل نفس حرا کانت او رقيقا ذکرا کان او انثى مسلما کان او ذميا بالنفس کيف ماکانت» وژل کيږي يو قاتل، که دا نفس حر وي که مريي، که نر وي که ښځه، که مسلمان وي که اهل ذمه. په مقابل کي د بل نفس يعني مقتول، څرنگه چي وي مقتول په دغو مذکوره انواعو کي.

**درویش وایي:** چي دده مسئلې دلیل دادی چي په ټولـه کتـابو یعني مفصلو کتابو کي د اصول الفقه او په ټولو شروح کي د کتـابو د فقه او په ټولـو فتـوی وو کـي د فقـه دا خبره په متفقه ډول منل سوې خبره ده چي خدای ﷻ او یا علیه الصلوة والسلام یو حکم الهي چي په مخني کتـابو کي د خدای ﷻ لکه تورات یا انجیل پر امم ماضیه باندي نـازل کړی وي او موږ نه یو منع کړي د هغه حکم څخه، نو هغه حکم پر موږ امت محمدیه ﷺ هم واجب او لازم او جاري دی او زموږ لپاره هم هغه حکم دی، نعم چي یهود او نصاري موږ ته یو حکم د تورات یا د انجیل بیان کړي، هغه زموږ لپاره حکم نه دی لعدم الاعتبار بنقلهم واذا تمهد القول المسلم عند علمائنا الحنفیة فاستمع، چي خدای ﷻ په قرآن مبارک کي وایي وکتبنا علیهم ای علی الیهود فیها ای في التوراة ان النفس بالنفس الی آخر الآیة او شک نسته چي دواړه نفسه یعني نفس قاتله او مقتوله ټولو ماذکرنا من النفوس القاتلة او مقتوله ووته شامل دی نو زموږ په امت کي هم داغه حکم دی دقصاص، لان الحاکم واحد وهو الله ﷻ او شریعت د انبیاء ع چي نسخه یې نه وي ثابته یو دی ولهذا قال الله تعالی بعد ذکر الانبیاء فبهدهم اقتده، یعني ته ای محمد ﷺ په هدایت پسي د نورو انبیاء ع اقتداء وکړه، وقال اللهﷻ في موضوع آخر من کتابه العزیز ﴿شرع لکم من الدین ماوصی به نوحا والذین او حینا الیک وما وصینا به ابراهیم وموسی وعیسی ﴾ آه فالاحکام الآلهیة لاتبدل الابصریح النسخ کامر القبلة علی مامر او باشارة القرآن کما في قوله تعالی ذالک جزیناهم بماکفروا الخ، سواء کان الحکم المذکور في کتاب واحد او کتب متعددة فالحاصل انه مالم یظهر النسخ فالحکم باق، او د ابن مسعود ﷺ څخه روایت دی چي متفق علیه د بخاري او مسلم هم دی پر مضمون سابق دلالت کوي، ﴿قال قال رسول الله ﷺ لایحل دم امرء مسلم یشهد ان لا اله الا الله واني رسول الله﴾ یعني نه دي روا

تویبول د وینو د یو مسلمان چي شهادت ورکوي په کلمه طیبه سره او په رسالت وما ته ﴿الا باحد ثلث النفس بالنفس، والثیب الزاني، والمارق لدینه التارک للجماعة﴾ یعني په یوه ددرېِ خوبو یې وینې تویبول د مسلمان روا دي چي یو نفس بالنفس دی یعني د قاتل مسلمان وینه تویبول روا دی په عوض کي د نفس مقتوله او بل زاني چي نکاح لري وینه تویبول یې روا دی یعني په رجم سره، او بل د هغه مسلمان وینه تویبول روا دی چي پسله اسلام څخه ددین ووځي یعني مرتد سي، او جماعت یعني ډله د مسلمانانو پرېږدي او په بله ډله کي د کافرانو داخل سي العیاذ بالله من ذالک.

**مسئله**: د امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله مذهب دادی که چېري یو مؤمن یو کافر چي اهل ذمه وي قتل کړي، هغه مسلمان پر قصاصېږي کذا في کتب المذهب الحنفي کلها.

**پوښتنه**: په حدیث کي د علي رضی الله عنه چي روایت یې بخاري کړی دی راغلي دي لایقتل مسلم بکافر، او په بل حدیث کي چي د عمر بن شعیب عن ابیه عن جده رضی الله عنه چي روایت یې احمد، ابو داوُد، ابن ماجه، او ترمذي رحمهم الله کړی دی راغلي دي چي ان النبي صلی الله علیه وسلم قضی لایقتل مسلم بکافر والجواب چي مراد په دې ټولو حدیثو کي له کافر څخه حربي کافر دی لامطلقه، لیشمل اهل الذمة ایضا، صاحب الهدایة پر قتل د مسلمان په سبب د قتل د کافر ذمي دا دلیل وایي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم یو مسلمان قصاص کړی په سبب د قتل د اهل ذمه وقال انا اکرم من او في بذمته وهذا الحدیث رواه الدار قطني عن ابن عمر رضی الله عنه واصرح من ذالک ماورد في الحدیث لایقتل مسلم بکافر ولا ذو عهد في عهده، والمعنی چي نه وژل کېږي ذو عهد یعني کافر چي اهل ذمه وي په قتل د کافر سره، او پر دې خو د ټولو ائمة اجماع ده چي ذمي پر ذمي قصاصېږي نو معلومه سوه چي له کافر څخه په احادیث مذکوره سابقا کي مربی مراد دی، نو د حدیث ترجمه به داسي

کېږي چي نه وژل کېږي اهل ذمه کافر په قتل د حربي کافر. نو مسلمان باید په طریق اولی سره په قتل د حربي کافر نه ووژل سي، او بل دلیل پر قتلِ مؤمن په سبب د قتل د اهل الذمة کافر هغه آیت مبارک هم دی چي تفصیل یې عنقریب تېر سو یعني ﴿وکتبنا علیهم ان النفس بالنفس. الآیة﴾ فتذکر هداک الله.

**مسئله**: پلار چي زوی قتل کړي عمدا پلار نه پر قصاصېږي عند ابي حنیفة، والشافعي واحمد رحمهم الله. د حضرت عمر ﷺ څخه روایت دی چي علیه السلام وویل ﴿لایقاد الوالد بالوالد﴾ یعني نه وژل کېږي پلار په سبب د قتل د زوی. رواه الترمذي.

**پوه سه**: چي ترمذي ددې حدیث روایت کړی دی چي ترمذي د صحاح سته وو په جمله کي دی. لکن بیا هم مظهري چون وچرا پکښي وایي کما هو عادته په نقل د اقوالو د مخالفینو لکه داوُد ظاهري.

## فَمَنْ عُفِيَ لَهٗ مِنْ اَخِيْهِ شَيْءٌ

**پوه سه**: چي مراد د "من" څخه که موصوله وي او که شرطیه وي قاتل مراد دی او دواړه ضمره راجع دي ومن ته، او د "شیئ" تنکیر او تنوین لپاره د تقلیل دي، یعني یو لږ د عفو څخه بان یعفوا ولي دم المقتول عن نصف القیاس او ثلثه او ربعه وهکذا، او یا بعض ورثه د مقتول خپل حق په قصاص کي ورعفو کي نو عفو تام سوه او قصاص ساقط سو ولم یجب الا الدیة.

**پوه سه**: چي لفظ د شیئ قائم مقام د فاعل د عفی دی.

**سوال**: عفی خو لازمي او مفعول به ته نه متعدي کېږي. نو شیئ یې څرنگه په ځای د فاعل درېږي؟

**ځواب**: مفعول مطلق ته خو متعدي دی نو مصدر د عفی په ځای کي د فاعل درېدای سي ومعنی شیئ ههنا شیئ من العفو فهو بمعنی المصدر، هذا ماقله البضاوي وتبعه صاحب روح البیان. بیضاوي وایي چي بعض

مفسرین عفی په معنا د ترک بولي چي هغه متعدي دی، نو شیئ یې مفعول به او په ځای د فاعل ودرېدی، دی وایي چي دا تفسیر ضعیف دی ولي چي عفا الشیئ په لغت عربي کي په معنی د ترک نه دی ثابت بلکه اعفاه په معنا د ترک ثابت دی آه، لکن صاحب د روح المعاني دا خبره د بیضاوي رد کړې ده، دی وایي چي ترجمه د عفا په ترک سره نقله ائمة اللغة المعول علیهم في هذا الشان وهو وان لم یشتهر الا ان اسناد الفعل المجهول الی المفعول به الذي هو الاصل یرجح اعتباره ویجعله اولی من المشهور لما فیه من اسناد المجهول الی المصدر الذي هو خلاف للاصل.

**درویش وایي**: چي اسناد د فعل مجهول ومصدر ته په قرآن کریم کي واقع دی "فاذا نفخ في الصور نفخة" ولي چي باب د نفخ خو هم لازمي دی نو د نفخ مجهول په ځای کي خو په دې ایت نفخة مصدر درېدلی دی، او حمل د آیت قرآني پر خلاف الاصل ښه کار نه دی بلکه اولی داده چي من عفی آه او نفخ آه پر یوه ډول حمل کړه سي یعني اسناد الفعل المجهول الی المصدر واقامته مقام الفاعل والله اعلم.

د "من اخیه" د لفظ څخه دا ښکاره سوه چي قاتل په عمد سره له اسلامه نه وځي کمامر تفصیلا، او په لفظ مذکور کي استعطاف ده ولي دمقتول دی وعفو ته یعني قاتل قریبک اوس هم ستا ورور دی باید عفو ورت وکړي

**فائده**: امام مظهري دقاموس یو عبارت رانقل کړی دی، او دا یې پر تفریح کړې ده چي ددې عبارت څخه داسي فهمېږي چي عفو وذنب ته بنفسه متعدي کېږي او جاني ته په عن او لام متعدي کېږي آه، او بیضاوي او روح البیان وایي وهذه عبارة البیضاوي وعفی یعدي بعن الی الجاني والی الذنب، قال الله تعالی عفا الله عنک، وقال عفی الله عنها، فالاول الی الجاني والثاني الذنب فاذا عدی الی الذنب یعني بعن عدی الی الجاني باللام وعلیه مافي الآیة فکانه قال فمن عفی له عن جانبیه لکن ترک في الآیة ذکر الجنایة لان الاهتمام بشان الجاني انتهی مافي البیضاوي وحواشیه

**درویش وایي:** چي صواب ما في البیضاوي او صاحب قاموس مراد بیان د حاصل د معنا د عفو دی لاتقدیر العبارة فوهم المظهري رحمه الله انه تقدیر التعدیة فافهم والله اعلم بالصواب.

## فَاتِّبَاعٌۢ بِالۡمَعۡرُوۡفِ وَاَدَآءٌ اِلَیۡهِ بِاِحۡسَانٍ

یعني ولي د متقول دي غوښتنه د دیت کوي له قاتله ښخه په معروفه طریقه یعني ډېره سختي دي نه پر کوي مثلا چي په درې ورځي کي به مثلا حتما دیت راکوې، او قاتل دي هم اداء د دیت وولي ته د مقتول په ښه طریقه یعني مثلا داسي به نه ورته وایي چي مثلا دیت به پر کال گورو، یا یو څه دیت به راپرېږدي.

**پوه سه:** چي رفع د اتباع وکذا اداء یا په دې سبب ده چي فاعل د فعل محذوف دی اي فلیکن من ولي المقتول اتباع ولکن من القاتل اداء. او یا دواړه خبر د مبتداء محذوف دي اي الامر اتباع واداء.

## ذٰلِكَ تَخۡفِیۡفٌ مِّنۡ رَّبِّكُمۡ وَرَحۡمَةٌ

او دغه حکم چي بعض ورثه عفوه وکړي او قصاص په دیت بدل سي سپکوالی د خدای ﷻ او رحمت دی یعني پر امت د علیه السلام چي عفوه، قصاص او دیت درې سره یې ورته روا کړي دي.

**پوه سه:** چي صاحب د روح المعاني د مقاتل رحمه الله ښخه داسي روایت کوي، چي د یهودیانو په باره کي قتل عمد صرف قصاص وو د قاتل او پر نصاری وو باندي عفوه وه مطلقا ، او دا امت محمدیه ﷺ ته خدای ﷻ خیار ورکړی په منځ کي د عفوه او د قصاص او د دیت لپاره د آساني. پر دې امت ولي په عفوه سره آساني ده پر قاتل او په قصاص کي تشفي د زړو د اولیاء د مقتول ده، ولي گاهي د سړي زوئ یا ورور چا وروژلي وي چي بې له قصاصه یې په بل شي زړه نه سړېږي، او په دیت کي نفع دنیا وي ده د

اولیاء د مقتول، مثلا ولي د مقتول دده د اکا زوئ وي چي په ژوند کي د مقتول دغه موجود ولي د مقتول څخه ډېر په تکلیف وي، نو دغه د اکا زوئ ولي د مقتول قصاص خو لاڅه کوي بلکه کېداى سي چي په قتل به يي خوشحاله سوى وي، نو دده لپاره ديت غنيمت دى. او په روح البيان کي وايي چي په شرع کي د موسى ﷺ يوازي قصاص و وهو العدل فقط، او په دين د عيسى ﷺ کي يوازي عفوه وه وهو الفضل والاحسان مع القاتل وفي ملتنا التشفى القصاص كمامر او د تكرم او احسان لپاره عفوه ده، او ددنيا د لاس رواړلو لپاره ديت دى دا دري سره خدى پاک مور ته روا کړه، او مظهري وايي چي اهل التوراة انما هو القصاص او العفوه ليس لهم الارش يعني الدية، او پر اهل انجيل باندي عفوه فقط آه.

**درویش وايي**: چي زه نه پوهېږم چي مظهري د عفوه حکم پر اهل تورات له څه درکه زيات کړى دى والله اعلم بالصواب.

**فَمَنِ اعْتَدٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۱۷۸﴾**

او که چا تجاوز وکړى يعني د اولياؤ څخه د مقتول پر قاتل باندي يعني قتل يي کړى وروسته تر عفوه او يا تر اخستلو د ديت نو هغه لره عذاب دى اليم يعني دوږخ، قال ابن جريج رحمه الله چي قتل د هغه جاني واجب دى په دنيا کي حتى لايقبل العفوه عنه لماروى سمرة رضي الله عنه «قال قال رسول الله ﷺ لا اعافي احدا قتل بعد اخذ الدية» رواه ابو داؤد رحمه الله.

**پوه سه**: چي په جاهليت کي داقانون و چي اولياء ته د مقتول به قاتل په لاس نه ورتلى نو به يي ديت خندي قبول کړى، نو به قاتل په امن کي سو بيا به هر وخت چي اولياء د مقتول پر ده يعني پر قاتل برى پيدا کړى نو به يي قتل کړى، نو هغه اخستى ديت به يي واولياؤ ته د قاتل وروه غورخاوه، فرد الله هذه الدسيسة اشد الرد وايضا ردها رسول الله ﷺ ابغض رد كمامر في حديث سمرة رضي الله عنه، وما روى المظهري ان المراد بالعذاب الاليم، الخلود في

النار ابدا فمحمول على التشديد والمبالغة في قبح هذا الفعل والله اعلم.

**پوه سه:** چي په اتفاق د علماء د امت سبب او علت د قصاص قتل عمد دی او په اتفاق په قتل خطاء کي قصاص نسته لکن په تفسير کي د قتل عمد اختلاف دی، په نېز د امام ابو حنيفه رحمه الله قتل عمد دادی چي قصدا بې ووهي او قتل يې کړي په سلاح سره لکه تور، خنجر، چاړه، ساتول، توپک، کلاشنکوف وغيرها من الاسلحة القديمة او الجديدة. او يا يې په داسي شي ووهي چي جاري مجرى السلاح کالمحدد من الخشب او المحدد من الحجر والنار، او شعبي او نخعي او حسن بصري رح وايي چي قتل عمد نسته بېله د اوسپني د آلاتو. ولاقود في غيره عندهم. او که يې په قصده وواهه په داسي شي سره چي نه سلاح وه او نه مايجرى مجرى السلاح وه لکه په لرګي چي يې ووهي او يا يې په ډبره وولي وامثال ذالک هغه ته شبه عمدا وايي او قصاص نه لري بلکه موجب يې ديت دی، يعني عند الحنفية، او که قصد نه و ورسره لکه څوک چي ښکار کوي او پر سړي ومښلي او مړ سي دې ته قتل خطاء وايي او موجب يې ديت دی فقط اجماعا. وفي العمد مذاهب آخر موضع بيانها کتب الفقهاء رحمهم الله تعالى.

## وَلَكُمْ فِى الْقِصَاصِ حَيَوٰةٌ يَٰٓأُو۟لِى الْأَلْبَٰبِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿١٧٩﴾

او تاسي لره په مشروع والي د حکم د قصاص ژوند سته اي خاوندانو د عقل شايد د قصاص د حکم په سبب به ځان وساتئ له قتل عمد څخه د قصاص له بېري، او يا تتقون بسبب اجراء القصاص عن عذاب الآخرة.

**پوه سه:** چي قصاص يې معرفه په لام جنس وګرځاوه او "حيٰوة" چي خبر د قصاص دی نکره چي تنوين يې د تعظيم هم دی، ددې معنا لپاره چي په دې جنس کي چي قصاص دی يو لوي ژوند دی تاسي لره (۱) چي يو څوک چي اراده د قتل د چا وکړي لکن د قصاص له بېري هغه مړ نه کړي نو دوه نفسه ژوندي پاته سوه (۲) بل دا چي اهل جاهليت به غير د قاتل مثلا د قاتل

وروز به یې واژه، او بعض اهل جاهلیت چې خانونه به یې مشرف بلله د مقتول خپل پح عوض کې به یې پوره جماعت له قومه د قاتل وژله نو آخر په لویه فتنه ددغو دوو قومو تر منځ پیدا سوه چې په سوو کلونه به یې جریان درلودی کما بین الاوس والخزرج من العرب قبل الاسلام، نو چې قاتل قصاص سي، نور توله قوم د قاتل ژوندی پاته سو چې اولیاء د مقتول کار نه په لري، او له قومو څخه د قاتل او مقتول د سوو کلونو وژنه او خون دفع سو(۳) بل دا چې قاتل چې قصاص سي حیٰوة طیبه د آخرت یې وربه برخه سو.

**فائده:** مخاطب یې اولوالالباب کړه ولې چې دوئ په حکم او مصالحو د احکامو الهیه پوهېږي.

**فائده:** دا آیت قرآني په غایت فصاحت او په نهایت کې د بلاغت دی ولې چې قصاص چې وژل دي ظرف د ضد دده چې حیٰوة دی وې گرځاوه او قانون د ضدیت خو دا و چې یو ضد به رافع د بل ضد وای مگر سره د ضدیت ظرفیت یې هم صحیح دی کما عرفت.

**فائده:** د عربو په ژبه کې هغه کوتا عبارت ددغې معنا لپاره و دا عبارت وو القتل انفی للقتل والکلام الالهي افضل علی ذالک الکلام الوجیز عندهم بوجوه (۱) اول دای چې حروف ملفوظه د آیت کریمه چې تنوین علحده حرف حساب نه سي کما هو مذهب بعض اهل العربیه لس دي، او د کلام وجیزه د عربو حروف ملفوظه څورلس دي (۲) داهم ده چې کلام الهي کلیه صحیح دی ولې چې په هر قصاص کې حیٰوة سته، بخلاف الکلام الوجیز لهم ولې هغه کلیةً نه دی صحیح ولې قتل ظلماً خو ادعی د بل قتل دی (۳) چې په کلام الهي تنوین د تعظیم موجود دی او ددوئ په کلام کې تنوین نستهٖ(۴) په کلام الهي د محسناتو څخه د بدیع صنعة الطباق دی یعني اجتماع الضدین في کلام واحد مع صحة المعنی وهما القصاص والحیٰوة (۵) په کلام الهي کې تصریح په مقصود بالذات سره سوې ده وهو

الحيوة او په کلام وجيز کي تصريح په مقصود بالذات سره نه دی سوی ولي چي نفي د قتل خو مقصود بالذات نه دی بلکه مقصود په سبب د حيوة دی (۶) په کلام الهي کي يو قسم غرابت ستنه چي يو ضد چي قصاص دی ظرف د بل ضد وګرځاوه چي حيوة دی په دې معنا چي ظرف چي پر مظروف احاطه وکړی مظروف د تفرق څخه ساتي دغه رنګه قصاص په مانحن فيه حيوة د آفاتو څخه ساتي (۷) په کلام الهي کي تکرار د يو لفظ نسته ولي په تکرار کي څه ناڅه عيب وي او په کلام ددوئ قتل دوه واره مکرر سوی دی.

**كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ إِنْ تَرَكَ خَيْرًا**

ليکل سوی دی يعني فرض سوی دی پرتاسي هغه وخت چي حاضر سي يوه ته ستاسي څخه مرګ يعني اسباب د موت يعني غالب سي پر ظن دده چي مرګ نژدې که يې پرېښو خير يعني مال.

**يوه سه**: چي ترک که څه هم ماضي ده خو دلته په معنا د مستقبل ده بقرينة المقام، او بعض فقهاء وايي چي مراد له خير څخه مال کثير دی، ولي چي امير المؤمنين علي ﷺ څخه روايت دی چي دده يو ازاد شده مريی په وخت کي قرب الموت اراده د وصيت درلوده، او دې مريي نه سوه روپۍ درلودې نو حضرت علي ﷺ دی له وصيته منع کړی او رته وه يې ويل چي خدای ﷻ وايي ان ترک خيرا والخير هو المال الكثير، رواه ابن ابي شيبه. او د عائشة ﷺ څخه روايت دی چي يو سړي اراده د وصيت درلوده يعني ددې سره يې مشوره وکړه، دې پوښتنه څنډي وکړه چي ته څو مال لري هغه ورته وويل چي درې زره درهمه، دې ﷺ ورته وويل چي عيال دي څو نفره دي هغه ورته وويل چي څلور نفره دي، دې بي بي ﷺ ورته وويل چي ان ترک خيرا، دا ستا درې زره روپۍ خو لږ شی دي وصيت مه کوه پرې يې پرده وعيال ته.

**فائده**: وانما فسرنا الموت باسبابه لان الوصية لا يمكن عند حضور نفس الموت والمراد باسباب الموت العلل والامراض.

# اِلْوَصِيَّةُ لِلْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ

**پوه سه**: چي الوصية مرفوع على انه مفعول مالم يسم فاعله لكتب.

**پوښتنه**: چي وصيت خو موئنث غير حقيقي دی او په داسي ځای کي تذکير او تانيث دواړه روا دي نو د کتب پر کتبت څه ترجيح وه؟

**ځواب**: نحات وايي چي په داسي ځای کي تذکير او تانيث دواړه روادي او په منځ کي د فعل او فاعل يا مفعول مالم يسم فاعله فصل راسي لکه دلته چي فصل موجود دی تذکير د فعل اولی دی، ولاحاجة الى ماقال المظهري رحمه الله ان الوصية بمعنى الايصاء او انه يوصى دی لانه لاحاجة الى التاويل فافهم، قوله للوالدين آه متعلق بالوصية.

**فائده**: په ابتداء کي د اسلام وصيت مالي کول واقاربو ته فرض و په دغه ايت سره او مال به تولـه د زوئ و ثم نسخت هذه الآية بآية المواريث ولهذا قال عليه السلام ان الله قد اعطى كل ذی حق حقه الا لاوصية للوارث.

**پوه سه**: چي اهل جاهليت چي وصيت د مال به يې کاوه بېګانه يا لېري اقرباؤ ته به يې کاوه لپاره د رياء او سمعه او لپاره د فخر او شرف، او مور او پلار او نور نژدي قريبان به يې مسکنت او فقر کي پرېښول نو په ابتداء کي د اسلام خدای ﷻ دغه آيت نازل کړی نو وصيت د ابعدينو يې راوګرځاوه والدينو او اقربينو ته، قال في روح البيان ثم نسخت هذه الآية اية المواريث في سورة النساء، نو اوس پر سړي واجب نه ده چي وصيت مالي به کوي که قريب وي او که بعيد وي او که سړي وصيت مالي کاوه نو هر چا ته د اقاربو او اباعدو وصيت ورته روا دی مګر هغه چاته چي په ميراث کي برخه لري لږ يا ډېره، هغه چاته وصيت مالي نه دی روا کمامر في الحديث النبوي ﷺ عنقريب، او په روح المعاني کي وايي ان هذا الحكم كان في بدء الاسلام ثم نسخ بآية المواريث كما قال ابن عباس رضي الله عنه وابن عمر رضي الله عنه وقتاده وشريح ومجاهد وغيرهم رحمهم الله، وقد اخرج احمد وعبد بن حميد والترمذي

وصححه والنسائي وابن ماجه رح عن عمر بن حارثه ﷺ ان النبي ﷺ خطبهم على راحلته فقال ﷺ ان الله قد قسم لكل انسان نصيبه من الميراث فلا يجوز لوارث وصية، واخرج احمد والبيهقي عن ابي امامة الباهلي ﷺ قال سمعت رسول الله ﷺ في حجة الوداع في خطبته يقول ﷺ ان الله قد اعطى كل ذى حق حقه فلا وصية لوارث واخرج عبد حميد عن الحسن البصري ؒ نحو ذالک وهذه الاحاديث لتلقى الامة لها بالقبول وانتظمت في سلک المتواتر في صحة النسخ بها عند ائمتنا قدس الله اسرارهم، بل قال بعضهم انها من المتواتر والتواتر قد يكون بنقل من لايتصور تواطوئهم على الكذب كما هو المشهور في تعريفه وقد يكون بعضهم بان يكونوا عملوا به من غير نكير منهم علا ان النسخ الحقيقة بآيت المواريث، والآحاديث مبينة لنسخها وبين ذالک فخر الاسلام ؒ بوجهين، الاول ان آية المواريث نزلت بعد آية الوصية بالاتفاق وقال الله من بعد وصية او دين فرتب الميراث على وصية منكرة والوصية الاولى كانت معهودة فلو كانت تلک الوصية باقية بعد آية المواريث توجب ترتيبه على المعهود فلما لم يترتب عليه ورتب على المطلق دل على نسخ الوصية المقيدة يعني بالوالدين والاقربين لان الاطلاق بعد التقيد نسخ لذالک المقيد كما ان التقيد بعد الاطلاق نسخ، لتغاير معنيي الاطلاق والتقيد، والثاني ان النسخ نوعان احدهما ابتداءً بعد انتهاء محض، والثاني بطريق الحولة من المحل على اخر كما في نسخ القبلة، وما نحن فيه من القبيل الثاني لان الله تعالى فرض اولا الايصاء الى الوالدين والاقربين الى العباد بشرط ان يراعوا الحدود، ثم بدل ذالک الايصاء ببيان حقوق الورثة في آية المواريث فعلم بحيث لايبقى ريبة لعلماء الدين المبين ان اية المواريث ناسخة لآية الايصاء للوالدين آه.

**درویش وایي**: چي دا وه فیصله د خاتمة المحققين عمدة المدققين مفتي بغداد العلامة ابي الفضل شهاب الدين السيد محمود الآلوسي البغدادى المتوفي في سنه ١٢٧٠ ھ رحمه الباري.

**درویش وایي:** چي قاضي بیضاوي رحمه الله ددې نسخ څخه منکر دی وقال فيه نظر لان آية المواريث لاتعارضه بل تؤكده، ثم قال والحديث من الاحاد وتلقى الامة لها بالقبول لايلحقه بالتواتر آه.

**درویش وایي:** چي ما للبيضاوي وللكلام في الحديث النبوي ﷺ مع ان البيضاوي رحمه الله لم يفرق بين الحديث الصحيح والحديث الموضوع حيث اورد في آخر تفسير الفاتحة ان القوم الى آخير الحديث، قال السيوطي هذا حديث موضوع، وقال الخفاجي في شرحه على البيضاوي الحديث موضوع، والمظهري رحمه الله مع انه يعتمد على البيضاوي في كثير من مواضع تفسيره الا انه ههنا اورد عبارة البيضاوي بلفظه حيث قال وفيه نظر لان آية المواريث لايعارضه بل يؤكده فانها تدل على تقديم الوصية مطلقا على الارث فكيف تكون ناسخة والحديث من اخبار الآحاد لايجوز به نسخ الكتاب انتهى ثم قال المظهري رحمه الله والتحقيق ان الآية منسوخة للاجماع على عدم جواز الوصية لوارث الا عند رضاء الورثة الآخر، والاتفاق الائمة الاربعة رح وجمهور العلماء رح على عدم وجوب الوصية لغير الآقارب.

**درویش وایي:** چي ما نو دونده اطالة الكلام له دې سببه وکړی چي دا آیت منسوخ په آية المواريث دی او که نه، نو یوازي بیضاوي پر میدان پاته دی چي منکر د نسخي څخه دی او ماڅکه عبارت د روح المعاني سره د طوله په عربي ژبه رانقل کړی تاچي د حاسد ملا پر خوله مي مهر د قيل وقال ورولګاوه، او د روح البيان عبارت مختصره مي هم رانقل کړی او د مظهري له ځایه څخه د حاجت عبارت مي هم رانقل کړی.

**درویش وایي**

حاسدان د ي خپل حسد کړي زما و دوئ ته اجا زه ده
مګر خپل نیک عمل به ماته سپاري زما ودوئ ته اجازه ده
زه پخپل نیک عمل کي ډېر قاصر یم
د حاسدو نیک عمل ته منتظر یم زما دوئ ته اجازه ده

د حسد سره ملگري هم بهتان او هم غيبت و يِ
ذا دوېِ نورېِ کبيرېِ دېِ زما ودوئ ته اجازه ده
په حسد او په غيبت او په بهتان کي ما درويش ته
خونده لويه سرمايه زما و دوئ ته اجازه ده

بِالْمَعْرُوفِ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِينَ ﴿۱۸۰﴾

او وصيت په معروفه طريقه کوئ نه لکه وصيت د اهل جاهليت کمامر.

**پوه سه:** چي حقا مفعول مطلق دی د فعل محذوف اي احقه حقا وخص المتقين بالذکر لانهم هم المنتفعون باوامره ونواصيه يعني بالعمل بالاوامر والاجتناب عن المنهيات ولا يتوهم ان هذا الحق مخصوص ومحصور في المتقين مع الاحکام الآلهية عامة لاتختص باحد دون احد

فَمَنْ بَدَّلَهُ بَعْدَ مَا سَمِعَهُ

او که چا بدل وصت د مرېِ وروسته تر اوربدو

**پوه سه:** چي ضمير مذکر د بدله راجع و وصيت ته دی په تاويل د ايصاء.

**فائده:** مراد له من څخه عام دی که شاهد وي او که وصي وي او تغيير د هر يوه عام دی که په انکار د اصل وصيت وي، او يا په نقصان د مال موصی به او بغير ذالک او سمع آه کنايه له علم څخه دي ای بعد علمه لان السماع سبب للعلم.

فَإِنَّمَا إِثْمُهُ عَلَى الَّذِينَ يُبَدِّلُونَهُ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿۱۸۱﴾

يعني گناه د ايصای مبدلي خاص په هغو کسانو پوري ده چي ايصاء د مرېِ يې بدل کړه، يعني پر ميت کومه گناه نسته ولي چي پر وجه شرعي يې وصيت کړی و، او خدای ﷻ اوربدونکی د وصيت د مرېِ دی او د تبديل د بدلونکو او هر يوه ته به مناسبه جزاء ورکړي من الثواب والعقاب، او خدای ﷻ خبر دی په حال د هر يوه.

**پوه سه**: چي ضمير د مفرد راجع وايصاء مبدل ته دی، او مراد له "الذين يبدلونه" څخه معنا د من بدله جمع الموصول باعتبار معنى من.

**پوه سه**: چي په دې آيت کي وعيد دی مبدلينو لپاره او وعيد دی د وصيت کونکو لپاره.

**مسئله**: روح المعاني په تفسير ددې آيت کي داسي وايي چي فرض له ذمې څخه د وصيت کونکي ساقط دي په نفس وصيت سره او وده ته ضرر نسته که دده په وصيت عمل دده اقرباء ونه کړي.

**مسئله**: که پر يو چا پور باندي وي او ده په قرب الموت کي وزامنو ته مثلاً په ورکړه د پور وصيت وکړی يسقط الدين عن الموصى بنفس الوصية او ده ته ضرر نسته که څه هم زامن مثلا عمل په ونه کړي، يعني پور نه کړي اداء، او په اخرت کي دی نه نيول کېږي والى ذالک ذهب الکياء، وقال صاحب روح المعاني والذي يميل القلب اليه ان المديون لاتبعة عليه بعد الموت مطلقا ولا يحبس في قبره كما يقوله الناس اما اذا لم يترک شيئا ومات معسرا فظاهر لانه لو كان حيا لا شيئ عليه بعد تحقق اعساره سوى نظرة الى ميسرة فمواخذته وحبسه في قبره بعد ذهابه الى اللطيف الخبير مما لايكاد يعقل واما ان ترک شيئا وعلم الوارث بالدين او برهن عليه كان هو المطالب باداته والملزم بوفائه فاذا لم يود ولم يف اخذ هو في الآخرة لا من مات وترک مايوفى منه دينه كلا او بعضا فان للميت المديون ان يقول في الآخرة يارب تركت ما يفى ديني ولم يف عني اى الوارث، واوجبت عليه الوفاء بعدي ولو امهلتنى لوفيت فمواخذته مما ينافي الحكمة ولا تقتفيه الرحمة.

**درويش وايي**: چي چونکه پر صاحب د روح المعاني دا سوال وارد و چي په باره کي د پور په مواخذه کي د ميت په ورځ د قيامت چي ورثه يې پور نه کړي اداء ډېر صحيح حديث راغلی دی، نو روح المعاني والا داسي جواب ورکړی دی نعم مواخذه الميت مقبولة فيمن استدان لحرام وصرف المال في

غیر رضا الملک العلام وما ورد في الآحادیث فمحمول علی هذا او نحوه واحده ذالک مطلقا مما لایقبلة العقل السلیم والذین المستقیم انتهی.

**درویش وایي:** چي په دې مسئله کې باید ډېر غور وکړه سي او کتابونه د تفاسیرو او شروح د کتابو د احادیثو مبارکه وو دي هم مطالعه کړه سي تاچي معلومه سي چي بل مفسر یا محدث د غسې مجمل بیان کړی دی او که څرنګه والله اعلم بالصواب.

فَمَنْ خَافَ مِنْ مُّوصٍ جَنَفًا أَوْ إِثْمًا فَأَصْلَحَ بَيْنَهُمْ فَلَآ إِثْمَ عَلَيْهِ ۚ إِنَّ اللّٰهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿۱۸۲﴾

او که بېرېدی یعني توقع او علم یې و، د وصیت کوونکي د میل و یو خواته او یا میل له حقي لاري څخه په خطاء سره اویا له ګناه څخه یعني ظلم عمدا، نو هغه سړي صلح وکړه په منځ کي د موصی او ورثه وو نو ګناه نسته پر هغه سړي، او په تحقیق خدای ﷻ غفور او رحیم دی.

**پوه سه:** چي مجاهد رحمه الله وایي که یو سړی حاضر سو و مریض ته چي هغه وصیت کاوه، نو ددې سړي دا خیال او یقین و چي مریض یا په خطاء سره او یا په قصد سره میل کوي له حق لاري څخه، نو دی ومریض ته امر بالمعروف وکړي او نهي عن المنکر وکړي ودې ناصح ته ګناه نسته، وهذا کما نهی رسول الله ﷺ سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه عن زیادة الوصیة علی الثلث کما رواه البخاري وغیره، او د مخه تېره سوه چي عائشه رضي الله عنها یو سړی له اصل وصیت څخه منع کړی، او علي رضي الله عنه خپل مولی هم د اصل وصیت څخه منع کړی کمامر ایضاً. او په حدیث متفق علیه کي راغلي دي چي د نعمان پلار بشیر رضي الله عنه نعمان رضي الله عنه ورروستی وعلیه الصلوة والسلام ته او وه یې ویل چي ما وخپل دغه زوئ نعمان ته یو مریي وربخښلی دی ته پر شاهد اوسه، نو علیه السلام ورته وویل چي تا و هر ولد ته یو یو مریی ورکړی دی، بشیر ورته وویل با

نورو ته مي غلام نه دی ورکړی، نو علیه السلام ورته وویل فارجعه بېرته یې
خندي واخله، وقال لااشهد علی جور زه شاهدي نه سم کولای پر ظلم.
**پوښتنه:** خدای ﷻ غفور ورحیم ذکر کړی او سره له دې چې په موضوع کې
د صلح د مبدل خو کومه گناه نه وه، بلکه مبدل ته د وصیت خو خدای ﷻ
ثواب ورکوي ولي مبدل الوصیة خو وصیت کونکی له باطل څخه یا خطاءً یا
عمداً وحق ته را وگرځاوه په وصیت کولو کې، نو مغفرت فرع د گناه نه دی؟
**ځواب:** هو مبدل خو هیڅ گناه نه ده کړې نو دا د فعل تبدیل که څه هم حق ته
و مگر په جنس کې تبدیل گناه هم سته لان بعض التبدیل اثم کالتبدیل من
الحق الی الباطل في الوصیة، نو دا تبدیل د باطل وحق ته مشاکلة صوري
لري د هغه تبدیل سره چې له حق څخه وباطل ته تبدیل وکړي لکن په حقیقت
کې دا تبدیل خو وخیر ته دی و گناه ته خو نه دی بلکه ښه کار دی، لکن په
اعتبار د مجانست صوري یې غفور ذکر کړی، تنها پر دې چې بعض د
تبدیل څخه گناه هم ده، او یا غفور یې د ذکر الاثم فیما قبل په سبب ذکر کړی.
**مسئله:** وصیت کول مستحب کار دی ولي چې مسلمانان ورته محتاجه دي
له دې سببه چې انسان تبعا مغرور دی او طول الحیاة یې په دماغ کې مرکوز
دی، او په اعمال کې د خیر تقصیر څندي کېږي بناء علی طول الامل. نو چې
مرض ورپېښ سي او پر هلاکت او مرگ وپوهېدی نو دی باید تدارک د خپل
تقصیراتو وکړي په مال سره یعني مالي وصیت وکړي، نو که چېري مړ سي د
مال مقصد به یې پر ځای وي یعني تقصیرات به یې په سبب د ښندنې د مال
دفع کړي وي، او که جوړ سو هغه مال به خپل حالي حاجتونو ته صرف کړي.
وفي الحدیث الصحیح النبوي ﷺ قال رسول الله ﷺ ان الله تصدق علیکم بثلث
اموالکم في آخر اعمالکم زیادة في اعمالکم تضعونها حیث شئتم.
**مسئله:** مریض به وصیت کوي په فدیه د لمونځو که یې قضاء کړي وه
لکل فریضة وکذا للوتر نصف صاع من حنطة او که یې روژې خوړلي وي د

هري روژي لپاره به د فديه وصيت نصف الصاع من بر، او كه نذري روژه پر باندي وه د هغې لپاره هم نصف صاع من الحنطة به وصيت كوي.

**پوه سه:** چي نصف صاع د حنطة خواه ماخواه نه ده لازمه بلكه صاع الشعير والتمر هم كفايت كوي.

**مسئله:** كه پر چا حج فرضي پاته و او يا بعض كفارات يې په ذمه كي ؤي فالوصية واجبة والا فهو بالخيار وعليه الفتوى كذا في التفسير الشيخ.

**مسئله:** بايد ورثه و ته وصيت وكړئ د قضاء د پورو چي پر ده باندي وي.

**مسئله:** ورثه و ته دي وصت وكړي چي زما مدعيان او خصوم له ماخخه راضي كړي يعني حق راپل كړي كه په زاريو وي او كه په مال وي.

**حكايت:** حضرت الامام محمد بن ادريس الشافعي رحمه الله قدس سره چي مريض په مرض موت سره سو نو يې وصيت وكړی چي فلانی سړی چي هغه دده د مذهب لوی سرمايه داره سړی و او په عين حال كي امي و ده ويل ماته به غسل راكوي، حاضرين حيران سوه چي د غسل لپاره يو عالم فقيه په كار و ده څرنگه دا دنيا داره سړی وټاكی د غسل لپاره خو بهر حال ورثه و د حضرت الامام رحمه الله هغه سړی راوغوښتی او د حضرت الامام د غسل د وصيت يې ورته بيان كړی، هغه سړی چونكه ډېر دانشمند سړی و او په دي وصيت كي د حضرت الامام يې فكر وواهه چي سره د ډېرو علماؤ او فقهاؤ او تقوی داره خلگو د مذهب د حضرت الامام ته څرنگه د غسل د وظيفې لپاره زه انتخاب كړم، نو دې سړي و ورثه وو ته د حضرت الامام رحمه الله وويل چي تاسي هغه وصيت نامه د حضرت الامام رحمه الله راوړئ چي د پور په باره كي يې نوشته كړې ده، ورثه وو چي هغه وصيت نامه راوړه پر حضرت الامام اويا زره (۷۰۰۰۰) درهمه پور باندي و، نو هغه سرمايه داره وويل چي دغه پور د حضرت الامام رحمه الله زما پر ذمه دی، او هغه سرمايه داره وويل و ورثه وو ته د حضرت الامام رحمه الله چي زما غسل هم دغه و، اوس تاسي خپل غسل ته شروع وركړئ.

**درویش وایي:** چي عجیبه کنایه وه د حضرت الامام ﷺ او د تعجب ور داده چي هغه مالداره سړی څرنګه په مراد د حضرت الامام پوه سو.

وفي الحديث الصحيح چي رسول الله ﷺ وویل چي څوک چي وصیت ونه کړي یعني وصیت ته ضرورت هم وي او مړ سي، ده ته اجازه نه ورکول کېږي چي دی دي د نورو مردګانو سره خبري وکړي، یو صحابي ﷺ پوښتنه خندي وکړه چي آیا مړي هم خبري سره کولای سي، علیه السلام ورته وویل نعم او یو د بل ملاقات ته هم ورځي، قال الامام الرازي نقلا عن بعض الائمة الاعلام ﷺ چي روحان دوه قسمه دي یو قسم د خپلو بدو عملو، کفر وغیره سر معذب وي، او یو د ایمان او ښوو عملو له سببه په نعمتو کي د برزخ وي، اما المعذبة هغه بندیان او پخپل عذاب سره مشغول وي تزاور او ملاقات ته د چا نه ورځي او نه ورتلای سي، واما المنعمة هغه ازاد وي محبوس نه وي نو هغه یو له بله یعني قریبانو شناخته ګانو ملاقت او زریات ته ورځي او زیارت ته چي ورسي د دنیا وي او اقعاتو چي پر دوئ ورغلي وي بیان سره کوي نو هره ورځ د هغه ملګري سره چي دوئ په دنیا کي پر عمل سر هم مثل وه وهذه المعية ثابتة في دار البرزخ ودار الجزاء لان المرء مع من احب حدیث صحیح، نو عاقل سړی باید د خدای ﷻ د نیکو بندګانو سره ناسته او ولاړه کوي او ځان ومرګ ته چمتو ولري، او په مال او منال مغروره نه سي فان الدنيا ذاهبة فانية ونعيم الآخرة باقية دائمة فينبغي ان يختار الباقي على الفاني، قال الصائب ﷺ

در سر این غافلان طول امل داني که چیست آشیان کرد است ماری در کبوترخانه

اللهم ارزقني حبك وحب حبيبك وحب من يحبك وحب عمل يقربني اليك، قال المولوي المعنوي في مثنويه

چیست دنیا از خدا غافل شدن نی قماش ونقره وفرزند و زن

کوزه سر بسته اند آب رفت از دل پر باد فوق آب رفت

باد د روښنی چو د ر باطن بود　بر سر آب جها ن ساکن بود
هرکه دارد از هوسها جان پاک　زود یبند حضرت وایوان پاک

## قال الحافظ الشیرازي رحمه الله

تو بندگی چو گدایان بشرط مزد مکن　که خواجه خود روش بنده پروري داند
طریقت همینست که اهل یقین　نکو کا ر بو د ند و تقصیر بین
بروی وریا خرقه سهلت دوخت　گر ش با خدا د ر توا نی فروخت
همان به گر آبستن گو هر ی　که همچون صدف سر بخود دربری
اگر آوازه خوا هی در اقلیم پاش　بدون حله کن گو درون خشوه باش
اگر مشک خالص نداری مگوی　و گر هست خو د فا ش گردد ببوی

## خواجه عبدالله انصاری چه خوب میگوید

دلا درکار خو د میکن نظرها　که در راه تو میبینم خطرها
نگر در خلق گورستان فگنده　ز یک تیر فنا جمله سپرها
بسا شاهان همه روبند درخاک　کز ایشان درجهان مانده اثرها
معاصی زهر قهر ا ست ونموده　بکام نفس تو همچو ن شکر ها
گذرگاهست این دنیا ی فانی　نما ند مرد عاقل در گذرگاه
چو درپیش است مرگ ای پیر انصار　تماشیی جهان کن در سفرها

## ایوبي میگوید

الهی یا ا لهی یا ا لهی　نظر کن بر من گم کرده راهی
ندارم توشه ر ا ه قیا مت　بجز شر مند گی ورو سیاهی
ندارم طا عت مقبول د ر گا ه　بجز ا شک ند ا مت آه آهی
بحق حرمت فر قا ن اعظم مرا　از ذنب خود کن عذر خواهی
شفیع اورده ام ر و ی محمد ﷺ　عبد را عفو کن ا ز هر گنا هی

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿۱۸۳﴾

ای هغه کسانو چي ایمان مو راوړی دی لیکل سوي دي فرض سوي دي روژې لکه چي فرض سوي دي پر هغو کسانو چي تر تاسي د مخه وه يعني مؤمنان د پېښو امتو شايد تاسي به په سبب د دغو روژو خانونه و ساتئ له ګنهونو څخه، لانّ الصوم يكسر الشهواة، وفي الحديث المتفق عليه چي ابن مسعود ﷛ یې روایت کړی دی چي عليه الصلوة والسلام وويل ای ځلمي د ځوانانو هر څوک چي طاقت لري د نکاح يعني د مهر او د نفقه طاقت لري هغه دي کوزده وکړي ولي چي کوزده يعني مايينه د سړي ستر ګي کښته کوي له ناروا څخه، او روژې ساتونکي د فرج دي له زناء څخه، او څوک چي طاقت د کوزدې نه لري نو پر هغه روژې لازمي دي يعني نفلي.

**فائده**: اهل العلم وايي چي يا حرف نداء ده او دا نداء د دوست ده دوست ته، او ايها حرف تنبيه ده او دا تنبيه ده د دوست ودوست ته. او آمنوا شهادت دی د دوست پر ايمان د دوست، او حسن بصري ﷫ وايي چي ته په قرآن مبارک کي واورې "يا ايها الذين آمنوا" نو غوږ ونسه چي خدای ﷻ تاته امر کوي او يا نهي.

**فائده**: مراد له صيامو څخه روژې د مياشتي د روژې دي لقوله تعالى ﴿فمن شهد منكم الشهر فليصمه﴾ وقال ﴿شهر رمضان الذي انزل فيه القرآن﴾

**فائده**: صوم په لغت کي نفس امساک ته وايي او په شريعت مطهره کي کي امساک د درو شيانو څخه يعني خوراک، څښاک او جماع څخه د وخت څخه د صبح صادق لر لمر لوېدو پوري مع النية.

**پوه سه**: چي نيت لفظي شرط نه دی بلکه قصد مصمم دی نو کله چي سړی پېشلمی وکړي په قصد د روژې او په خوله هيڅ ونه وايي روژه یې صحيح ده، الا ان اللفظ بالنيات حسن. دا خو صوم د عوام ده او د

خواصو روژه امساک دی د ټولو منهیاتو څخه.

**فائده**: کما کتب" صفت د مصدر محذوف دی، نو منصوب محلا دی او مفعول مطلق دی والتقدیر کتب کتابا کائنا مثل ماکتب آه.

**فائد**: په دې قول کې د خدای ﷻ کما کتب آه ترغیب دی او تاکید د امر د روژې دی له دې سببه چې روژه امر شاق دی او هر امر شاق چې عام سي خلګو ته اسان سي ځکه پښتنانه وایي بلا چې عامه سي اسانه سي. او دعالمه سره غم نه غم دی.

**فائده**: تشبیه په کما کتب کې په مطلق صوم کې ده په معنا ددې چې هیڅ امت د روژې څخه خلاص نه دی، اما تعداد د روژو او وخت د روژو سره مختلف دی، لکه چې اسلامي تاریخ وایي چې پر آدم علیه السلام د عاشورې روژه او د ایام بیض روژې، یعني ۱۳، ۱۴، ۱۵ د میاشتې روژې فرض وې، قال بعض العلماء رح چې پر نصاری وو اول د شهر رمضان روژې فرض سوې، نو د روژې میاشت به ګاهي په دوبي کې راغله نو په سبب د تندي به دوئ په تکلیف وه او ګاهي به په سخت ژمي کې راغله چې په سبب د لوږې به پردوئ تکلیف وه. نو علماؤ او روساؤ ددوئ اتفاق پر دې وکړی چې موږ به روژې په پسرلي کې نسو لکن لس روژې یې جریمه پر زیات کړه حتی چې روژې ددوئ څلوېښت سوې والله اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب.

## اَیَّامًا مَّعْدُوْدٰتٍ

یو څو ورځي په حساب دي یعني لږ دي وجه د دلالت پر قلت داده چې دراهم مثلا چې لږ وي خلګ یې شمېرې، او چې ډېر سي نو بیې په بسته بسته حسابوي.

**پوه سه**: چې لفظ د "ایاما" منصوب دی په "صوموا" مقدر سره لا بالصیام سره لان المصدر ضعیف العمل لایعمل مع الفصل.

**بوه سه**: چي علامه سيوطي رحمه الله وايي چي احمد، ابو داوُد او حاكم رح د معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روايت كوي چي د مخه تر فرضيت د روژو د مياشتي روژې روژه د يوم عاشوره او درې ورځي روژې يعني ايام بيض ۱۳، ۱۴، ۱۵ په هره مياشته كي واجب وې يعني په وحي غير متلو سره د مخه تر نزول ددې آيت، او هغه نسخ سوې په دې آيت سره، نو پر دې تقدير د ايام معدودات څخه مراد روژې د مياشتي د روژې دي، او دا آيت منسوخ نه دى، بلكه ناسخ دى د ماجب قبل هذه الآية، او هغه خبره چي ابن عباس رضي الله عنه ته يې څوک نسبت كوي يعني چي ده ويلي دي اول مانسخ بعد الهجرة امر القبلة والصوم مراد خندي دغه نسخه مذكوره ده وبه ظهر ضعف ماقيل ان المراد بالايام المعدوات سره مذكوره روژې دي يعني ۱۳، ۱۴، ۱۵ د هري مياشتي او عاشوره، نو دا آيت دوئ منسوخ بولي په فرضيت د مياشتي د روژې.

**درويش وايي**: چي د آيت له سره يعني يا ايها الذين آمنوا كتب آه تو له پر دې دلالت كوي، چي په دې آيتو كي مراد له روژي د رمضان روژې دي ويلزم على ماقيل الاختلاط بين الناسخ والمنسوخ لان المراد بالاتفاق من قوله تعالى يا ايها الذين آمنوا آه هو صيام رمضان واذا كان المراد من ايام معدودات آه هو الصيام المذكورة في قول القائل المذكور يلزم الاختلاط المذكور لامحالة ولايوجد في القرآن مثل ذالك نسخ، والقاضي البيضاوي رحمه الله اورد هذين القولين بالترديد حيث قال المراد بها (اي الايام) رمضان او ماوجب صومه قبل وجوبه ونسخ به (اى بصوم رمضان) كما ذهب اليه معاذ وقتاده وعطار رضي الله عنه.

و اورد المظهري رحمه الله هذا القول بقيل اشارة الى ضعفه وفي تفسير روح المعاني المراد بهذه الايام المعدودات صيام رمضان واختار ذالك ابن عباس رضي الله عنه والحسن البصري وابو مسلم واكثر المحققين، وبه خذ الشافعي

رحمه الله فيكون الله سبحانه وتعالى قد اخبر اولا انه كتب علينا الصيام ثم بينه بقوله عزوجل اياما معدودات فزال الابهام (يعني انه ليس المراد صيام الدهر او اكثره) ثم بينه بقوله عزوجل شهر رمضان (يعني فزال الابهام بالكلية)

**درویش وايي:** چي وروسته بيا صاحب د روح المعاني هغه قول مضعف ذکر کړی دی او په ډېر تکليف سره يې توجيه د هغه کړی ده چي عقل سليم يې برداشت نه سي کولای فراجع روح المعاني جلد ثاني ص ۵۷ وتامل فيه وفي ماقلنا.

## فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا

نو که وو له تاسو څخه ناجوړی، يعني داسي ناجوړی چي روژې تـاوان ورته کاوه، نو دی ببربدی چي مرضي به مي زياته سي او يا به اوږده سي وانما قلنا چي روژې آه لان بعض الامراض ينفعه الصوم كاستطلاق البطن.

**فائده:** هغه سړی هم ددې آيت تر حکم لاندي دی چي ضعيف وي او غالب گمان دده داوي چي که زه روژې ونسم زه به مريض سم.

**مسئله:** حامله ښځه يا هغه ښځه چي ولد ته شدې ورکوي، که ببربدلي يعني په ظن غالب سره پر ځانو له ناجوړی، څخه او يا پر کوچني ببربدلي له ناجوړيه، هغو ښځو ته روژه خوړل رواه دي.

**پوه سه:** چي که د مريض جماع ته شوق وسو او روژه يې پخوله وه او جماع يې وکړې، امام احمد پر هغه کفاره لازمه بولي، او که مريض بوار روژه په ډوډی، مثلا ماته کړه، او بيا يې جماع وکړې نو کفاره نسته باندي وهذا هو المعقول من المذهب لان المريض انما يحتاج في المرض الى الاكل والشرب دون الجماع، او د ابن سيرين رحمه الله څخه روايت دی چي په ادنی مرض سره روژه خوړل روا دی للاطلاق في الآية. دا روايت د ټولو فقهاؤ څخه مخالف دی بلکه مجوز د فطر او روژې خوړولو خوف د زيادت د مرض دی او يا امتداد د مرض دی ولي د ادنی مايطلق المرض

کوجع الراس وقبض المعدة وامثالها لایخلو عنه انسان کما لایخفی، او حسن بصري رحمه الله وايي چي مجوز د افطار دونده مرض دی چي مريض ته په ناستي لمونځ روا کوي والله اعلم.

## أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ

او يا پر سفر شرعي و.

**پوه سه:** چي چونکه کلمه د علی لپاره د استعلاء ده نو له دې څخه دا معلومېږي که سړي روژه نیولې وه او په منځ کي د ورځي مسافر سو، افطار نه دی ورته روا کذا في روح البيان، والمظهري وقال المظهري وعليه انعقد الاجماع، لكن داؤد ظاهري وايي چي په سفر کثير او قليل دواړو کي روژه خوړل روا دي.

**مسئله:** د فقهاؤ په مقدار کي د هغه مسافت چي سړي ته روژه خوړل او قصر د لمانځه روا کوي اختلاف دی حضرت الامام الاعظم ابو حنيفه رحمه الله وايي چي مقدار د مسافت مذکوره د دروو ورځو او شپو مزل دی د اوښ باردار په تګ او يا د پښو په تګ، په استثناء د استراحت عادی يا ډوډی خوړلو او د لمونځو. او امام ابو يوسف رحمه الله وايي چي مقدار د مسافت مذکوره دوه شبانه روزه او د دريمي اکثره حصه ده. امام اعظم رحمه الله دليل هغه حديث مروي د حضرت علي کرم الله وجهه دی، چي له ده څخه چا پوښتنه وکړه چي مدت د مسح د خوفينو څو دی هغه ورته وويل چي عليه الصلوة والسلام درې ورځي او درې شپې مقرري کړي دي د مسافر لپاره او يوه ورځ او شپه د مقيم لپاره. قال المظهري رحمه الله الحديث الصحيح رواه مسلم رحمه الله لكن الاستدلال به ضعيف.

**درويش وايي:** چي شايد وجه د ضعف الاستدلال دي د مظهري رحمه الله په خيال داوي چي مسح الخفين او قصر الصلوة او روژه خوړل څو فرق سره لري، نو يو پر بل نه قياسېږي.

**درویش وايي:** چي د فقهاوُ د مذهب حنفي دادرې سره من واد واحد دي لکن مظهري ﷫ د نورو مذهبو په تضعیف سره پر خپل مذهب سوالونه کوي والله اعلم بالصواب.

**مسئله:** چونکه آیت مذکوره د سفر په باره کي مطلق دی. نو مذهب د ابو حنیفه ﷫ دادی چي سفر د معصیت لکه سرې چي په غلا پسي ځي وامثال ذالک هم مجوز د خوړلو د روژې، او د قصر د لمانځه دي، او امام شافعي ﷫ او امام احمد ﷫ وايي چي سفر د معصیت مجوز نه دی.

**مسئله:** امام شافعي، احمد، او امام مالک ﷫ په مقدار کيد مسافت د فطر او قصر شپاړس فرسخه چي څلور برد کېږي شرط گرځولی دی.

**درویش وايي:** چي تفصیل د دلائلو د فریقینو او جوابات په کتابو کي د فقه او په مفصلو شروحو کي د کتب الاحادیث خصوصا فتح القدیر او عیني شرح الکنز، او عیني شرح البخاري، او شرح معاني الاثار للطحاوي ﷫ وغیرها من کتب المذهب الحنیفي لان کتب التفاسیر لیست موضوعة لدلائل المسائل بالتفصیل نعم تبین تلک الکتب اصل المسائل واحیانا تذکر بعض الدلائل ایضا خصوصا هذا التفسیر الذي اصل وضعه لعوام الناس والمبتدیین من الطلبة وبعض ائمة المساجد والجوامع والله الموفق.

## فَعِدَّةٌ مِّنۡ اَيَّامٍ اُخَرَ

یعني پر دغه سړي چي په عذر د مرض او یا د سفر بې روژې خوړلي فرض او لازم دی روژې په حساب د خوړلو روژو.

**پوه سه:** چي په دې آیت یا فعل محذوف دی یعني فکتب علیه او یا مبتداء ای فالواجب علیه. او پر هر تقدیر د عدت سره مضاف محذوف ای صیام عدة او دا حذف په دلالت د مقام دی.

**مسئله:** په دغو قضایي روژو کي تتابع شرط نه ده یعني چي پیوسته به یې نسي، وعلیه الاجماع، او داوٗد ظاهري وايي چي تتابع شرط ده لکن دا مذهب

مخالف دی د اطلاق څخه د قرآن او د اجماع څخه د صحابه کرامو ﷺ او تابعینو رح فلا یعبأبه وان کان التتابع مشروطا فما کان ربک نسیا. او په حدیث شریف کې چې روایت یې دار قطني رحمه الله د ابن عمر ﷺ عن النبي ﷺ کړی دی في قضاء رمضان ان شاء الله فرق وان شاء تتابع راغلي دي، او په حدیث کې د محمد بن المنکدر ﷺ چې دی وایي چې د رسول الله ﷺ څخه چا پوښتنه وکړه په باره کې د عدم تتابع د قضایي روژو، علیه الصلوة والسلام ورته وویل ذالک الیک یعني تتابع او عدم تتابع ستا خوښه ده.

**مسئله**: په دې کې خو اتفاق دی چې مریض یا مسافر چې روژه وخوري یوازي قضاء پر لازمه ده یعنی قضاء او فدیه دواړه پر لازم نه دي. او په مرضع او حامل کې چې روژه وخوري اختلاف دی. ابو حنیفه رحمه الله چې پر هغو هم یوازي قضاء ده وبس، وهو روایة عن مالک رحمه الله. او امام شافعي او امام احمد رح وایي چې پر مرضع باندي قضاء او فدیه دواړه سته او پر حامله باندي صرف قضاء ده.

**درویش وایي**: والفرق عسیر جدا ولا سندله في الاحادیث الشریفة. او د ابن عمر ﷺ او ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چې پر مرضع او حامل باندي یوازي کفاره د قضاء نسته.

**مسئله**: که دغه چا چې روژې یې خوړلي وي او بیله عذره تر بلې روژې پوري وځنډوي، امام شافعي او امام احمد او مام مالک رح وایي چې پر دغه چا قضاء او کفاره دواړه واجب دي، او امام اعظم رحمه الله وایي چې صرف قضاء پرده واجبه ده، دلیل یې دادی چې په اول الامر کې تتابع دده څخه ساقطه سوه والساقط لایعود، نو تتابع چې نه راګرځي نو فدیه له څه سببه پرده لازمه ده سره د قضاء، او بله دا خبره ده چې په اشتراط کې د فدیې زیادت پر کتاب الله لازمیږي وهو لایجوز، نو د امام اعظم رحمه الله مذهب دادی چې روژې قضایي که سړی پسله ډېرو کلو نسي هم یوازي عدت من ایام اخر سته فدیه یې نسته. راجع الی کتب الفقه

**فائده:** مريض او مسافر که څه هم مخير دي که روژه نسي او که افطار کوي کما عليه اکثر الفقهاء رح لکن ابو حنيفه او مالک رح وايي چي روژه يې ښه ده، او امام شافعي، احمد، او اوزاعي رح وايي چي افطار يې احب دی، او اصحاب ظواهر الحديث وايي چي افطار پر واجب دی که دوی روژې ونسي روژې يې نه دي صحيح کذا في روح المعاني.

وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ

**دوريش وايي:** ددې آيت تفسير معركة الاراء دی، په روح المعاني او روح البيان کي وايي چي اکثر مفسرين رح پر دې رايه دي چي چونکه روژې د مياشتي د روژې فرض سوې او مسلمانانو د دونده پرله پسې روژو سره عادت نه درلودی، نو دوئ ته تکليف و، نو خدای ﷻ په ابتداء کي د اسلام دوئ ته اختيار ورکړی چي که څه هم تاسي جوړ تاست او پر کور وي، نو که دوئ روژې نسي او که روژې خوري او فديه ورکوي وکان هذا الحكم في بدء الاسلام ثم نسخ بقوله تعالى ﴿فمن شهد منكم الشهر فليصمه﴾ ددې تائيد هغه حديث نبوي ﷺ کوي چي بخاري او مسلم او ابو داوُد او ترمذي او نسائي او طبراني رح د سلمه بن الاكوع رض څخه روايت کړی دی چي هغه وايي چي هغه وخت چي دا آيت نازل سو يعني وعلى الذين يطيقونه آه كان من شاء منا صام ومن شاء افطر ويفتدى فنسختها الآية التي بعدها فمن شهد منكم الشهر فليصمه، نو ترجمه د آيت داسي ده چي پر هغو کسانو چي طاقت د روژې لري يعني جوړ تيار مقيم هم دي پر هغو باندي ورکړه د طعام مسکين سته يعني که يې روژه وخوړله.

**پوه سه:** چي طعام مسکين د يوې ورځي خوراک د مسکين دی چي يوه کاسه اوربشي دي يا نيمه کاسه غنم دي، د هري روژې دغه فديه ده.

**درويش وايي:** چي پر قول ددغو مفسرينو پر قول حکم د فديه د شيخ فاني په نص صريح سره نسو ثابت، او سره ددې چي شيخ فاني ته قطر

روا دی جواب هو نه سو ثابت نو ځکه امام شافعي رحمه‌الله او امام مالک رحمه‌الله چي ددوئ دوو رایه هم داده چي دا آیت منسوخ دی او په ابتداء کي د اسلام وو کمامر، وايي چي شیخ فاني ته خو روژه خوړل رواه ده لقوله تعالی ﴿لایکلف نفسا الا وسعها﴾ لکن فدیه نسته باندي لان ایجاب الفدیة لابد له من دلیل.

**سوال:** چي سړی لمونځونه قضاء کړي ولي قضاء باندي سته یا سړی په عذر د مرض یا سفر روژه وخوري ولي قضاء باندي سته؟

**ځواب:** اول خو د هغو په قضاء کي نص قاطع موجود دی ومع قطع النظر عن ذالک قضاء په مثل معقول په قیاس هم ثابتیږي. او د شیخ فاني اطعام او فدیه خو مثل غیر معقول دی د هغه لپاره حتما نص صریح غواړي کما تقرر في اصول الفقه.

**پوه سه:** چي بعض مفسران رح وايي چي دا آیت په باره کي د شیخ فاني دی او منسوخ نه دی نو شیخ جلال الدین رحمه‌الله په آیت کي لا نافیه مقدر بولي یعني لا یطیقونه کما في قوله تعالی ﴿یبین الله لکم ان تضلوا﴾ ای لان لاتضلوا ، پر دې جواب مظهري سوال کړی دی بقوله تقدیر لا بعید فانه ضد ما هو الظاهر من الآیة حیث یجعل الایجاب سلبا انتهی

**درویش وايي:** چي دا سوال خو په آیت کي د یبین الله آه هم وارد دی حیث یجعل الایجاب سلبا ماهو جواب المظهري في الآیة الثانیة فهو الجواب في الآیة الاولی، وان قال المظهري رحمه‌الله ان في الآیة الثانیة ضرورة لان نصب البدل الغیر المعقول وهو الفدیة لایجوز بالرای بل لابدله من نص، واذا کان الآیة الاولی منسوخة فلیس لفدیة الشیخ الفاني نص في جمیع القرآن ولذا اجاز الشافعي رحمه‌الله للشیخ الفاني الافطار وادخله تحت عموم قوله تعالی ﴿لایکلف الله نفسا﴾ الآیة ولم یقل بالفدیة علیه کمامر عنقریب.

**درویش وایي:** چي وروسته مظهري رحمه الله دا توجیه کړي ده چي آیت مذکوره خو په ابتداء کي د اسلام و او منسوخ دی لکن حکم د فدیه د شیخ فاني په دلالة النص سره د هغه آیت ثابت دی ولي خدای جل جلاله په مذکوره آیت مطقینو خلګو ته اختیار ورکړی دی په منځ کي د روژي نیولو او د فدیه ورکولو، نو غیر مطیق چي شیخ فاني دی په طریق اولی فدیه ورته روا ده انتهی.

**درویش وایي:** چي دلالة النص د مذکور آیت خو به هلته معتبر وایي چي آیت مذکوره منسوخ نه وایي، او مظهري رحمه الله خو یې منسوخ بولي تامل. بعض مفسران وایي چي همزه د باب د افعال یعني اطاق یطیق لپاره د سلب دی نو یې معنا داده چي سلب د طاقت یې وي وهو الشیخ الفاني نحو قولهم اشکیته ای ازلت شکایته کما في الشافیة.

## فَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَهُوَ خَيْرٌ لَّهُ ۚ وَأَنْ تَصُومُوا خَيْرٌ لَّكُمْ

نو څوک چي تطوع وکړي یعني زیادت وکړي په فدیه کي نو دده لپاره خیر دی، او چي تاسي روژه ونسي یعني ای هغه کسانو چي تاسي طاقت د روژي لري خیرتر دی. قال المظهري رحمه الله علی منواله السابق هذا صریح بان المراد بالذین یطیقونه هم المطیقون وغرضه ان هذه الآیة منسوخة کان في ابتداء الاسلام من ان المطیق للصوم کان مخیرا بین الصوم والفدیة. ولیس الشیخ الفاني والمریض لان کون صومهم خیرا من الفطر منوع

**درویش وایي:** چي منع د مظهري رحمه الله ببخایه ده ولي چي مراد له تطوع څخه نفس تبرع ده په افعالو کي د خیر. ومنه الفدیة للشیخ الفاني یعني چي ډېره ورکړي وانما قلنا ذالک لیناسب الآیة لمقام بیان الصوم. نو دا سوال نه واردېږي چي مطلق تطوع په افعالو کي د خیر د مقام سره د بیان الصوم څه تعلق لري وجه الدفع انه یدخل في عمومها فدیة الشیخ ایضا یعني علی التقدیر الزیادة علی القدر المفروض، او مراد د ان تصوموا

څه داده چي شيخ فاني يا مريض كه څه هم فطر ورته روا دى لړ پر ځان تكليف وكړي او روژه ونسي نو هغه روژه ده ته خير ده له فطر او فديې، او يا معنا داده چي شيخ فاني كه په فديه كي تر قدر واجب بالابود وركړي يعين دوو مسكينانو ته جلاجلا پوره فديه وركړي، نو دا دده لپاره خير دى د يوه مسكين تر فديې ولاشک فيه، غرض زمادادى چي ماقبل آيت په باره كي د شيخ فاني دى او منسوخ نه دى كمامر تفصيله.

**درويش وايي**: چي قاضي بيضاوي كه څه هم اول تفسير د الذين يطيقونه آه مطابق د تفسير سره د روح المعاني او روح البيان او مظهري ح كړى دى يعني چي دا آيت منسوخ دى او دا حكم په ابتداء كي د اسلام و لكن وروسته قاضي نور قراءت په يطيقونه كي رانقل كړى دى، تر هغه وروسته يې دا خبره كړې ده وعلى هذا القراءت يحتمل الآية معنا ثانيا وهو الرخصة لمن يتبعه الصوم ويجهده وهما الشيوخ والعجائز في الافطار والفدية فيكون ثابتا يعني منسوخ نه دى، او بيضاوي ﷫ وايي وقد اول به القرائة المشهورة يعني يطيقونه اى يصومونه جهدهم وطاقتهم، يعني په ډېر تكليف او كوشش روژه نيولاى سي. وهذا هم الشيوخ والعجائز لانهم يصومونه بصرف غاية قدرتهم مع ضعفهم عن الصوم للهرم وفي حوامش البيضاوي فالآية نزلت في حق الشيخ الهرم الذي يطيق الصوم لكن مع الشدة والمشقة لان الوسع فوق الطاقة فالموسع اسم لمن كان قادرا على الشيئ مع سهولة بخلاف المطيق فانه اسم لمن كان قادرا على الشيئ مع الشدة والمشقة، ثم ان الشيخ الهرم اذا افطر فعليه الفدية، والحامل والمرضع اذا افطرتا فهل عليهما فدية، قال ابو حنيفة ﷫ لاتجب عليهما الفدية بل لاتجوز بل يجب عليهما القضاء لانهما كالمريض يمكن عليهما ايجاب القضاء بخلاف الحامل والمرضع فاذا وجب عليهما القضاء لايجب عليهما الفدية لئلا يلزم اجتماع البدلين ثم قال في الهامش فالآية ثابت غير منسوخ انتهى.

**درویش وایي**: چي دا رایه د بیضاوي رحمه الله نهایته دقیقه او په زړه پوري ده اود جلال الدین السیوطي رحمه الله د تقدیر سره د برابره او څوک چي همزه د افعال لپاره د سلب بولي د هغه سره هم برابره ده کمامر او د نورو قرانتو سره هم برابر بدای سي.

**درویش وایي**: چي بیضاوي د فمن تطوع معنا د دواړو تفسیرو ره کړې ده ای زاد في الفدیة یعني سواء کان المطیق کما في ابتداء الاسلام او الشیخ الفاني اذا کانت الایة في حقه، او بیا یې ویلي دي وان تصوموا ایها المطیقون علی التفسیر المشهور او المطوقون ای اذا جهدتم طاقتکم مع المشقة وصمتم خیر من الفدیة علی القدیر الشیخ الفاني.

**درویش وایي**: چي دا و تحقیق د آیت معرکة الآراء والعلم عندالله.

## إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿١٨٤﴾

**پوه سه**: چي مفعول د تعلمون محذوف دی، ای مافي الصوم من الفضیلة وبرائة الذمة، او جواب د "ان" هم محذوف دی ای لاخترتم الصوم علی الفدیة. او بعض مفسران رح وایي چي تعلمون منزل منزلة لازم دی ای ان کنتم من اهل العلم والتدبر علمتم ان الصوم خیرلکم من الافتداء فتدبر.

**مسئله**: په اشباه او نظائر کي وایي چي روژه نیول په سفر کي افضل ده تر خوړلو ولي چي روژه نیول عزیمت دی او خوړل یې رخصت دی، او عمل په عزیمت سره اولی تر عمل په رخصت سره یعني باتفاق الفقهاء رح.

**مسئله**: که مسافر پر خان ببرېدی، او یا یې نور ملګري درلوده چي په نقه ورسره شریکان وه او د ملګرو یې فطر خوښ و، نو بیا فطر افضل دی انتهی مع الزیادة.

**سوال**: په حدیث شریف کي راغلي دي ﴿لیس من البر الصیام في السفر﴾ وهو ینافي مافي الاشباه؟

**څواب**: دا حدیث محمول دی پر هغه مسافر چي روژه یې ضعیف کوي او ببره د هلاکت پر وي شرح المجمع لابن الملک رحمه الله.

**فائده:** د شهر رمضان روژې چې فرض سوي دي تر نبوت د علیه الصلوة والسلام ۱۵ پنځه لس کاله او تر هجرت درې ۳ کاله وروسته.
علیه الصلوة والسلام تر فرضیت له روژې څخه تر وفات پورې اته ۸ میاشتې د روژې نیولې دي، پنځه میاشتې یې ۲۹ نهه ویشت ورځې وې او باقي درې ۳۰ ورځې وې.

**پوه سه:** چې دېرش او نه ویشت یې په ثواب کې فرق نه سره لري، ولې چې پر مورد دغې میاشتې روژې فرض کړه سوي دي او عدد د روژو نه دی فرض.

**فائده:** که سړی یوه میاشت د روژې روژه ونسي، او شپږ روژې د شوال هم ورسره ونسي، گویا په ثواب کې د گرده کاله روژې یې ونیولې، ولې حسنةٌ زموږ په لس مثل د نو یوه میاشت د روژې که ۲۹ نهه ویشت وي او که دېرش وي، دېرش کېږي په ثواب کې. او شپږ ورځې د شوال شپېته ورځې کېږي، نو مجموع درې سوه شپېته ۳۶۰ ورځې سوې وهذا مقدار السنة القمرية كما في كتب الرياضي، فضيلة.

وورد في الحديث القدسي الصوم لي وانا اجزى به، دا حدیث په معلومه صیغه هم راغلی دی یعني زه یې جزاء او ثواب ورکوم چې مقدار د ثواب د روژې ماته معلوم دی نه ملکو ته، او په مجهوله صیغه هم راغلی دی چې معنا یې داده چې خدای ﷻ وایي چې زه جزاء الصوم یم یعني زما دیدار په جنت کې نه حورې او نه غلمان او قصور د جنت.
والسر في اضافة الله الصوم الى نفسه تعالى ان لاریاء في الصوم بل الصوم سر بين الله ﷻ وعبده.

**مسئله:** وروسته تر فرضیت د روژې که یو سړی بېله عذره د سفر او مرض او شیخ فاني والي روژه وخوړله که یې خوراک روا بولي خو کافر دی، او که یې روا نه باله مگر خوړل یې نو فاسق دی لکن قضاء به یې راوړي لوجوب التدارک بقدر الامکان، او بل دا چې د معذور په باره کې خدای ﷻ وایي

فعدة من ایام اخر، نو پر عامد خو په طریق اولی قضاء لازمه ده. او پر عامد مفطر باندي توبه او استغفار واجب دي بالاتفاق، او امام نخعي رحمه الله وايي چي سړی روژه عمدا بېله عذره وخوري په زر کاله روژه نیولو قضاء راوړه کېږي.

**درویش وايي:** چي د نخعي رحمه الله دغه قول احتمال لري چي تشدیداً دي ویلي وي، او یا به یې معنا دا وي چي په زر کاله روژه د هغې یوې روژې ثواب ته رسېږي والا فلا یقدر المقادیر الشرعیة بالرای والعقل فتدبر والله اعلم.

حافظ شیرازي رحمه الله

طفیل هستی عشق اند آدمی وپری / ارادتی بنما تا سعادتی ببری
چو مستعد نظر نیستی وصال مجوی / که جام جم ندهد سود گاه بی بصری
می صبوح وشکر خواب صبحدم تا چند / بعذر نیمشبی کوش وناله سحری
بکوش خواجه واز عشق بي نصیب مباش / که بنده لا نخرد کس بجرم بي هنری
دعا ی گوشه نشینان بلا بگرداند / چرا بگوشه چشمی بما نمی نگری
مرا از ین ظلمات انکه رهنمائی داد / دعا ئی نیمشبی کوش وناله سحری
به این همت حافظ امید هست / که باز کردی اسامر لیلی ولیلة القمری

# شَهْرُ رَمَضَانَ

مياشت د روژې.

**پوه سه:** چي "شهر رمضان" مبتداء ده خبر یې "الذي" انزل آه دی او یا خبر د مبتداء محذوفي دی ای ذالک شهر رمضان، او یا بدل دی د "من صیام" څخه په حذف د مضاف ای کتب علیکم الصیام صیام رمضان.

**فائده:** دا بدلیت هلته صحیح کېږي چي دا آیت متصل په ماقبل سره سي، یعني کتب علیکم الصیام یعني متصل په نزول کي موږ چي د مخه وویله چي صحیح هم دغه دی چي دا آیت ناسخ د ماقبل نه دی لکه چي مذهب د ډېرو مفسرانو و، وقد مر التفصیل والترجیح بمالامزید علیه.

**فائده**: "شهر" مشتق د "شهرة" څخه دی لان الشهور القمرية لها شهرة في الناس، او "رمضان" مشتق د "رمض" څخه دی په معنا د احتراق دی. ولي چي اول چي د قمري میاشتو نومان ایښوول کېدل دغه میاشت په ډېره گرمي کي وه. او د حضرت انس ﷺ څخه روایت چي رسول الله ﷺ وویل انما سمي رمضان لانه یرمض الذنوب ای یحترقها.

**فائده**: رمضان په سبب د علمیت او الف ونون زائدتان غیر منصرف دی، او د شهر اضافت ورمضان ته اضافت بیانیه ده. او بعض مفسران رح وایي چي مجموع شره رمضان علم دی. ویرد علیه ان الالف والنون انما هما في رمضان ولیس فیه العلمیة بل العلمیة في المجموع. واجیب ان فیه اجزاء حکم الکل علی الجزء، علی ماقیل في اسم ابی هریرة ﷺ فتامل غایة التامل. او هغه حدیث چي روح البیان ذکر کړی ی چي څوک دي نه وایي "جاء رمضان وذهب رمضان" بلکه شهر رمضان دي وایي لان رمضان اسم من اسمائه تعالی. انتهی.

**درویش وایي**: چي دا حدیث نه په مشهورو کتابو کي د حدیثو سته او نه مشهور مفسرانو رح ذکر کړی دی. والله اعلم

## الَّذِیٓ اُنۡزِلَ فِیۡهِ الۡقُرۡاٰنُ

هغه میاشت د روژې چي په هغې کي قرآن نازل سوی دی.

**پوښتنه**: قرآن مبارک خو په درویشت (۲۳) کاله په زمانه د نبوت کي پر علیه الصلوة والسلام سورةً سورةً منجما نازل سوی دی نه یوازي په میاشت کي د روژې؟

**ځواب**: مفسران رح د قرآن په یوه خوله تخمینا ددې سوال ځواب داسي درکوي (۱) چي ابتداء نزول د قرآن وعلیه السلام ته په لیلة القدر کي د روژې وه (۲) قرآن مجید په یوه شپه کي جملة واحدة د لو محفوظ څخه و اول آسمان ته راوړه سوی، او له هغه ځای څخه په درویشت (۲۳) کاله زمانه د نبوت وعلیه الصلوة والسلام ته نجما راغلی دی.

(۳) په حذف د مضاف دی وضمیر ته د فیه فالمعنی انزل في فضل هذا الشهر وفرضية صيامه القرآن، كما يقال انزل في الزكوة قرآن ای في فرضيتها، وانزل في الخمر القرآن ای في تحريمها القرآن وعلی هذا فقس.

**فائده:** قرآن ته چي قرآن وايي له دې سببه چي قرآن په لغت کي جمعي ته وايي او په قرآن مبارک کي هم حروف او آيتونه او سورتنو سره جمع سوي دي او دغه رنګه قصص او امر او نهي او وعد او وعيد پکښې جمع دی، او يا قرآن مشتق د قرائت څخه دی په معنا د مقروء او قرآن هم مقروء دی. لکن حضرت الامام الشافعي ﷺ قرآن په همزه نه وايي، او ده ويل چي قرآن نوم دی د کتاب د نبي ﷺ لکه تورات، انجيل او زبور چي نومان دي د کتب مقدسه وو.

**فائده:** روي احمد والطبراني رح من حديث واثلة بن الاسقع ﷺ چي انحضرت ﷺ وويل چي صحيفي د ابراهيم ﷺ په اوله شپه د روژې نازلي سوي دي، او تورات هغه وخت نازل سوی دی چي شپږ (۶) ورځي د روژې تېري سوي وې، او انجيل پر ديارلسمه (۱۳) د روژې نازل سوی دی، او قرآن مبارک پر څلور ويشتمه (۲۴) د روژې نازل سوی دی، ای ابتداء او من اللوح المحفوظ. قاضي ناصر الدين بيضاوي ﷺ وايي چي موصول سره د صله يعين "الذي انزل آه" يا خبر دی د مبتداء يعني "شهر رمضان" آه او يا يې صفت دی او خبر يې "فمن شهد منكم آه" دی وعلی الثاني فالفاء في الجزء لوصف المبتداء بما تضمن معنی الشرط ای الذي انزل فيه القرآن آه.

نو له دې څخه دا معلومه سوه چي انزال د قرآن په دې مياشت کي سبب دی د فرضيت د روژې ددې مياشتي. لما قالوا ان ترتب انكم علی الوصف الذي له صلوح العلية يشعر بعلية الوصف لذالك الحكم.

**مسئله:** په مياشت کي د روژې د بر د قرآن مبارک وظيفه کول تر نورو مياشتو افضل دی.

هُدًى لِّلنَّاسِ وَبَيِّنٰتٍ مِّنَ الْهُدٰى وَالْفُرْقَانِ ۚ

ای حال کون القرآن هدایت دی د خلگو لپاره، چونکه هدی مصدر دی نو حمل يې پر قران مبالغة دی او حال کون القرآن دلائل واضحات دی له هدایت ځخه، او فرقان دی په منځ کې د حق او د باطل او فرقان هم مصدر دی حمل يې پر قرآن مبالغة دی، نو حاصل دا چې هدی او بینات دواړه حال دي د قرآن ځخه

**سوال**: په دې آیت کې هدی دوه واره تکرار نه دی؟

**ځواب**: قاضي رح په ځواب کې ددې سوال داسې وايي او دده تابع مظهري هم اشاره ورته کړې ده، دا عبارت د بیضاوي دی "ای هو ای القرآن هدایة للناس باعجازه" یعني چې د قرآن بلکه د یوه سورت په مثل سره څوک راتګ نسي کولای، قال الله تعالی ﴿لئن اجتمعت الانس والجن علی ان یاتوا مثل هذا القرآن لایاتون بمثله. الآیة﴾ او په بل ځای کې د قرآن وايي ﴿وان کنتم في ریب مما نزلنا فاتوا بسورة من مثله. الآیة﴾ وقد مر تفصیله في الجلد الاول. او آیات واضحات دی قرآن مما یهدي الی الحق ویفرق بینه والباطل من الحکم والاحکام، حاصل د ځواب دا دی چې بیضاوي رحمه الله هدی اول يې په سبب د تنکیر چې لپاره د تعظیم دی پر داسې هدایت حمل کړی چې د هغه اندازه څوک نسي لګولای یعني الهدی بالاعجاز، او دوهم هدی يې پر عام هدایت چې شامل تولو کتب سماویه ته دی حمل کړی یعني اشتمال پر حکم او معارف الیه وو او احکام عملیه وو من الحلال والحرام والحدود والاحکام.

فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ ۖ

نو که څوک ستاسې ځخه حاضر سو ومیاشتې ته د روژې، نو روژه دې ونسي

**پوه سه**: چې امر د فلیصمه لپاره د وجوب دی بالاجماع.

**فائده**: دا امر مقید دی په دغو قیدو چې جوړ به وي، چې ناجوړی به روژې، مقیم به وي، چې مسافر به ووژي. او پاک به وي له حیض او نفاس

څخه، چي حائض او نفساء به ووزي، د مسافر او مريض ذكر به په ورورسته آيت كي راسي، او حائض او نفساء په احاديثو مباركه وو سره چي تواتري طريقې یې وحد ته د شهرت رسېږي ثابت دی وعليه انعقد الاجماع منذ زمان الصحابة ﷺ الى يومنا هذا ولا اختلاف للمذاهب الاربعة فيها.

**مسئله**: وحائض او نفساء ته روژه حرامه ده او كه یې دوئ وه هم نسي سره د ګناه د روژې قضاء پر لازم ده بخلاف الصلوة، وفيه خلاف الخوارج، ولي چي هغه قضاء د لمونځو هم پر واجب بولي.

**پوښتنه**: كه يو سړی مقيم و روژه یې نيوله خو وروسته په روژه كي مسافر سو هغه ته روژه خوړل روا دی يعني چي هغه نوري پاته روژې وخوري؟

**ځواب**: هو! ورته روا دي، لحديث جابر وعبدالله بن عباس ﷺ چي عليه السلام په كال كي د فتح مكې د روژې په مياشت كي ووتى فصام حتى بلغ كديد افطر (يعني وروسته روژه نيول یې پرېښول دا معنا نه ده چي نيولې روژه یې ماته كړه) وافطر الناس والمتاخر يعني الفطر ناسخ للاول وهو الصوم، وعليه انعقد الاجماع، وهو مذهب اكثر الصحابة والفقهاء، نعم روى عن علي ﷺ انه لايجوز له الفطر استدلالا بقوله تعالى ﴿فمن شهد منكم الشهر فليصمه﴾ اى كله لكن ليس ذالک معناه كما يشهدبه المذكور من الحديث.

**مسئله**: كه سړي روژه نيولې وه او په هغه ورځ كي مسافر سو ده ته د هغې ورځي روژه ورته ماتول روا نه دی په نيز د ابو حنيفه، ومالک، والشافعي رحمهم الله لانه شهد اول اليوم بدون العذر فليصمه وقال احمد وداوٗد رح يجوز له الفطر لذالک اليوم وتفصيل الدلائل في الفقه.

**مسئله**: كه فوق الذكر سړي هغه نيولې روژه ماته كړه په نيز د ابو حنيفه رحمه الله كه څه هم فطر نه دی ورته روا كفاره نسته بائدي لمكان الشبهة بقول احمد رحمه الله.

وَمَن كَانَ مَرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ

او که وي هغه څوک چي د روژې مياشت پر راغله ناجوړی يعني داسي ناجوړی چي روژې ضرر ورته کاوه کمامر سابقا او يا پر سفر و، نو پر هغه سري واجب ده په حساب د خوړلو روژو د نورو ورځو څخه يعني چي دی جوړ سي او يا مقيم سي روژې ونسي.

**پوه سه**: چي ومن كان مبتداء ده او په كان كي ضمير راجع دی ومن ته هغه اسم د كان دی او مريضا وعلى سفر يې خبر دی، او عدة په حذف د عليه جمله ده او من ايام موصوف دی او اخر يې صفت دی، او اخر جمع د آخر ده او جار ومجرور متعلق دی په عليه محذوف سره. او ټوله جمله خبر د من ده، وايراد الفاء في الخبر لتضمن الموصول معنى الشرط.

**پوه سه**: چي مظهري ﷫ د پخوانی رايي سره موافق وايي چي حكم د مريض او مسافر په دمخه آيتونو كي تېر سو نو هغه دمغه آيت يعني "وعلى الذين يطيقونه آه" موافق وايي منسوخ نه وايي بلكه د ايام معدودات څخه د روژې مياشت مراد وايي نو د مريض او مسافر د حكم د تكرار به څه فائده وايي.

**درويش وايي**: چي فائدة التكرار تاكيد الحكم بقضاء الصيام في عدة من ايام آخر لئلا يغفل المضطرون للمرض او السفر عن قضاء ايام الفطر في ايام اخر.

**مسئله**: كه مريض په هغه مرض كي مړ سي او يا مسافر په سفر كي مړ سي، نو پر دوئ هيڅ شی نسته لان الواجب عليهما صوم عدة من ايام اخر لم يدركا تلك العدة.

**مسئله**: كه مريض او يا مسافر لس روژې خوړلي وي او وروسته تر مياشتي د روژې دی دوې ورځي جوړ و او يا مقيم سو، او بيا مړ سو پر هغه پر هغه د دوو قضاء لازمه ده. نو حكم يې وفديه ته د هغو دوو ورځو نقل كبري وېس

**مسئله**: كه مسافر او يا مريض عدة من ايام اخر پيدا كړي يعني په اقامت كي او په صحت كي لكن سره د هغه د قضا رانه وړه او مړ سو حكم يې څه دى، امام ابو حنيفه رحمه الله وايي چي پر ورثه يې هيڅ شى نسته مگر هغه وخت سته چي مړي وصيت د فديې كړى وي او مال هم لري. نو وارث دى دده د روژو فديه وركړي د ثلث څخه دده د مال لا فيمازاد على الثلث الا برضا جميع الورثة وكذا الحكم في الصوم المنذور او صوم الكفارات.

**مسئله**: كه مړي وصيت نه و كړى او وارث تبرعا فديه وركړه، قال الامام محمد رحمه الله تجزئه ان شاء الله. او امام شافعي رحمه الله په قديم قول كي وايي چي ولي او وارث د مړي پر ځاى دي روژه ونسي كه فرضي روژه وي او كه نذر وي، او په قول جديد كي وايي چي اقرب ولي دي دده لخوا فديه وركوي وتفصيل المذاهب والدلالة في كتب الفقه المفصلة، او شروح الاحاديث المطولة. او مظهري رحمه الله تفصيل د دلائلو هم راوړى دى

يُرِيدُ اللَّهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ

**پوه سه**: چي دا جمله مستانفه ده لپاره د بيان د حكمت الهي په اداء كولو كي د فطر مريض او مسافر ته يعني اراده لري خداى پاک وتاسي مؤمنانو ته د اسانى او اراده نه لري د سختى.

**فائده**: ددې آيت څخه صراحتا دا معلومېږي چي فطر د مريض او مسافر رخصت دى لپاره د اسانى، او داسي نه ده چي فطر هرو مرو پر دوئ لازم دى، حتى كه چېري مسافر او مريض بيا هم روژه ونسي روا ده اجماعا، او په يو بل روايت كي د ابن عباس او د ابو هريره او د عروة او د ابن الزبير او د علي بن الحسين رضي الله عنه راغلي دي چي دوئ ومسافر ته روژه نيول روا نه بولي او كه يې ونيول قضاء پر لازمه ده لقوله تعالى ﴿فعدة من ايام اخر﴾ ولي چي په دې آيت كي خداى جل جلاله واجب پر ده عدة ايام اخر گرځولې ده لاغيره فمن صام في الحال فقد صام قبل وجوبه فلا يصح

**درویش وایي:** چي دا و روایت د مظهري رحمه الله، د تعجب خبره داده چي آیت ﴿ومن كان مریضا او علی سفر﴾ د مریض او مسافر دواړو په باره کي و نو په حدیث سره مظهري رحمه الله یوازي مسافر ولي ذکر کړی، ولي مریض که روژه ونسي خو قبل الوقت ده نو باید هغه نسي صحیح. او بل دا چي مظهري رحمه الله د صحت د روژې او مسافر او مریض ته د اجماع دعوه کړې ده نو سره د مخالفته د هولاء السادات الکرام رحمهم الله څرنګه اجماع صورت لري والله اعلم بمراد الامام المظهري رحمه الله.

**سوال:** شاید د مظهري رحمه الله دي اجماع د ماسوی د هولاء السادات رحمهم الله وي؟

**ځواب:** دې ته خو اجماع نه وایي لما تقرر في کتب الاصول ان الاجماع اتفاق مجتهدی الامة المرحومة في عصر واحد علی حکم ای شرعي سلمنا ذالک لکن لادلیل لهولاء السادات رحمهم الله في الآیة المذکورة یعني فعدة من ایام اخر. ولي چي په اصول الفقه کي وایي چي یو نفس وجوب العمل دی او بل وجوب الاداء د عمل ده نو تقدیم د عمل پر وجوب الاداء روا دی او پر نفس وجوب العمل نه دی روا، مثلا سبب د نفس وجوب الزکوة نصاب دی نو که څوک نصاب نه لري مګر چاته چي یو شی د ذهب او فضه څخه چي ورکوي په نیت د زکوة یې ورکوي یعني که وروسته زه مالک د نصاب سوم نو هغه خیراتي مال د زکوة په ځای کي ودرېږي داسي نه ده روا، او سبب د وجوب الاداء یې حولان الحول دی، نو که سړي نصاب لری او تر حولان الحول د مخه چاته روپی ورکوي په نیت د زکوة دا تقدیم روا دی، او په زکوة کي یې درېږي، نو په صیامو کي د روژې د میاشتي سبب د نفس او اصل وجوب خو شهود الشهر دی لکن سفر مانع د وجوب الاداء دی، نو مسافر چي روژه ونسي په میاشت کي د روژې نو تر اصل وجوب خو یې وروسته ونیول چي شهود الشهر و داسي خو روا ده، نعم تر وجوب الاداء یې د مخه ونیول نو دا تقدیم خو روا دی

كما في الزكوة وقد مر ذكره آنفاً. او د جمهوره مذهب هغه حديث دليل دی چي مسلم رحمه الله يې روايت كړی دی د ابی سعيد الخدري رضي الله عنه څخه قال ﴿غزونا مع رسول الله ﷺ لست عشر مضت من رمضان فمنا من صام ومنا من افطر فلم يعب الصائم المفطر ولا المفطر الصائم. نو كه دغه د سفر روژې قبل الوقت وايي او نه وايي صحيح كما قال البعض رح نو بايد مفطر پر صائم عيب ويلای چي ستا روژه قبل الوقت ده او نه ده صحيح

وَلِتُكْمِلُوا الْعِدَّةَ وَلِتُكَبِّرُوا اللَّهَ عَلَىٰ مَا هَدَاكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿۱۸۵﴾

**پوه سه:** چي "ولتكملوا العدة" معطوف دی پر "يريد بكم اليسر آه".

**فائده:** دا درې معطوفات علتونه دي د افعالو محذوفه وو چي ماقبل دلالت پر كوي، نو معنا د آيت داسي ده انما امرناكم بمراعات العدة بعد ايجاب صوم رمضان حيث قال الله تعالى "فعدة" اى فعليكم عدة ما افطرتم لتكملوا العدة اى عدة ايام الشهر بقضاء ما افطرتم. بسبب مرضكم او سفركم ولتكبر الله اى لتعظموا الله اى انما علمنا كم كيفية القضاء وهو المدلول بقوله تعالى "من ايام اخر" يعني مطلقا يعني پيوسته يې قضاء راوړئ او كه په تفريق سره قضاء راوړئ، ولې چي دا تخيير آساني له جانبه څخه د خدای ﷻ موجب د حمد د خدای ﷻ او د تعظيم د خدای ﷻ ده على ماهداكم، ما مصدريه دی اى على هدايتكم طريق الخروج عن عهدة التكليف ولعلكم تشكرون، اى انما رخصاكم الافطار بعلة المرض والسفر لكي تشكروا الله على هذه النعمة باللسان والقلب والاعضاء كما هو معنى الشكر لان مورده عام كما هو المشهور لكن متعلقه النعمة كما هو ههنا اى الرخصة بالافطار بسبب الاعذار.

**درويش وايي:** وقد اشار البيضاوي الى ماقلنا بقوله علل لفعل محذوف دل عليه ماسبق اى وشرع جملة ماذكر من امر الشاهد بصوم الشهر والمرخص بالقضاء ومراعات عدة ما افطر فيه والترخيص

لتکملوا العدة الی اخیرها علی سبیل اللف والنشر المرتب.

**درویش وایي:** چي په نیت سره عبادت د عادت څخه جلا کېږي ولي چي مطلق امساک د اکل او شرب وغیرهما. داسي هم کېدای سي چي سړی د ورځي اشتهاء ومذکوره شیانوته نه وي. او یا مریض وي.

**مسئله:** چونکه هره روژه عبادت علی حدة دی نو د هري روژې لپاره نیت غواړي بخلاف التراویح لان الکل کالصیام الواحدة فلا یلزم النیة في کل شفع.

**مسئله:** د شپې د روژې نیت خو ډېر ښه کار دی لکن نیت د روژې تر نصف النهار شرعي پوري روا دی دفعا للحرج.

**سوال:** په حدیث شریف کي راغلي دي چي روژه نسته مګر هغه چا لره چي د شپې نیت وکړي؟

**ځواب:** فقهاء رح دا حدیث محمول پر نفي د فضیلت بولي.

**پوښتنه:** د قضایي روژو او د کفاراتو او د نذر مطلق روژې هم دغه حکم دی یعني تر نصف نهاري پوري نیت یې صحیح دی؟

**ځواب:** لا دغسي حکم لکه د فرضي روژې یې نه دی، لان الایام لا تتعین لها من جهة الشارع فیجب التعین في النیة دفعا للمزاحمة بخلاف صوم شهر رمضان.

**فائده:** ورځ په شریعت کي د صبح صادق څخه شروع کېږي تر غروب الشمس پوري، نو نصف نهار شرعي پوخ ځابښت ته وایي.

**درویش وایي:** چي اشتراط د ضحوه کبری ددې لپاره دی اکثره حصه د روژې د ورځي سره د نیت سره سي.

**مسئله:** احتیاط په نیت کي د تراویح دادی چي نیت د سنة الوقت او یا نیت د قیام اللیل او یا نیت د تروابح وکړي، په تفسیر قرطبي او په روح البیان کي وایي چي تراویح سنت مؤکده دي واظب علیها الخلفاء الراشدون ﷺ ای وان کان الجماعة العامة فیها في خلافة عمر ﷺ وفي الحدیث قال رسول الله ﷺ ان الله فرض علیکم الصیام وسننت قیامه.

**پوښتنه**: امیر المؤمنین عمر ﷺ چي په میاشت کي د روژې مسلمانان پر یوه امام سره جمع کړه، نو یې داسي وویل نعمت البدعة هذه ای قیام اللیل نو د بدعت معنا څه ده، او سنت وبدعت منافات نه سره لري؟

**ځواب**: نبي ﷺ که څه هم درې شپې قیام اللیل کړې ده، په جماعت سره لکن دوام یې نه دی پر کړی، بلکه د قیام اللیل جماعت یې بېرته پرېښو، او نه یې خلگ پر یوه امام سره جمع کړي دي، نو د عمر ﷺ مراد دادی چي همېشه توب پر جماعت د قیام اللیل او خلگ پر یوه امام سره جمع کول بدعت دی لکـ دا بدعت حسنه دی او بدعت محموده دی.

**سوال**: په حدیث مبارک کي راغلي دي ﴿کل بدعة ضلالة وکل ضلالة في النار﴾ یعني کل اهل الضلالة في النار، نو بدعت محموده څرنگه امکان لري؟

**ځواب**: مراد له بدعت څخه په دغه حدیث کي هر هغه نوی عمل دی چي په شریعت مبارک کي هیڅ اصل نه لري، داسي نوی کار خو اتفاقا ضلالت دی مگر د تراویح خو اصل ثابت دی د علیه السلام څخه چي درې شپې د روژې قیا اللیل په جماعت کړي دي کما في البخاري ومسلم وغیره من الصحاح الستة.

**پوښتنه**: آنحضرت ﷺ دوام ولي نه پر کاوه؟

**ځواب**: د عدم دوام عذر هم په مذکوره حدیث کي علیه الصلوٰة والسلام پخپله بیان کړی دی چي زه بېرېږم چي صلوٰة اللیل په جماعت سره پر تاسي فرض نسي، نو چونکه په خلافت کي د عمر ﷺ دغه بېره له منځه ولاړه، نو ځکه عمر ﷺ صلوٰة اللیل په جماعت سره او د خلگو په دعوت ورکولو سره شروع کړې.

**فائده**: معلوم الحاله مخالفین چي د مذاهب اربعه وو د تقلید منکر دي، دوی وخپلو اتباعو ته داسي وایي چي فلانی عمل او کار بدعت دی، او په حدیث کي بدعة حسنه هیڅ نه مني، او اتباعو ته په خیال داسي ورکوي چي بدعت مرادف د کفر دی، ځکه د دوی اتباع بدعت کونکي که څه هم بدعت حسنه او محموده وي په نظر د گمراه او کافر گوري، کما هو المجرب في اتباع هولاء الفرق

**درویش وایي:** چي زه ددوئ له مشرانو څخه پوښتنه کوم، که هر بدعت که اصل لري او که یې نه لري ضلالت وي، نو دغه مشران د فرقه مذکوره تراویح ولي کوي، او څوک چي د یو صالح سره بیعت د مریدی وکړي دوئ یې ولي جائز نه بولي، او سره ددې چي دغه بیعت خم هم اصل ثابت لري کما في بیعت الرضوان في الحدیبیة مع رسول الله ﷺ کما في البخاري وغیر من الاصول الستة، او ددې ډلو مشرانو او تابعان ولي پر تسبیح متعارفو بائدي د خدای ﷻ ذکر کوي مع ان رسول الله ﷺ مارء التسابیح المتعارفة طول حیاته او که دوئ وایي چي دا خو اصل لري ولي چي علیه الصلو والسلام یوه ښځه ولیدل چي د خرما پر مندکو ذکر یې ذکر کاوه، علیه الصلوة والسلام منع نه کړه نو دوئ وایي چي د تسابیح متعارفه وو او د خرما د مندکو څه فرق دی، نو دغه معلوم الحاله ډلې مجبوره دي چي په بدعت حسنه او سئیه یې اقرار کوي، نو بیا که یې چېري داسي یو نوی عمل ولي دی چي هغه اصل په شریعت کي نه درلودی هغه کار ته دوئ ضلال وایي او په هغه فتوی کي اصحاب او اتباع د مذاهبو اربعه وو د دوئ سره اتفاق کوي، او داسي وي چي ددوئ د لامذهبي سره موافق وي هغه دین او شریعت بولي او چي مخالف وي که څه د یو مذهبه سره د مذاهبو اربعه وو سره موافق وي، هغه دوئ بدعت او ضلالت بولي بلکه بعض سرسختنه ډلي ددوئ یې شرک بولي، نو په دغه حکم کي مور اتباع د مذاهبو نه ددوئ موافقت کوو او ددوئ دغه مفکوره په سخته لهجه رد وو.

**یوه سه:** چي آنحضرت ﷺ به اصحابو کرامو ؓ ته د روژې د میاشتي زیری ورکاوه په دې ښائسته الفاظو سره "قد جائکم شهر مبارک قد جائکم شهر مبارک کتب الله علیکم صیامه تفتح فیه ابواب الجنة وتغلق فیه ابواب الجحیم وتغل فیه الشیاطین، وفیه لیلة هي خیر من الف شهر من حزم خیرها فقد حرم.

**مسئله:** یوه سه چي دغه حدیث اصل دی په مبارکي ورکولو د خلگو یو وبل ته په راتلو د بعضو میاشتو یا د اخترو سره لکه چي عادت دی د خلگو، قال

السخاوي رحمه الله في المقاصد الحسنة التهنية بالشهود والاعياد كما اعتادة الناس مشروع وهذا الحديث اصل له، په حديث مرفوع کي راغلي دي من حقوق الجار ان اصابه خير ههنا، او مصيبة غراه، او مرض عاده.

**درويش وايي**: چي مبارکي يو وبل ته سره ورکول فرق معلوم الحالة بدعت سيئة بولي.

**پوه سه**: چي مورږ مسلمانانو لره درې اختره دي عيد الافطار له روژې څخه وهو عيد الطبعية، والثاني عيد الموت على الايمان الكامل وهو عيد كبير، والثالث عيد تجلى انوار الله ﷻ وهو اكبر الاعياد، حديث صحيح رواه الترمذي، عن زيد بن خالد ﷺ که چا روژه مات ورکړی روژاتي ته كان له مثل اجره من غير ان ينقص من اجره شيئا.

**مسئله**: مستحب داده چي روژه دي د لمر لیوېدو سره متصل ماتوي او پېشلمی دي ناوخته کوي، سبب دادی د تعجيل الفطر چي د شپې روژه نيول بدعت سيئه دی نو روژاتي چي روژه تر غروب الشمس وځنډوي نو ګويا بعض اجزاء د شپې يې روژه ونيول. نقل دی چي حماد بن سلمه الامام الحافظ رحمه الله به په مياشت کي د روژې هر روژه مات پنځوس (۵۰) کسو ته روژه مات ورکاوه، او چي د اختر شپه به سوه يو يو جوت کالي به يې هر يوه ته ورکول او خلګو به دی د ابدالو څخه باله. وفي الحديث که چا وږی موړ کړی يعني که يې روژه وي او که يې روژې وي، او يا يې لغ سرې ته کالي ورکړه، او يا يې مسافر ته ځای ورکړی خدای ﷻ به هغه ته پناه ورکړي د سختيو څخه د ورځي د قيامت، د ابو سليمان داراني څخه منقوله ده دی وايي چي زه د ورځي روژه ونسم او په حلاله ګوله يې ماته کړم ماته احب ده تر قيام الليل وصوم النهار چي په حرامه ګوله يې ماته کړم، او دی وايي چي حرامه ده پر هغه زړه چي په نس کي يې حرامه ګوله وي چي لمر د توحيد الهي دي پر هغه زړه طلوع وکړي ولا يسما في وقت الصوم، نو پر صائم لازمه ده چي د حرام خوړلو څخه دي جداً پرهېز کوي.

**درويش وايي:** چي په تاريخ کي د عبدالله ابن المبارک چي د امام اعظم شاګرد و، او امام بخاري په صحيح بخاري کي دده روايتونه هم راوړي دي، راغلي دي چي ده لوی تجارت کاوه او پر طالبانو د علم او فقراوُ د کاله يو لک درهم مصرفول، او طالبانو ته به يې ويل چي تاسو طلب الدنيا مه کوئ بلکه په طلب د علم کي سرګرمه کوشش کوئ د دنيا او نفقې غم پر ما دی، او که تاسي نه وايي ما به هيڅ تجارت نه وايي کولای، او په ادنی مايکفی به مي ګزاره کولايي رحمه الله تعالی.

**يوه سه:** چي امام مظهري رحمه الله په نقل د احاديثو صحيحه وو د روژې د مياشتي او د روژې نيولو په باره کي يو مستقل فصل راوړی دی، وقال ﴿عن ابي هريرة رضي الله عنه عن النبي ﷺ قال اذا دخل رمضان صفدت الشياطين ومردة الجن وغلقت ابواب النار فلم يفتح منها باب وفتحت ابواب الجنة فلم يغلق منها باب وينادي مناد يا باغي الخير اقبل ويا باغي الشر اقصر ولله عتقاء من النار وذالک کل ليلة، متفق عليه﴾

**ترجمه:** يعني چي د روژې مياشت داخله سي، نو شيطانان د وسپونو په قيد کي و تړل سي، او سر کښه د پېرانانو، او وتړل سي دروازې د دوزخ نو يوه دروازه يې نه وي خلاصه، او خلاصي سي دروازې د جنت نو نه وي تړلې د دروازو د جنت څخه يوه هم، او نعره کونکې يعني ملکه نعرې وهي چي ای طالبه د خير پر عبادت مخ راواړوه، او اې طالبه د شر د ګنهو څخه خان وساته، او خدای ﷻ لره ازادونکې بندګان سته له اور څخه او دا هم هره شپه، رواه البخاري ومسلم رح باختصار، والمذکور رواية الترمذي وابن ماجه او احمد، او د ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي آنحضرت ﷺ وفرمايله ﴿من صام رمضان ايماناً واحتساباً غفرله ماتقدم من ذنبه، ومن قام رمضان ايمانا و احتسابا غفرله ماتقدم من ذنبه، ومن قام ليلة القدر ايمانا و احتسابا غفرله ماتقدم من ذنبه، متفق عليه﴾

**ترجمه:** که چا روژه ونیول د میاشتي د روژې چي باعثه يې ایمان و، او سترګي د ثواب يې وخدای ﷻ ته درلودې ده ته به وروبخښل سي هغه د مخه ګنهونه، او که چا قیام د شپو د روژې وکړی (چي اوس يې تراویح بولي) د ایمان او احتساب له کبله و هغه ته به وروبخښل سي دمخه ګنهونه، او که چا قیام د شب قدر د شپې وکړی د ایمان او احتساب له کبله وده ته به وبخښل سي مخکني ګنهونه.

**درویش وایي:** چي دا روایت په فضائلو کي د روژې یوه په زړه پوري حدیث دی چي پکښي درې سببه د مغفرت د ګنهو جمع دي. د سلیمان فارسي ﷺ څخه روایت دی چي رسول کریم ﷺ په اخره ورځ کي د برات د میاشتي داسي وویل چي اې خلګو یعني مؤمنانو پر تاسي راغلله یوه لویه میاشت چي مبارکه میاشت ده. او داسي میاشت ده چي په هغه کي شب قدر سته چي هغه خیر ده تر زرو میاشتو، یعني د هغې شپې عبادت تر زرو میاشتو عبادت بهتر او ښه دی یعني په دې زرو میاشتو کي د روژې میاشت نه وي، والا یلزم تفضیل الشيئ علی نفسه بکرات کما لایخفی، او خدای ﷻ ګرځولي دي روژې ددې میاشتي فرض یعني پر مسلمانانو باندي، او د شپې قیامه چي اوس د تراویح په نامه یادېږي نفل پر تاسي. او که څوک نژدېکت وکړي یعني وخدای ﷻ ته په یو عمل سره د اعمالو د خیر یعني نفلي وي که مالي او بدني او که لساني. دومره ثواب يې دی لکه په بله میاشت کي چي فرضي عبادت او د خیر کار وکړي. او که څوک عبادت وکړي فرضي په دغه میاشت کي ثواب يې دونده دی لکه چي سړی يې په ماسوا کي ددې میاشتي اویا (۷۰) فرضي هغه عبادات وکړي او دا میاشت د صبر ده. یعني د اکل او شرب او جماع څخه په ورځ کي، او د صبر ثواب جنت دی، او دا میاشت د مرستي او د کومک ده یو له بله سره، او داسي میاشت ده چي رزق پکښي بالا کېږي یعني د صائمانو مؤمنانو او که چا په دې میاشت کي روژه مات ورکړی وروژیاتي ته. هغه روژه مات سبب د

بخښنې د ګنهو دده ګرځي، او د ازادولو د رقبې دده له اوره څخه، او دې سړي ته خدای ﷻ دونده ثوابونه ورکوي لکه د هغه روژیاتي بېلـه دې چې د ثواب د روژیاتي شی کم کړي، صحابه کرامو ﷺ وویل چې هر څوک له موږ څخه خو دونده قدرت نه لري چې بل روژیاتي ته روژه مات ورکړي. علیه السلام وویل دا ثواب خدای ﷻ هغه چاته هم ورکوي چې روژیاتي ته یو غړپ شیدې ورکړي او یا خورما ورکړي، او یا یو غړپ اوبه ورکړي، او که چا روژیاتي په ډوډۍ موړ کړی خدای ﷻ به هغه ته اوبه ورکړي زما له حوضه څخه یعني د حوض کوثر څخه، داسې اوبه چې بیا به نسي تږی تر څو چې جنت ته ورځي، او داسې میاشت ده چې په اولو لسو شپو کې او ورځو کې رحمتونه د خدای ﷻ پر مسلمانانو نازلېږي، او د منځ په لسیزه کې د خدای ﷻ له خوا څخه مغفرت د ګنهو کېږي ومسلمانانو ته او په اخرو شپو او ورځو کې ازادي له اوره څخه ورکول کېږي، نو په دې میاشتې کې څلور خویه تاسې ډېر کوئ.

(۱) شهادة ان لا اله الا الله

(۲) استغفار او طلب د بخښنې.

(۳) د جنت خواست کوئ له خدای ﷻ څخه.

(۴) پناه غواړئ له خدای ﷻ له اوره څخه، رواه البغوي ﷺ.

**درویش وایي**: چې ما بعض اختصار په دې حدیث او بعض ترجمې د الفاظو د حدیث کې کړې دی، نو په اخر کې دا وایم او کما قال رسول الله ﷺ وفي الحديث المتفق عليه عن ابي هريره ﷺ قال قال رسول الله ﷺ كل عمل ابن آدم تضاعف الحسنات بعشر امثالها الى سبعمائة ضعف، قا الله تعالى الا الصوم فانه لي وانا اجزي به (ژباړه عمل د ابن آدم مضاعف کېږي حسنات په لس مثله د هغو تر اوه سوه (۷۰۰) ضعفه پورې خدای ﷻ وایي مګر نه روژه ولې چې روژه زما لپاره ده او زه جزاء د روژې ورکوم یعني ملکو ته یې نه سپارم ولې چې د روژې د ثواب قدر نه

دی ورمعلوم، دا هلته که صیغه د اجزی معلومه وویل سي، وقد مر هذا الحدیث بترجمته من قبل ایضا یدع طعامه وشرابه وشهوته من اجلي، روژاتي پرې اینبی دی خوراک او څښاک او جماع زما له ببري.

**پوه سه:** چي دا جمله مستانفه بیان د علت ده انا اجزی به ده

للصائم فرحتان فرحة عند افطاره وفرحة عند لقاء ربه (او روژیاتي لره دوې خوشهالیاني دي یوه خوشهالي په وخت کي د افطار ده او بله خوشهالي په وخت کي د ملاقات ده خدای ﷻ ده یعني چي ثوابونه د روژې د خدای ﷻ له خوا وویني) ولخلوف فم الصائم اطیب عند الله من ریح المسک (او متغیر بوی د خولې د روژیاتي ډېر خوش بویه دی تر بوی د مشکو) الصوم جنة (روژه سپر دی له ګنهو څخه) فاذا کان یوم صوم احدکم فلا یرفث ولا یصخب فان سابه احد او قاتله فلیقل اني امرء صائم (نو چي وي روژه د یوه ستاسي څخه نو دي فحش نه وایي او نه دی لوی لوی اوازونه کاږي. او که یو چا ده ته بنګنځل وکړه او یا یې جنګ ورسره کاوه نو دي دا ووایي و هغه سړي ته چي زما روژه ده نو زه ستا د بنکنځولو ځواب نه درکوم او نه ستا سره جنګ کوم، او یا دي پخپل زړه دا خبره ورتېره کړي چي ستا خو روژه ده باید ته نه چاته بنکنځل وکړې او نه جنګ وکړې، وروی عن ابی هریرة ﷺ عن النبي ﷺ انه قال یغفر لامته في آخر لیلة من رمضان قیل یا رسول الله هي لیلة القدر قال لا ولکن العامل انما یوفی اجره اذا قضی عمله.

**ترجمه:** علیه الصلوة والسلام وویله چي زما امت ته بخښنه کېږي په اخیره شپه کي د روژې، چا پوښتنه ځندي وکړه یا رسول الله ﷺ دغه شپه نو د شب قدر ده؟ علیه الصلوة والسلام ورته وویل یا لکن سبب د بخښي دادی چي یو څوک چي د چا کار کوي یعني د چا مزدور وي هغه مزدور ته کامله مزدوري هغه وخت ورکول کېږي چي هغه کار پای ته ورسوي، رواه احمد بن حنبل ﷫.

**درويش وايي:** چي اې خدای ﷻ ته وما عاصي ته ثواب او مزدوري قبل الوقت يعني په دنيا کي راکړې ده چي ستا د نعمتونو حساب نه په ژبه او نه په قلم د عاصي کېدای سي ﴿وان تعدوا نعمة الله لا تحصوها﴾ پر ما عاصي ستا عبادت په دې لازم دی چي ته رب يې زما او زه بنده يم ستا، پاکه خدايه که تا جنتونه فرضا نه وايي پيدا کړي، نو خو طمع د جنت به هم نه وايي او که دي دوږخونه فرضا نه وايي پيدا کړي نو خو بېره د دوږخ به هم نه وايي، ليکن بيا هم که تا پر عاصي بعض فرائض مقرر کړي وايي او د بعضو کارو څخه دي منع کړې وايي، نو د بندگی په سبب مراعات د اوامرو ستا او د منهياتو پر معاصي لازم به وايي په مراعات د ربوبيت او استحقاق ذاتي ستا ﷻ لکن که ته په ورځ د اخرت ماته ثواب راکړې او گنهونه مي راوبخښې ستا عين احسان دی. اللهم اغفرلي ذنوبي کلها واغفر لوالدي وارحمهما کما ربياني صغيرا. په حديث شريف کي راغلي دي روايت يې بيهقي کړی دی په شعب الايمان کي د عبدالله بن عمر ﷺ څخه داسي راغلي دي چي رسول کريم ﷺ وويل چي روژې او قرآن شفاعت کوي د بنده، روژې وايي اې خدايه دغه بنده موږ منع کړی و له طعام او شهواتو څخه د ورځي، موږ ته اجازه د شفاعت دده وکړې، او قرآن وايي چي اې ربه ما منع کړی و دغه سړی له خوبه په شپه کي يعني چي زما تلاوت به يې کاوه د تهجد په لمانځه کي ماته اجازه د شفاعت وکړه دده په باره کي، عليه الصلوة والسلام وايي فيشفعان.

**پوه سه:** چي په حديث شريف کي راغلي دي چي يو اعرابي يعني صحرايي سړی وعليه الصلوة والسلام ته راغلی او پوښتنه يې وکړه، اقريب ربنا فنناجيه ام بعيد فنناديه فسکت عنه فانزل الله تعالی.

آيا نژدې دی خدای ﷻ زموږ چي موږ کرار خبري ورسره کوو، او که لېري دی نو موږ به ناري پسي وهو، نو رسول الله ﷺ يو گړی ساکت سو فنزل هذه الآية.

## وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي عَنِّي فَإِنِّي قَرِيبٌ

يعني چې ستا څخه پوښتنه وکړي بندګان زما زما په باره کې نو بېشکه تحقيق زه نژدې يم يعني ورته ووايې چې خداى ﷻ نژدې دى، يعني په قرب علمي نه په قرب مكاني لانه تعالى منزه عن المكان.

## أُجِيبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ

او زه قبلوم دعاء د هغه چا چې ماته خواست وکړي.

**پوه سه**: چې په قرائت ددې آيت کې قراء سره مخالف دي، قاريان د مدينې منورې يې اکثره يعني اکثر ددوئ په اثبات د يا وايي په دوارو ځايو کې په حال کې د وصل يعني الداعي وعاني، او باقي قاريان يې په حذف د ياء وايي وصلا ووقفا واكثر نسخ القرآن الكريم على هذه القرائة.

**پوښتنه**: ډېر مسلمانان وخداى ﷻ ته خواستونه په امور دنيويه کوي لکن اجابت يې نه کېږي، او خداى ﷻ په دې آيت کې وعده د اجابت کړې ده؟

**ځواب**: بعض مفسران رح وايي چې اجابت لره د دعاء شرائط سته. نو په داعي کې به هغه شرطونه نه وي موجود، مثلا يو شرط د اجابت لقمه حلال ده وهذا الشرط في هذا الزمان اعز من مخ البعوض، او بل شرط يې حضور القلب والاخلاص دى وهذا الشرط ايضا مفقود في كثير من الناس. بلكه په اوسنى زمانه کې دعاګانې په قلب لاهي غافل سره کېږي او بل شرط يې تيقن پر اجابت دى ولې خداى ﷻ پر هر څه قادر دى، مګر ډېر خلګ په قلب شاک سره دعاګانې کوي، او بعض مفسران رح وايي چې دا آيت خو مطلق دى او مطلق محمول پر مقيد وي چې په يوه واقعه کې وي كما هو المقرر في اصول الفقه. او په بل آيت کې خداى ﷻ داسې ويلي دي ﴿بل اياه تدعون فيكشف ماتدعون اليه ان شاء﴾ نو دا آيت مطلق چې محمول پر دې آيت مقيد سي، نو ددې آيت معنا داده ﴿اجيب

دعوة الداعي ان شئت﴾ یعني اجابت مقید په مشیت سره د خدای ﷻ دی او بعض مفسرین رحمهم الله وایي چې اجابت د دعاء یوازي دانه دی چې خدای ﷻ به عین مسئول ورکوي، بعض وخت د داعي تر مسئول بل شی سائل ته خیر وي په علم کي د خدای ﷻ نو خدای ﷻ وداعي ته هغه خیر تر مسئول ورکړي، او د سائل دا گمان وي چې زما مسئول چې خدای ﷻ ماته نه کړی را نو زما خواست یې نه دی قبول کړی، او کېدای سي چې داعي ته یو شر او ضرر متوجه وي، چې دفعه د هغه تر مسئول دده خیر وي داعي ته، نو خدای ﷻ په عوض د مسئول کي دفعه د هغه شر د داعي څخه وکړي او داعي وایي چې زما خواست نه سو قبول، او یا د داعي په دعاء کي قطع د وسیله رحمي وي لکه د یو سړي چې مثلا له ورروره څخه خوا بده وي، دی داسي خواست وکړي چې خدایه زما ورور په سترگو ړوند کړې، او یا د سائل مسئول یا محال ذاتي وي لکه چې وایي خدایه ما ملکه وگرځوې، او یا محال عادي وي لکه یو غریب سړی چې ووایي اې خدایه ماته د امریکا بادشاهي راکړې مثلا. او دا هم اجابت د دعاء دی او داعي ددې اجابت څخه غافل دی چې په بعضو روایاتو کي راغلي دي چې بعض بندگان چې په ورځ د قیامت وخپلو جنتونو ته ورسي، په جنتونو کي زائد تر اعمالو صالحه وو خپل چې دوئ په دنیا کي کړي وه خایونه او قصرونه ووینې، نو خدای ﷻ ته التجاء وکړي چې دغه زائد قصرونه او مانۍ زموږ په جنتونو کي له څه درکه دي رب ﷻ ورته ووایي چې دا ځایونه له دې درکه دي چې تاسي به ماته په دنیا کي خواستونه کول او ما به تاسي ته ستاسي مسئول نه درکاوه. دا قصرونه د هغو خواستو عوض دی، نو دوئ به ووایي چې دونده لوی عوض په دار جاوداني زموږ خواستونو لره وو نو کاشکي زموږ غوښتي خلگو په دنیا کي خلگو په غچیو پرې کولای، او موږ ته خواستونه ددفع کولای او نه قبولولای او دا عوضونه دي راکولای، الی غیر ذالک من بیانات المفسرین رح

**فوائد شتی**: پوه سه! چې څوک چې په یوه بلا مبتلاء سي او کشف د هغې بلا او دفعه له خدایه نه غواړي حرام دی په شریعت او طریقت کې لانه کالمقاومة مع الله والتحمل لمشاقه.

قال المولوي المعنوي جلال الدين الرومي رحمه الله

چون فرود آید بلا بی دافعی — جز تضرع هیچ نبود دافعی

**فائده**: لپاره د دفعې د بلا او یا د مرض وغیرهما د عوام الناس لپاره او د مبتدیانو لپاره چاره نسته چې یو سبب که دوا وي او که دعاء وي برابر وي او هر چه نیت د اهل سلوک دی د هغو احوال تر ضبط لاندې نه راځي په حدیث مبارک کې راغلي دي چې نمرود چې د حضرت ابراهیم علیه السلام لاسونه تړلي وه او د منجنیق په ذریعه یې اورته ور وغورځاوه. جبرئیل علیه السلام په هواء کې اور ته نارسیده راغلی او ابراهیم علیه السلام ته یې وویل هل لک من حاجة فقال الخلیل علیه السلام اما الیک فلا، فقال جبرئیل علیه السلام أسئال الله الخلاص، فقال الخلیل علیه السلام حسبي من سؤالي علمه بحالي، ولهذا التوکل للخلیل علیه السلام وقال الله تعالی ﴿وقلنا یا نار کوني بردا وسلاما علی ابراهیم الآیة﴾

**فائده**: بعض مفسرین رح وایي چې قضاء الحاجه غیر دی د اجابت الدعوت څخه، ولې چې اجابت الدعوت دادی چې بنده ووایي یا الله خدای ﷻ ورته ووایي لبیک عبدي او دا معنا د اجیب دعوة الداعي ده. او وروسته چې بنده ووایي چې افعل کذا د هغه کار کول د خدای ﷻ د خوا څخه قضاء الحاجة بولي، اول چونکه موعود دی نو لا محاله موجود دی، او دوهم ومشیت ته د خدای ﷻ موکول دی.

**فائده**: قضاء الحاجة په قول د رسول کریم ﷺ حصر په ورکړې کې د مسول نه دی، قال رسول الله ﷺ دعوة المسلم لا یرد الا لاحدی ثلث اما ان یدعوا باثم لکه یو سړی چې ووایي چې ماته د فلانی ښځې پر زناء باندې قدرت راکړې، او قطیعة رحم مثال یې د مخه تیر سو، واما ان یدخرله في الآخرة واما ان یصرف عنه السوء عنه بقدر مادعا، او ددې تحقیق دمخه تیر سو.

**فائده**: قال العلماء الدعاء مفتاح باب السماء، واسنانه لقمة الحلال.
قال رسول الله ﷺ الرجل يطيل السفر يمد يديه الى السماء اشعث اغبر يقول يا رب يا رب ومطعمه حرام وشربه حرام وملبسه حرام، وغذى بالحرام فاني يستجاب لذالک.

**فائده**: بعض مفسرين رحمهم الله وايي چي اجابت د دعاء د بنده مقيد دی په اجابت پوري د بنده دعوت لره د خداى ﷻ ولهذا قال الله تعالى ﴿فليستجيبوا لي وليؤمنوا بي آه﴾

**فائده**: د تاريخ له پانو څخه صاحب د روح البيان نقل کړی دی چي په کوفه کي د ښار يو څو کسان مستجاب الدعوات د خداى ﷻ دوستان وه د ابن مروان ظالم په حکومت کي چي ابن مروان به هر والي و کوفې ته واستاوه او هغه به په ظلم لاس پوري کړی نو هغو د خداى ﷻ دوستانو به ښرا ورته وکړه په لږ زمانه کي خداى ﷻ هلاک کړی. نو اخير الامر ابن مروان ظالم اعظم حجاج بن يوسف والي د کوفې مقرر کړی او د هغو کسانو مستجاب الدعوات په حال يې هم خبر کړی، نو حجاج بن يوسف کوفې ته ورغلی اولين کار يې دا وکړی چي بعض مخور کسان چي په هغو کي دغه مستجاب الدعوات کسان هم وه. نو حجاج ظالم يو د حرام خواړه ورته پاخه کړي وه. نو مېلمنو چي هغه حرام خواړه وخوړل. نو حجاج بن يوسف وويل او ابن مراون يې خبر هم کړی چي زه په امن کي سوم ددغو مستجاب الدعوات کسانو او ددوئ ښرا خداى پاک نه قبلوي ولي چي ددوئ په نسو کي حرام خواړه ولوېدل او حجاج خپل حکومت ببغمه پر کاوه او ددوئ ښبرا هم نه قبولېدل آه.

**فائده**: په لفظ کي د اني قريب چي معنا يې قرب مکاني ده استعاره لپاره د قرب علمي دی او دې استعارې ته چونکه د قريب لفظ مشتق دی په اصطلاح د علم بيان استعاره تبعيه تمثيليه وايي، راجع علم البيان في معرفة معنا هذه الاستعارة.

**پوښتنه:** ولي قرب څخه خپل حقيقي معنا نه ده مراد؟

**ځواب:** قرب مکاني پر خداى ﷻ ممتنع دی کما تقرر في علم العقائد وقد اشرنا اليه من قبل.

**پوښتنه:** کتابونه د علم کلام د چالاس رسيږي يو داسي عام الفهم دليل پر امتناع د قرب مکاني پر خداى پاک هم سته؟

**ځواب:** هو سته.

تاريخ اسلامي وايي چي يوه ورځ په مکه مکرمه کي يوه متمول سړي د ډېرو علماؤ ضيافت کړی وو چي د هغو په جمله کي امام الحرمين ابو المعالي عبد الملک هم موجود و. خير د علماؤ د مجلس جريان ودې مسئلې ته ورسېدی چي خداى ﷻ لره ولي مکان په معنا حقيقي سره نسته، امام الحرمين ورته وويل چي ددې مسئلې دليل دادی چي يونس ؑ چي په نس کي د ماهي خداى ﷻ بندي کړی و چي قصه يې وهر چا ته معلومه ده هغه په نس کي د ماهي دا ذکر کاوه ﴿لا اله الا انت سبحانک اني کنت من الظالمين﴾ او رسول الله ﷺ په ليلة المعراج کي د خداى ﷻ حمد په دې الفاظو وو وايه ﴿لا احصی ثنا عليک انت کما اثنيت علی نفسک﴾ علماء حاضرين د مجلس ودې ځواب ته د امام الحرمين حيران پاته سوه چي ددغو دوو خبرو څخه څرنگه نفي د مکان په معنا حقيقي د خداى ﷻ معلومېږي، نو د امام الحرمين څخه يې توجيه ددې ځواب وغوښتله. امام الحرمين ورته وويل چي په دروازه کي يو سړی مسکين دی چي زر درهمه پور پر باندي دی، نو موږ او تاسو په اجتماعي توگه ددغه سړي د پور اجراء ور وکړو نو زه به توضيح د دليل مذکوره درته وکړم. صاحب الضيافة ورته وويل چي د پور اجراء يې زه وايم خو ته توضيح د دليل مذکوره موږ ته وکړه. هغه وو چي صاحب الضيافة زر درهمه وه امام الحرمين ته ورکړه او هغه دا زر درهمه وروړه وه صاحب الحاجة پور وړي ته او بېرته راغلی او توضيح د دليل مذکوره يې په دې الفاظو وکړه چي ټولو علماء او اهل لسان

عربي په دې پوهېږي چې انت خطاب دی وحاضر ته، نو كه خدای ﷻ لره مکان په معنا حقيقي وايي نو خو دا مکان به يا په عالم علوي کي وايي نو يونس ﷺ څرنګه خطاب په انت خدای ﷻ لره کاوه خدای ﷻ خو از روی مکان علوي له يونس ﷻ څخه غائب و، او كه خدای ﷻ په مكان سفل کي وايي نو آنحضرت ﷺ څرنګه فوق السموات السبع خطاب د "انت" وخدای ﷻ ته كاوه ولي خدای پاک په مكان سفلى کي د عليه السلام څخه غائب و، نو دا يقيني ده چي خدای ﷻ مکان په معنا حقيقي خدای ﷻ لره نشته بلکه لفظ د قريب په معنا مجازي دی چي حضور علمي دی، ټوله علماء او اهل مجلس ودې خواب ته د امام الحرمين رحمه الله هم قانع سوه او هم د تعجب په درياب کي غرق سوه.

**درويش وايي:** لله دره ما ادق نظره

تصوفي ځواب د "اجيب دعوة الداعي اذا دعاني" وقد مر ذكر السوال وتفصيل الجواب لازمه ده پر دعاء کونکي باندي چي خپل نفس او زړه پاک ولري له بدو اخلاقو څخه لانها قاطعات لطريق الدعاء، او زړه دې صاف ساتي او په اخلاق حسنه وو دې منور ولري فان القربات ترفع الدعوات، قال الله ﷻ اليه يصعد الكلم الطيب والعمل الصالح يرفعه. او داغه رنګه دي روح د التفات څخه وغير الله ته پاک لري ويكون دعائه لطلب الحق من الحق ليستجيب دعائه ولا يخيب رجائه. كما ورد في الحديث القدسي الا من طلبني وجدني ومن طلب غيري لم يجدني وان الله وعد الاجابة على طلبه الدعاء، ولذا قال ﴿اجيب دعوة الداعي اذا دعاني﴾ اى اذا طلبني.

سعدي شيرازي رحمه الله

خلاف طريقت بود كه اولياء تمنا كند از خدا جز خدا

فمن اخل ببعض هذه الشروط لم يلزمه الاجابة كمن يخل بركن من اركان الصلوة لم يلزمه القبول، كذا في روح البيان

**درویش وايي:** چي مؤمن بايد رضاء طلب د خدای ﷻ وي په عباداتو او اذکارو سره، څرنګه چي خدای ﷻ راضي وي د مؤمن څخه او په ضروریاتو د مؤمن په دنيا او په اخرت کي خدای ﷻ ښه خبر دی تر مؤمن، نو مؤمن بايد مطمئن ووسي په وخت کي د دعاء هر رنګه چي خدای ﷻ وکړه د مؤمن داعي بايد دا ايمان او اذعان وي چي دغه زما لپاره خير ده عند الله ﷻ.

**پوه سه:** چي د خدای ﷻ داسي بندګان سته چي په اشاره له خدايه شی بېله تصريح په مطلوب سره غواړي، خدای ﷻ هغه مطلوب ده ورکوي

**حکايت:** راوي وايي چي يو کال په بغداد کي سخته قحط سالي وه د باران، نو امير الوقت اعلان د استسقاء وکړی په ښار کي، نو يوه ورځ امير الوقت سره د رعيتو صحراء ته ووتل حتی الممکن يې شرائط او د استسقاء اداب هم پر ځای کړه، هيڅ باران يا وريخ نه سوه معلومه او بيا دويم ورځ او بيا دريم ورځ يې هم استسقاء وکړه، خو خلګ نااميده سوه ولي چي هيڅ اثار د باران يې نه وليدل، لکن په بغداد کي يو د خدای ﷻ دوست و چي ټولو د بغداد خلګو په ښه سرېي توب منلی و، او هره ورځ به په استسقاء کي په هغه ولي الله پسي خلګو کتله او هغه به يې په استسقاء کي نه ليدی، پسله دري ورځي استسقاء څخه خلګو و امير الوقت ته وويل چي فلانی د خدای ﷻ دوست په استسقاء کي نه معلومېدی ته راسه ولاړ سه يو څو مخور کسان به و هغه ته ورسو او هغه ته به خواست وکړو چي يوه ورځ به ته استقاء ته راسره ځې، نو څلورمه ورځ به هم استسقاء وکړو، ګوندي ددغه د خدای ﷻ د دوست دعاء قبوله سي او باران وسي، امير الوقت دا خبره ومنل او د څو کسانو سره د هغه ولي الله کورته ورغلل، نو ده ته امير الوقت ويل چي دري ورځي موږ ټولو بغداد والا وو استسقاء وکړه او ته نه وې راغلی سبب څه و، هغه سړي ورته وويل چي زه ګناه کاره بنده وم نو زما خيال دا و چي په سبب ستا د بد عمل او شوموالي به خدای ﷻ د بغداد د خلګو استسقاء رد کړي نو له دې سببه زه نه

درتلم، امیر الوقت ورته وویل چي موږ غواړو چي څلورمه ورځ بیا استسقاء وکړو لکن ته به حتما راسره ځې هغه د خدای ﷻ دوست ورته وویل چي ما ته تجربه حاصله ده چي خدای ﷻ زما خواست نه مني، خو امیر الوقت ورته ټېنګ سو، نو هغه ولي الله ورته وویل چي زه به اوس تاسي ته لنډه تجربه د عدم قبول در وښیم، خلګو ته یې وویل چي ورسئ په یوه کاسه کي اوبه راوړئ، خلګو چي اوبه راوړې د خپل د لمانځه دسمال په اوبو کي ډوب کړی او بیا یې راوکښی او خلګو ته یې وویل چي زه خو دا غواړم چي خدای ﷻ زما دغه دسمال را وچ کړي او لمر هم په ښه تودوخي مځکي نیولې ده، وګورئ چي زما دغه دسمال خدای ﷻ را وچوي او که نه خلګو چي دسمال ولمر ته اوار کړی، یو وار په قدرت د خدای ﷻ وریځ او باد پیدا سو او باران شروع سو، نو هغه ولي الله امیر الوقت او خلګو ته وویل چي ما نه درته وویل چي خدای زما خواست نه قبلوي ورځي ولاړ سئ، د خدای ﷻ په قدرت مسلسل بارانونه شروع سوه او خدای ﷻ قحط له بغداده پورته کړی.

**درویش وایي**: چي دغه ولي الله په اشاره د خدای ﷻ څخه باران وغوښتی خدای ﷻ دده په زبان حال خواست قبول کړی.

سعدي بر فلک برتر بود اسرار او شیئا لله شیئا لله کار او

**آداب الاجابت**: باید سائل وخدای ﷻ ته اسماء الحسنی د خدای ﷻ شفیع وګرځوي، او هغسي دعاګانې وکړي چي له سلف صالحینو څخه منقولې وي، او وسیله د اجابت انبیاء علیهم السلام او اولیاء الله الصالحین وګرځوي، وفي الحدیث النبوي ﷺ قوام الدنیا ای ثباتها، بثلثة اشیاء په درو شیانو سره، ای بعلم العلماء، لعل المراد بالعلماء الذین یعملون بعلمهم لا طلاب الدنیا والاجراء والمرائین وسخاوة الاغنیاء.

**درویش وایي**: والله اعلم چي مراد له اغنیاء څخه به هغه اغنیاء وي چي دنیا یې د رشوت او حرامو څخه خلاصه وي، ودعوة الفقراء، انتهی.

## فَلْيَسْتَجِيبُوا لِي

**پوه سه**: چي عمومي مفسرين وايي چي استجابت په معنا د اجابت دی، نو معنا داده چي تاسي قبلونه وکړئ زما يعني چي زه تاسي راوبولم و ايمان او عبادت ته لکه چي زه ستاسي اجابت کوم چي تاسي مابولئ د قضاء د حوائجو خپل، لکن دا تفسير مظهري په قيل راوړی دی او مراعات د سين او تاء يې کړی دی چي معنا يې طلب د اجابت دی، نو يې ترجمه داسي کړې ده چي تاسي زما څخه طلب د اجابت د خپلو دعاګانو وکړئ.

## وَلْيُؤْمِنُوا بِي

او تاسي پر ايمان ثبات او همېشه توب وکړئ ددې تفسير دليل دادی چي اصل ايمان خو په مؤمنانو کي موجود دی او مظهري رحمه الله يو تصوفي تفسير کړی دی، تفسير مظهري ته رجوع وکړئ.

## لَعَلَّهُمْ يَرْشُدُونَ ﴿١٨٦﴾

**پوه سه**: چي ترجي راجع ودوئ ته ده، والجملة حال يعني راجين اصابة الرشد، او يا لعل په معنا د لام کی دی، والمعنى لکی يرشدوا وذالک لان حقيقة الترجي محال على الله کمامر مراراً.

**پوه سه**: چي رشد ضد د غی دی نو معنا د رشد هو نيل المقصود والوصل بغير حجاب ان شاء الله.

## أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلَىٰ نِسَائِكُمْ

او حلال کړی سوی دی يعني له جانبه څخه د خدای ﷻ وتاسي ته په شپه کي د روژو رفث.

**پوه سه**: چي رفث په لغت کي هر هغه خبري دي چي د مېړه او ماينې تر منځ کېږي په وخت کي د ارادې د جماعو، نو دلته کنايه مراد څخه ده جماع ده، من قبيل ذکر اللازم وارادة الملزوم.

**درویش وايي**: چې ددې آيت په شان نزول کې اختلاف دی. ابو داوُد رحمه الله له حدیث څخه د معاذ بن جبل رضي الله عنه او احمد رحمه الله له حدیث څخه د کعب بن مالک رضي الله عنه داسي روايت کړی دی چې په ابتداء کې د اسلام قانون او حکم الهي په روژه کې دا و چې خلگو ته به په مابنام کې چې روژه او شرب او جماع به ورته مباح سوه تر هغه وخته پوري چې یا به يې د ماخستن لمونځ کوی او یا به بدهپدی، نو بیا یوه شپه په روژه کې عمر رضي الله عنه د ماینې سره وطي وکړې وروسته د ماخستن تر لمانځه. بیا وروسته پښېمانه سو او سهار ورغلی علیه الصلوة والسلام ته يې عذر وکړی، او وروسته د عمر رضي الله عنه نور اصحاب کرام رضي الله عنهم چې ورته کار يې کړی وو هغو هم اقرار وکړی په هغه کار چې عمر رضي الله عنه کړی و فنزلت هذه الآية.

**پوه سه**: چې رفث يې متعدي په الی سره کړی لتضمنه معنی الافضاء وعبر بالرفث لتقبیح ما ارتکبوه ولذالک سماه خیانة کذا قال البيضاوي او بخاري د براء بن عاذب رضي الله عنه څخه داسي روايت کړی دی چې اصحابو ته د علیه السلام داسي حکم و، چې څوک به د روژه مات پر وخت بیده سو دمخه تر روژه مات هغه سرې بیا ډوډی یا شرب وغیره نه سوای کولای دغه شپه او صبا ورځ تر بلې شپې پوري، يعني صبا به يې هم روژه نیولای، نو قيس بن صرمة الانصاري رضي الله عنه صائم و، کور ته چې راغلی ماينې ته يې وويل چې ستا سره د خوراک شی سته. هغې ورته وويل چې کورته خو شی نسته زه به ولاړه سم په بل کور کي به څه طعام درته پيدا کړم، ښځه ولاړه په کورو، نو چونکه قيس گرده ورځ کار کړی و، نو يې د ستړیا له کبله څنگ واچوه او بې اختیاره بیده سو، ماينه چې يې راغله څه شی يې پیدا کړی و مېړه چې يې ولیدی چې بيده دی قالت خيبة لک خیر مېړه خو ددې په خبره راويښ سو لکن خوراک بعد النوم حرام و نو له خورکه يې صبر وکړی، او صبا ورځ يې هم روژه کړه، دا بله ورځ چې

نیمی ته ورسېده نو قیس د لوږې او د تندي څخه بېهوښه سو، دا موضوع چي علیه السلام ته ذکر سوه نو دا آیت نازل سو.

**درویش وایي:** چي پر دې روایت د علم الله انکم کنتم تختانون آدنه رامعلومېږي، ولي قیس ﷺ کوم خیانت نه و کړی، کما لایخفی والله اعلم مگر که دا څنگ اچول خیانت وي والعلم عندالله، او بخاري ﷺ د براء بن عاذب ﷺ څخه داسي روایت هم کړی دی چي د روژې میاشت به داخله سوه مسلمانان به تولـه د جماع څخه منع وه تر اخیره پوري د میاشتي د روژې، او بعض مسلمانانو د خپل خان سره خیانت کاوه یعني جماعي به یې کولې فنزل هذه الآیة علم الله انکم کنتم تختانون انفسکم الآیة. او په یوه روایت کي د احمد او د ابن جریر وغیرهما د کعب بن مالک ﷺ داسي هم راغلي دي چي د نر یا د ښځي به روژه وه نو به بیده سوه حرم علیه الطعام والشراب او جماع د صبا ورځي تر روژه ماته پوري، یوه شپه عمر ﷺ د علیه الصلوة والسلام سره مجلس وکړی، او کورته چي راغلی د ماینې څخه یې د جماعو کولو درخواست وکړی هغې ورته وویل چي زه بیده سوې یم، د حضرت دا خیال و چي بهانه ورته کوي، او ماینې ته یې وویل چي نه یې بیده سوې، خیر خو جماع یې ورسره وکړه، وروسته حضرت عمر ﷺ ته حال معلوم سو چي ښځه بیده سوې وه، نو سهار راغلی علیه السلام ته یې ماجری ذکر کړه، او د کعب بن مالک ﷺ څخه هم داغسي موضوع پیښه سوی وه هغه هم اقرار وکړی، فنزلت هذه الآیة.

**درویش وایي:** چي دا وه هغه احادیث چي بیضاوي او مظهري راوړي وه ما ستاسي وحضور ته پېش کړه تاسي فکر پکښي وکړئ والله اعلم بالصواب.

**هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ وَأَنتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ**

**یوه سه:** چي دا جمله استینافیه ده بیان دی د سبب د تحلیل د جماعو د ماینو لیلة الصیام، وهو قلة الصبر عنهن، وکثرة المخالطة معهن وکل تلک الامور داعیة الی الجماع معهن، لکه سړی چي د کالو څخه چاره نه لري

**یوه سه:** چي په دې آیت کي غاړه په غاړه کېده د مېړه او د مابنې په وخت کي د جماع او یو پر بل پېښې را اړول خدای ﷻ مشابه کړي د ملبوساتو سره چي د سړي پر بدن تولپه راوګرځي نو په سبب یې ووېل هن لباس الآیة، او یا لباس یو له بله سره مېړه او ماینه په دې سبب وه. نو لکه په لباس سره چي ستر د عورت کېږي داغه رنګه مېړه او ماینه یو د بل ساتونکي دي د زناء څخه. ولهذا قال علیه الصلوة والسلام «فمن تزوج فقد احرز ثلثی دینه»

**عَلِمَ اللّٰهُ اَنَّكُمْ كُنْتُمْ تَخْتَانُوْنَ اَنْفُسَكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَعَفَا عَنْكُمْ**

خدای ﷻ خبر و چي تاسي یعني هغه کسان چي وروسته تر صلوة العشاء او یا وروسته تر خوب یې د ماینو سره جماعي کولې خیانت کاوه د خپلو ځانو سره په دې معنا چي ځانونه مو وعذاب ته د خدای ﷻ پیشوله او برخه د ثوابو خپله مو کموله، نو خدای ﷻ ستاسي د عذاب څخه رجوع وکړه یعني چي تاسي د خیانت مذکوره څخه وکړه او خدای ﷻ عفوه وکړه وتاسي ته د تېر سوي خیانت. لان التائب من الذنب کمن لا ذنب له. حدیث نبوي صحیح.

**فَالْـٰٔنَ بَاشِرُوْهُنَّ**

یعني اوس چي تحریم مذکوره منسوخ سو، نو تاسي مباشرت کوئ د ماینو سره.

**یوه سه:** چي مباشرت باب د مفاعلة دی معنا یې الصاق د بشرت یو له بله سره دلته کنایه ده د جماعو څخه.

**فائده:** په دې آیت کي دلیل دی پر دې چي نسخه د سنت نبوي ﷺ په قرآن سره روا ده ولي چي حکم منسوخ چي حرمت د جماعو او اکل او شرب وروسته تر خوب یا د ماخستن تر لمانځه کما مر ثابت په حدیث نبوي ﷺ و.

ولي چي په قرآن مبارک کي داسي آیت نسته چي پر حرمت مذکوره دلالت يي، او اوس قرآن مبارک هغه حکم نبوي په دې آیت سره منسوخه کړی

**فائده**: الآن اصل يې "لان" په معنا د حان يعني وخت ورسېدی د حين څخه ماخوذ دی، وروسته بيا اسم وګرځېدی د زمان حاضر لپاره، نو يې الف لام چي علامه د اسميت ده پر داخله کړه او پر فعلي فتحه يې پرېښول، نو الآن ظرف دی د باشروهن.

## وَابۡتَغُوا۟ مَا كَتَبَ ٱللَّهُ لَكُمۡ

**او تاسي طلب کوئ په جماع کي د هغه شي چي خدای ﷻ تاسي ته ليکلی وی، مراد له "ما" موصوله څخه ولد دی.**

**فائده**: په دې آیت کي اشاره ودې ته ده چي سړی د ماينې سره جماع کوی فقط قضاء الشهوة دې غرض نه وي بلکه طلب د ولد دي لپاره د تکثير الامة هم پکښې وي، ولهذا روی ابو داوٗد رحمه الله والنسائي رحمه الله عن معقل بن يسار رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ تزوجوا الودود، تاسي په نکاح کوئ محبت کونکې ښځه، الولود" چي لنګېږي يعني وچه نه وي فاني مکاثر بکم الامم" ولي چي زه ډېر والی غواړم تر نورو امتو په تاسي دا علت دی د "ودو"

**فائده**: ددې آیت څخه دا هم معلومه سوه چي عزل مکروه دی، يعني چي مېړه د ښځي له فرجه دباندي ځان انزالوي، ددې لپاره چي عيال مي ونه سي، او پر دې هم دلالت کوي چي محل د جماع بايد هغه ځای وي چي ولادت څخه کېږي يعني قبل د ښځي نه دبره.

**فائده**: په اوسنی زمانه کي حکومتونه د کافرانو او د بعضو مسلمانانو دولتو هم لپاره ددې چي رعيت ډېر نه سي يوه منصوبه منظوره کړې ده چي د عيال د بندېدو لپاره يو موقتاً يعني د دوو درو کلو لپاره مثلاً يا د همېشه لپاره يې ګولی او پېچکاری را ايستلي دي چي هغه ولادت

موقتاً یا موبداً بندوي، دا امور مسلمانانو ته مکروه دي، ولې چې رازق رب جل وعلی دی، مګر په بعضو شرائطو مخصوصه وو کې چې تفصیل د هغو شرائطو به ډېر وطول ته منجر سي روا دی.

وَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْاَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ

عطف علی "باشروهن" والمعنی، او تاسي خوراک کوئ او څښاک کوئ تر هغو چي ظاهرېږي وتاسي ته هغه سپین تار له تار توره څخه، چي له سپین تار څخه مراد صبح صادق دی.

**پوه سه**: چي د سپین تار له بیان څخه د تور تار معنا هم معلومه سوله چي مراد څندي تور والی د یو شي دی.

**پوه سه**: چي صبح صادق چي اول معلوم سي د لیدونکي په نظر لکه یو سپین نری تار او لوړ تر هغه د شپې تاریکه باقي وي، نو هغه داسي معلومېږي لکه تور تار د سپین تار ممتد په عرض کي د افق السماء، نو سپین تار او تور تار دلته په آیت شریف کي استعارةً او مجازاً مستعمل سوی دی.

**مسئله**: فقهاؤ رح د دې آیت څخه دا فهمولې ده چي جماع تر صبح صادق پوري روا سوې، نو غسل تر صبح صادق وروسته روا دی. لانه لا یمکنه الغسل الا بعد الصبح، نو پر دې دا تفریع کېږي چي روژه نیول سره له جنابته روا ده کما هو الظاهر.

**پوښتنه**: بیان د سپین تار بیان يې په فجر سره وکړی او اسود يې پر قیاس کړی، نو که يې بیان د تور تار کړی وایي د شپې په تور والي سره او سپین تار يې پر قیاس کړی وایي کافي به نه وایي؟

**ځواب**: کافي خو به وایي لکن اصل مقصود په دې آیت کي انتهاء د وخت ده چي هغه "کلوا واشربوا" دی او هغه انتهاء په سپین تار سره

مربوط دي نو ځکه يې د سپين تار بيان وکړی او تور يې پر قياس کړی.

**پوه سه:** چي په روايت د بخاري او مسلم د عدي بن حاتم ﷺ داسي راغلي دي چي څه وخت چي دا آيت نازل سو حتی يتبين الخيط الابيض من الخيط الاسود، يعني من الفجر لا نه و نازل، ما يو تار سپين او يو تور تر بالښته لاندي کېښېښول او صبا ته مي د روژې اراده وه، نو هره څه چي به مي د شپې ورته کتله هغه نه معلومېدل، نو سهار عليه السلام ته ورغلم دا بيان مي ورته وکړی، فقال انما ذالک سواد الليل وبياض النهار، او دغه رنګه په بخاري او مسلم کي په روايت د سهل بن سعد ﷺ راغلي دي، دی وايي انزلت کلوا واشربوا حتی يتبين لکن الخيط الابيض من الخيط الاسود ولم ينزل قوله من الفجر، نو بعض کسانو چي په اراده د روژې درلوده يعني نفلي نو به دوئ په يوه پښه پوري تور تار او په بله پښه پوري سپين تار وتړی، نو تر هغو پوري به يې خوراک کاوه چي دا دوه به ورته معلومېده. نو خدای ﷻ من الفجر نازل کړی باره خلګ وپوهېدل چي مراد له خيط ابيض او اسود سره بياض الصبح الصادق وبقية سواد الليل دی.

**سوال:** ددې حديث څخه خو دا معلومه سوه چي من الفجر وروسته تر نور آيت نازل سوی دی نو په دې کي خو تاخير د بيان تر وخت د حاجت لازمېږي، وهو غير جائز عند الاصولين؟

**ځواب:** ددې سوال ځواب اولاً بيضاوي دا ورکړی چي آيت مذکوره خو د مخه تر ماه رمضان نازل سوی و نو د خلګو ضرورت خو بيان ته په مباشت کي د روژې و هغه وخت ته من الفجر هم نازل سو، نو دا تاخير د بيان دی تر وخته د حاجت او دا روا دی، نعم تاخير البيان عن وقت الحاجت لا يجوز آه.

**درويش وايي:** چي دا ځواب صحيح نه دی ولي چي حاجت د خلګو وبيان ته خو په نفلي روژو کي هم وو کما في الحديثين المذکورين. او بل ځواب يې دا ورکړی دی چي خيط ابيض او اسود خو مشهور وه چي مراد خندي

معنا مجازي ده لکن چونکه بعض خلکو ته اشتباه وریپیښه سوه کما في الحديثين المذكورين انزل الله تعالى من الفجر لدفع الاشتباه المذكور وهذا جواب صحيح اورده کثير من المفسرين رح، او داسي ځواب هم ممکن دی چي بيان د خيط ابيض او اسود په وحي غير متلو سره ثابت وو يعني په حديث نبوي سره نو من الفجر لپاره د تائيد د حديث نبوي نازل سو احتياطا.

**درويش وايي:** چي حديث د عدي بن حاتم ﷺ پر دغه ځواب دلالت کوي نو ګويا عدي من حاتم ﷺ ته دغه وحي غير متلو نه وي رسېدلي، نو ځکه په بعضو رواياتو کي د بخاري داسي هم راغلي دي چي عليه السلام وعدي بن حاتم ﷺ ته وويل "انک لعريض القفا انما ذالک بياض النهار وسواد الليل" غرض دا چي عليه السلام وعدي بن حاتم ﷺ ته په دې سبب عريض القفا ووايه چي تر اوسه چي دغه مراد د خيط ابيض او اسود نه وو خبر والله اعلم.

**فائده:** فقيه ابو جعفر الطحاوي ﷫ په شرح کي د معاني الآثار وايي چي اول حکم د روژو پر ظاهر د خيط ابيض او خيط اسود کېدي و. وروسته هغه حکم په من الفجر سره منسوخ سو. د طحاوي ﷫ دليل هغه حديث د حذيفه ﷺ دی چي دی وايي ما پېشلمی وکړی د عليه الصلوة والسلام سره په داسي وخت کي چي ورځ خو داخله وه لکن لمر نه و راختلی. نو طحاوي دا حديث محمول بولي پر هغه وخت چي من الفجر نه وو نازل سوی.

**سوال:** اهل اصول الفقه وايي چي ناسخ به حتما کلام مستقل وي، او من الفجر خو کلام مستقل نه دی بلکه فقط جار او مجرور دی فکيف يصح النسخ به؟

**ځواب:** د طحاوي ﷫ مراد دادی چي اولاً دا آيت نازل سوی "وكلوا واشربوا الخ" بېله قيده د من الفجر وروسته دا آيت تر توله تلاوةً وحکماً منسوخ سو. او په ځای کي يې دا آيت پوره نازل سو "وكلوا واشربوا حتى يتبين لكم الخيط الابيض من الخيط الاسود من الفجر" ولاشک ان هذا نسخ الكلام المستقل يعني الغير المقيد بالكلام المستقل الآخر المقيد. وهو جائز بالاتفاق وهذا حاصل ماذكره المظهري ﷫ والله اعلم بالصواب.

**فائده:** حدیث د عدي بن حاتم ﷺ خواه مـاخواه تـر نـزول د من الفجر وروسته وو، ولي چي تاريخ د بيان احوال الصحابة ﷺ وايي چي عدي بن حاتم ﷺ په سنه نهه (۹) کي د هجرت مسلمان سوی دی، او نزول د آية الصيام په سنه دوه (۲) د هجرت وو.

**درويش وايي:** چي بيان د حديث د عدي بن حاتم ﷺ پر مذهب د طحاوي ﷺ او د بيان د مظهري ﷺ دپر مشکل دی، فتامل.

**ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى الَّيْلِ**

او بيا نو پوره کړئ روژې تر شپې پورې، يعني د خوراک او څښاک او جماعو څخه د شپې تر دخوله به صبر کوي والا لزمنکم الکفارة کما سيناتي که خدای ﷻ کول.

**پوه سه:** چي الى الليل پای دی د روژې نو د شپې روژه نسته، نو په دې آيت سره صوم وصال نفي سوله او صوم وصال دا بولي چي دوې درې شپانه روزه روژه نه ماتوي لـه دې روژې څخه عليـه الصلوة والسـلام نهي کړې دی کما في البخاري وغيره، نو لـه دې سببه مجاهدين د اولياء الله الکرام په چهل خانو کي خپل هره شپه په وخت کي د افطار روژه په يوه غرپ اوبو سره ماتوي تاچه صوم الوصال ونه گرځي او نور خوراک نه کوي مجاهدة للنفس وتذليلا للشيطان حتى چي بعض اعلى مجاهدةً للنفس په خلوېښتو شپو کي دغه عادت يې وي وبذالک يتنور قلوبهم بنور الله او نفس اماره يې نفس مطمئنه وگرځي وذالک فضل الله يؤتيه من يشاء.

**پوه سه:** چي د روژې ماهيت هم ددغه آيت څخه معلوم سو يعني امساک دی د مفطرات ثلثه وو د وخت څخه د طلوع د صبح صادق بيا تر وخته د غروب الشمس بتمامها، او سره د نيت چي هغه د "اتموا" څخه وفهمېدی ولي چي اتمام د فعل اختياري دی، او په فعل اختياري کي نيت ضروري دی، ولقوله عليه الصلوة والسلام کما في البخاري و رواه سائر المحدثين

انما الاعمال بالنيات وانما لامرئ مانوی الی اخیر الحدیث. ولان الصوم عبادة وامتياز العبادة عن العادة انما يكون بالنية والحديث المذكور متواترا بالمعنى كما لايخفى، فلابد من النية وقد اجمع الامة عليه، او د عمر بن الخطاب څخه روايت دی كما رواه البخاري چي عليه السلام وويل "اذا اقبل الليل من ههنا" يعني من جانب المشرق "وادبر النهار من ههنا" ای من جانب المغرب "وغربت الشمس" ای بتمامها "فقد افطر الصائم" ای حان وقت افطاره، وانما زاد وغربت الشمس لئلا يظن ان وقت الافطار بنفس غروب حاجب الشمس وان لم يغرب بتمامها.

**مسئله**: ځنډول د افطار تر وخته د ښکارېدو د ستورو مکروه دی.

**پوښتنه**: روژه خو تولـه ورځ عبادت ده، او د مخه تېره سوه چي په عبادت کي نيت شرط دی نو بايد تولـه ورځ د روژياتي سره نيت د روژې ملګری وي، او داغه رنګه لمونځ هم عبادت مقصوده دی نو بايد په تولـه لمانځه کي نيت ملګری وي.

**ځواب**: هو! قياس خو داغه دی لکن په سبب د لزوم د جرح په دواړو مقصوده عبادتو يعني لمونځ او روژه دا شرط ساقط دی اذ لا حرج في الدين، بلکه په لمانځه کي اقتران د نيت په جزء اول پوري غواړي يعني التحريمة، بيانو شرعه شريفه دا نيت باقي بولي حکما په تولـه لمانځه کي.

**سوال**: په روژه کي هم اقتران د نيت د جزء اول سره چي طلوع الفجر دی شرط دی که څرنګه؟

**ځواب**: چونکه اول جزء د روژې وخت د غفلت دی غالبا نو شرعي شريفي د جرح له کبله دا شرط ګڼلی دی يعني تر طلوع الفجر چي دمخه روژياتي نيت د روژې د صبا لپاره وکړي کافي دی او باقي دی حکما اجماعا من جميع الائمة رح.

**پوه سه**: چي امامان د دين په دې کي اختلاف لري چي نيت د روژې وروسته

تر سپېدو روا دی او که نه. امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله وايي چي نيت د روژي فرض دی د میاشتني د روژې او نذر معين مثلاً سبری وو وايي چي پر ما صبا روژه نذر ده، او د نفلي روژې دمخه تر نصف النهار شرعي نيت روا دی، بخلاف صوم القضاء والنذر المطلق فانه لايجوز الا بنية وقت الصبح او قبل ذالک، او امام شافعي رحمه الله او امام احمد رحمه الله وايي چي د نفلي روژي نيت تر نصف نهار شرعي لـه مخه رواه دی، او د نورو روژو دا نه دی روا. او امام مالک رحمه الله وايي چي د هيڅ روژې نيت د ورځي نه دی روا وتفصيل الدلائل والاجوبة في كتب الفقه والشروح المبسوط لكتب الاحاديث الشريفة.

**فائده**: مونږ د مخه وويل چي عبادت مقصوده ددې قيد فائده داده که عبادت مقصود بالذات نه و لکه اودس چي د لمانځه وغيره لپاره شرط دی په هغه نيت شرط نه دی بلکه مستحب دی خلافا لاهل الظواهر، او سبب هم دادی چي اودس خو عبادت دی اما مفتاح الصلوة هم دی نو که په اوداسه کي نيت وکړي نو هم يې ثواب د عبادت ستنه او هم مفتاح الصلوة دی، او بېله نيته د طهارت بلکه د بترید الاعضاء لپاره په دوبي کي اودس وکړي نو ثواب د عبادت يې نسته لکن حکم د مفتاح الصلوة يې باقي دی کذا في كتب الفقه والاصول.

## وَلَا تُبَاشِرُوهُنَّ وَأَنتُمْ عَاكِفُونَ فِي الْمَسَاجِدِ

او تاسي جماع مه کوئ د ماينو سره په داسي حال کي چي تاسي معتکفان یاست په مسجدو کي يعني د شپې هم که يې په مسجد کي ورسره کوئ او که معتكف کور ته ورسي او د ماينې سره جماع وکړي.

**شان نزول**: بغوي رحمه الله وايي چي دا آيت مبارک په شان کي د هغو اصحابو کرامو رضي الله عنهم نازل دی چي دوئ په اعتکاف کي وه نو چي جماع ته به يې ميل وسو نو د شپې به کورته ولاړه او هوري به يې د ماينې سره جماعي وكړې، او غسل به يې هم وکړی وروسته به بېرته معتكف يعني

مسجد ته راغله فحرم الله علیهم هذه الفعلة بهذه الآیة.

**مسئله:** جماع په اجماع سره اعتکاف خو فاسدوي، او علاوه تر فساد دا فعل حرام دی اجماعا لکن شافعي ﷺ وايي چي که يې وطي په هېره وکړې نو اعتکاف يې نه دی فاسد، دی يې قياسوي پر روژه چي په هېره سره سړی خوراک وغيره وکړي، موږ وايو چي دا قیاس دی مع الفارق بين الصوم والاعتکاف، ولي چي روژه خو داسي فعل نه دی چي روژياتي ته دي روژه وریاد کړي بخلاف الاعتکاف لان لزوم المسجد والاقامة يذکره الاعتکاف، او د حسن بصري ﷺ او له زهري ﷺ څخه يو روايت شاذه مروي دی چي دوئ وايي که معتکف جماع وکړې پر ده کفاره د يمين سته، وهذه الرواية مخالفة للاجماع على انه لاکفارة عليه.

**مسئله:** که معتکف ماينه مچ کړه او يا يې مسحه کړه په شهوت سره او انزال سو، اعتکاف خو يې فاسد دی بالاجماع او دا کار حرام هم دی، نو که انزال نه سو فعل خو يې حرام دی لکن اعتکاف يې نه دی فاسد.

**پوه سه:** چي اعتکاف مشتق له عکوف څخه دی چي معنا يې لزوم او اقامت پر شي دی، او اعتکاف په شرعه شريفه کي لزوم د مسجد دی او هوړي اوسېدل دي په نيت د طاعت د خدای ﷻ او په نيت د نژدې والي و خدای ﷻ ته.

**فائده:** اعتکاف د شرائعو قديمه څخه دی لقوله تعالى خطابا لابراهيم واسمعيل عليهما السلام ﴿وطهرا بيتي للطائفين والعاكفين آه﴾ فالمراد من العاكفين المعتكفين عند المفسرين رح.

**پوښتنه:** که يو چا نفلي او يا اعتکاف سنت د عشر آواخر د رمضان نيت وکړی، او بېله لفظ د نذر ومايرادفه يې تعين د ورځو وکړی مثلا لس ورځي يا پنځه ورځي يې يادي کړې وروسته تر هغه ورځو دمخه اعتکاف ختدي فاسد سو نو بيا پر دغه سړي د هغه عدد چي ده ذکر کړی و، د ټولو ورځو قضاء پر لازمه ده او که څرنګه؟

**ځواب**: په قطب الارشاد کي وايي چي قضاء يې نسته ولي چي اعتکاف په فساد سره منتهی کېږي، او هغه ورځي چي ده په اعتکاف کي تېري کړي وې د هغو ورځو خدای ﷻ ثواب ورکوي او پاتـه ورځي پر لازمي نه دي، البته که چا لس ورځي مثلا اعتکاف پر ځان نذر کړې او درې څلور ورځي وروسته يې فاسد کړې، بيا د لسو ورځو قضاء پر لازمه ده، والحاصل چي په نفس نيت سره اعتکاف نه نذر کېږي بلکه نذر خپلي صيغې لري په هغه نذر کېږي، وهذا مماغفل عنه بعض الطلبة.

**فائده**: د لفظ څخه مساجد په صيغه د جمع دا ثابت سوه چي اعتکاف په هر مسجد کي چي پنځه وخته لمونځ د جماعت پکښي کېږي روا دی که څه هم مسجد جامع افضل دی، ولي چي د جمعې د لمانځه لپاره بېل ځای ته تګ نه ځندي غواړي.

**پوه سه**: چي اعتکاف د بهترينو عباداتو څخه دی چي په اخلاص د نيت وي، ولي چي په اعتکاف کي د سړي زړه وخدای ﷻ ته ځان فارغه کړي، عطاء رحمه الله وايي چي د اعتکاف مثال داسي دی لکه يو فقير چي د يو لوی غني و دروازې ته کښېني او هغه غني سړي ته ووايي چي زه ستا له دره نه ځم خو زما حاجت له سره نه کړې، نو معتکف هم د غني ارحم الرّاحمين د عبادت په ځای کي مقيم سو او وايي چي زه ستا له بيتي څخه نه ځم څو زما حاجت د مغفرت د ګنهو تر سره نه سي، نو د کريم او رحيم او غفور بادار له کرمه لېري نه ده چي دده مطلب ورکوي.

**فوائد الاعتکاف**: (۱) اول د خلګو څخه ځان لېري کړي نو خلګ دده څخه په امن کي سي او دی له خلګو څخه په امن کي سي.

(۲) خواري د نفس ده.

(۳) اعراض دی له دنيا او له دنيا والو څخه چي اول لار د صدق او اخلاص ده.

(۴) الفت دی د خدای ﷻ او تکیه ده پر خدای ﷻ، ولي چي په مسجد کي خو گرده ورځ او شپه بېله خدايه ﷻ بل الفت او د خبرو ځوک نسته.

(۵) معتکف غالبا په لږ حلال رزق سره گذاره کوي ولي چي بېله اعتکافه لازما او غالبا سړی په تجارت او نورو کسبو اخته وي او په هغو کي د حلال او حرام دواړو گنجائش سته.

(۶) د غیبت، بهتان او نورو معاصیو څخه په اعتکاف کي خلاص وي

(۷) د خلگو د غوړمالۍ او طمعه څخه هم خلاص وي.

**درویش وایي:** چي ددې اوو (۷) محاسنو انحصار پر دې دی چي معتکف په نیت کي د ریاء او سمعه څخه خلاص وي.

د فقیهة الامة بي بي عائشة ﵂ څخه روایت دی چي معتکف ته دا سنت دی چي مریض ته به د پوښتني لپاره نه ورځي، او د چا جنازې ته به هم نه ورځي، او ماینه به نه مس کوي، او نه به مباشرت ورسره کوي، او له مسجده به نه وځي مگر د حاجت ضروري لپاره، او اعتکاف بېله روژې نه دی صحیح، او اعتکاف نه دی روا مگر په مسجد کي چي جماعت پکښي کېږي، ددې مبارکي ﵂ غرض دادی چي که یو سړی یوه خونه د عبادت لپاره په سرای کي ټاکلې وه په هغه خونه کي اعتکاف نه دی روا نه د نر او نه د ښځي.

**مسئله:** اعتکاف سنت موکده دی په لسو شپو اخیرو کي د میاشتي د روژې لحدیث عائشه ﵂ ان النبي ﷺ کان یعتکف العشر الآواخر من رمضان حتی یتوفاه الله عزوجل ثم اعتکف ازواجه من بعده. رواه البخاري ومسلم

**د عوامو غلطیا:** د عوامو تولو بلکه د بعض امامانو دا خیال دی چي اعتکاف یوازي د مسجد پر طالبانو دی چي یو طالب به په اعتکاف کي کښېني، او دوی نه پوهېږي چي اعتکاف اسلامي سنت دی، نو باید دا چي هر مسلمان دي دا سنت نبوي ﷺ کم از کم یو کال په میاشتي کي د روژې پر ځای کړي

**مسئله:** ماینه کولای سي چي مېړه یې په اعتکاف کي وي چي ماخستن

مثلا ملاقات او زیارت ته دده ورسي، لکن چي تهمت نه وي بکسي
ولهذا ورد في الحدیث النبوي ﷺ الذي رواه البخاري وغیره ان النبي ﷺ
کان معتکفا فآتت لملاقاته وزیارته صفیه ﷺ لیلاً من اللیالي فتحدثت
معه ﷺ ساعة فارادت ان تنقلب الی بیتها وکان بیتها في دار اسامة ﷺ
فقام معها رسول الله ﷺ لکی تنقب الی بیتها الی باب المسجد النبوي ﷺ
فمر رجلان من الانصار ﷺ فلما راء النبي ﷺ ومعه امراة اسرعا فقال
النبي ﷺ علی رسلکما هذه صفیة فقالا سبحان الله، یعني علیه الصلوة
والسلام لپاره د دفع د تهمت دوئ ته وویل علی رسلکما هذه صفیة او
هغو سبحان الله د تعجب لپاره وویل یعني یعني چي موږ به ولې
بدگماني کوله، او علیه الصلوة والسلام په اخیر کي ورته وویل چي ما
چي تاسي راوگرځولاست او دا ښځه مي در وښووله چي صفیه ده ددې
لپاره چي تاسي ته شیطان په زړو کي وسوسه در پیدا نه کړیز

# تِلْكَ حُدُودُ اللّٰهِ فَلَا تَقْرَبُوهَا

یعني دغه احکام چي ذکر سوله چي اکل او شرب او جماع په روژه
کي حرام دی، او جماع د معتکف هم حرامي دي.

**یوه سه:** چي دا اشاره په لفظ تلک ودغو احکامو که څه نژدې تېر سوه
له جهته څخه دعظیمي رتبې ددې احکامو کما في ذالک الکتاب په اول
کي د سورت بقره.

**یوه سه:** چي حدود جمع د حد ده چي معنا یې منع ده. نو معنا داده چي دا
مذکوره احکام ممنوعات د خدای ﷻ دي، نو تاسي و هغو ته مه نژدې کېږئ

**یوه سه:** چي اصل غرض نه کول دي ددغو افعالو لکن نهي یې ظاهرا د
نژدې والي څخه د هغو وکړه مبالغةً في النهي کما في قوله تعالی خطابا
لآدم ﷺ وحواء ﷺ ﴿ولاتقربا هذه الشجرة الآیة﴾

**سوال:** ټوله مفسران تلک وهغه احکامو ته اشاره بولي چي عنقریب یې ذکر تېر سو، نو د آیت معنا خو داسي کېږي چي دا حرمت د اکل او شرب آه احکام د خدای ﷻ دي نو تاسي مه ورنژدې کېږئ، نو حرمت د اکل ته مثلا چي سړی نه نژدې کېږي نو خو اکل به کوي وهذه المعنی لیس بمراد الله ﷻ.

**والجواب:** ان في الآية مجاز وتقدير والمعنا تلک الاحکام محدودات الله فلاتقربوا حدودها، ولهذا قال علیه الصلوة والسلام الا ان لکل ملک حمی وان حمی الله في الارض محارمه فمن وقع حول الحمی یوشک ان یقع فیه، والحدیث بطوله مذکور في البخاري ومسلم فراجعها.

كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ آيَاتِهِ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ﴿١٨٧﴾

او دغسي لکه تېر سوي احکام د روژې او اعتکاف چي خدای ﷻ بیان کړه، بیانوي خدای ﷻ خپل آیات یعني د احکامو، اوامرو او منهیاتو وخلګو ته ددې لپاره چي دوئ پرهېز وکړي یعني مخالفت د آیاتو د خدای ﷻ ونه کړي او اوامر یې پر ځای کړي او د منهیاتو څخه پرهېز وکړي.

**پوه سه:** چي کاف دلته په معنا د مثل دی او منصوب المحل دی چي صفت د مصدر محذوف دی یعني یبین الله بیانا مثل ذالک البیان.

قال السعدی الشیرازی رحمه الله

ترا آنکه چشم و دهان داد وګوش — اګر عاقلی در خلافش مکوش

چو پاک آفریدت بهش باش وپاک — که ننګشت ناپاک رفتن بخاک

سر و زیر بار ګنه ای پسر — که حمال عاجز بود در سفر

مکن عمر ضائع بافسوس وحیف — که فرصت عزیز است والوقت سیف

یرحمک الله یا شیرازي رحمه الله

تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا سکین او pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

# وَلَا تَأْكُلُوٓا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ

او تاسي مه خورئ مالونه ستاسي په خپل منځ کي په باطله طريقه، يعني هيڅ څوک دي د بل مال نه خوري په ناحقه سره يعني چي جواز شرعي نه لري لکه د درواغو د دعوی، يا د درغواو په شاهدانو سره، او يا د درغواو په قسم سره، او يا په غصب سره، او يا په حمله سره، او يا په کسه بري سره، او يا په خيانت سره په شراکت کي يا په امانت کي، او يا په قمار سره هره نوعه د قمار چي وي، نو خلګ چي په اخترو کي هګۍ سره جنګوي داهم دا هم نوعه د قمار ده او حرام دی، او يا شوقيان يا مسليانې چي پر غزلو او سرود بانديي د خلګو څخه پيسې غواړي.

**پوه سه:** چي دا اجرت دو طرفه حرام کار دی، او يا رنډۍ پر زناء د خلګو څخه پيسې اخلي او دا کار هم دوه طرفه حرام دی، او يا غيب ګوئي يعني کاهن او پتي معلومونکی د خلګو څخه روپۍ غواړي، دا هم دو طرفه حرام دی، او يا د خلګو څخه رشوت اخلي او يا د عقود فاسده وو روپۍ خوري، او ددې عقود فاسده تفصيل په فقه کي مذکور دی

**پوه سه:** چي لفظ د بين منصوب دی يا ظرف د "تاكلوا" دی او يا حال دی د "اموالكم" څخه ای كائنةً بينكم، بعض مفسرين رح وايي چي دا آيت په امرء القيس کندي کي نازل سو چي په ده دعوه کړې وه ربيعه بن عبدان حضرمي چي زما مځکه يې په غصب لاندي کړې ده، نو عليه السلام وحضرمي ته چي مدعي و داسي وويل چي شاهدان لرې هغه ورته وويل يا، نو عليه الصلوة والسلام وويل چي ستا حق دی چي کندي يعني مدعي عليه چي هغه منکر و قسم ورکړی، نو کندي وقسم ته اماده سو نو عليه الصلوة والسلام وويل که کندي قسم واخستی لياكل ظلماً، نو په ورځ د قيامت به خدای ﷻ څندي معرض وي، روى هذ الحديث عن سعيد بن جبير رضي الله عنه

**پوه سه:** چي مورد د حديث که څه هم غصب دی لکن عبرت عموم لره

د لفظ دی کما تقرر في علم الاصول، ولهذا اندرج المفسرون رحمهم الله في هذه الآية جميع ماذكرنا آنفاً.

**فائده**: چونکه معظم فائده د اموالو خوراک دی نو ځکه خدای ﷻ خوراک ذکر کړی ورنه تول اقسام د اخذ د حرام مال پکښې داخل دي.

**پوه سه**: چې حلال خالص اموال په اوسني زمانه کې ښخې نادر دي عقود فاسده رائج دي خيانتونه په ډکه پيمانه سره روان دي، او شوقيانو او مسلمانو ته روپۍ ورکول مروج دي په پیرالانو کې والی الله المشکی

**درويش وايي**: چې بعض مفسرانو رح ددې آيت شان نزول داسې کړی دی، چې دوه کسان وه چې پر ځمکه ې دعوه وه او مدعي لره شاهدان نه وه نو مدعي عليه قسم ته ځان آمدا کړی کما هو حکم الشرع الانور، نو نبي ﷺ داسې ووېل "انما انا بشر مثلکم" يعني په غيب نه يم خبر "يوحي الي، وانتم تختصمون الي، ولعل بعضکم الحن بحجته من بعض" يعني بعض ستاسي به په دليل ويلو کې چالاکه وي تر بل فاقضي له على نحو ما اسمع منه" نو زه فيصله وکړم يعني د الحن په ګټه لکه دده دلائل چې ما واورېدل نو دغه زما په خيال پر حق و "فمن قضيت له شيئا من حق اخيه فانما اقضي له قطعة من نار" نو که ما حکم وکړی د يوه لپاره په سبب د لحن بالحجة" او هغه په واقع کې کاذب و، نو داسې بايد وبولي چې ما دده لپاره يوه ټوټه دار ورحلا کړی "فبکيا وقال کل واحد منهما انا حل لصاحبي" نو دواړو وژل او هر يوه ووېل چې و خپل خصم ته تر حق ورتېر يم يعني هر يوه ووېل چې زما خصم پر حق دی زه تر دعوې ورتېر يم نو عليه الصلوة والسلام ورته ووېل "اذهبا فتوخيا" يعني تاسې ولاړ سئ او هر يو دې طلب د حق وکړي يعني پخپل ګريبان کې دې وګوري "ثم استهما" او بيا پچه سره وکړي "ثم ليحلل کل واحد منکما صاحبه" او بيا دې هر يوه له بله ځخه بخښنه وغواړي

وَتُدْلُوا بِهَا إِلَى الْحُكَّامِ لِتَأْكُلُوا فَرِيقًا مِّنْ أَمْوَالِ النَّاسِ بِالْإِثْمِ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿١٨٨﴾

**پوه سه:** چي "ادلاء" په معنا د "القاء" ده يعني رسول والمعنى لاتلقوا حكومة الاموال الى الحكام.

**فائده:** تدلوا عطف دی پر منهي عنه يعني تاكلوا فالتقدير لاتدلوا. او يا منصوب دی په اضمار د ان فالمعنى لايكن منكم اكل اموال الناس والادلاء. قاله البيضاوي وتبعه المظهري.

**سوال:** د داسي تركيب معنا خو په عربيت كي داده چي تاسي جمع د اكل د اموال الناس او د ادلاء الى الحكام مه كوئ يعني هر يو جلا جلا روا دی وليس كذالك آه؟

**ځواب:** هوا معنا خو يې منع الجمع بين الامرين ده، لكن دا ددې منافي نه ده چي هر يو دي منهي عنه نه وي.

**پوه سه:** چي مجاهد رحمه الله وايي چي معنا د آيت داده لاتخاصم وانت ظالم. او ابن عباس رضي الله عنه وايي چي معنا د آيت داده چي د يو سړي پر چا پور باندي وي او شاهدان نه پر لري، نو پوروړی منكر سي او قضيه و حاكم ته ورسوي چي حاكم قسم ورته كښېږدي او دی كاذبا قسم واخلي او دعوی وګټي. او كلبي رحمه الله وايي چي په محكمه كي د درواغو شاهدان پر تېر كړي، ولا منافات بين هذه التفاسير لان اللفظ يحتمل الكل وكل واحد منها حرام، نو سليسه ترجمه د آيت داده چي تاسي مه رسوئ قضيه د اموال الناس و حاكمانو ته چي تاسي وخورئ په دغه ذريعه د يوه حصه د مالو د خلګو په ګناه سره چي يا ناحق كاذب قسم واخلي او يا د درواغو شاهدان تېر كړي، نو پر دې تقدير كلمه د "باء" لپاره د سببيت اى بما يكون سببا للاثم. او يا كلمه د "باء" لپاره د ملابست ده اى متلابسين بالاثم. او حال دا وي چي تاسي علم لرئ يعني پر دې چي موږ پر

باطل او پر درواغو روان یو، ددې حال فائده داده چې گناه سره د علم ډېره بده ده، او حکام خو ستا په ناحقه نه دي خبر نو هغه ملامت نه دي بلکه چي قاضي او حاکم د قانون سره د شرعي شريفي برابر حکم وکړي او د آثم په گټه فیصله وکړي خدای ﷻ ثواب ورکوي کما تقرر في الفقه، علماء وايي چي دنيا درې قسمه ده، حلاله، حرامه، شبهه ناکه، فالحرام يوجب العقاب، حرامه دنيا سبب د عذاب الهي ده، او شبهه يې موجبه د عتاب او سرزنش ده، او حلاله يې حساب ده، پس عاقل سړی هغه دی چي د حقوق څخه د عباد پرهېز وکړي او مظالم پر چا نه کوي لان الظلم ظلمات يوم القيامة ولابد من حسابها يوم القيامة وارضاء الخصوم بحسنات الظالم.

قال الحيكم السنائي الغزنوي نور الله مرقده

| | |
|---|---|
| اين جهان بر مثال مرداراست | گر کسان اندرو هزار وهزار |
| این مر آنرا زند مخلب | وآن مراين را زند منقار |
| آخر الا ر بگذ رند همه | وزهمه باز ماند اين مردار |

**حکايت**: تاريخ وايي چي نوشېروان عادل چي مړ سو، په قرار د وصيت دده په ټوله مملکت چي دی پر حاکم و دده جنازه يې وگرځوله او داسي اعلانونه پسي کېدله که د چا پر ما حق باندي وي را دي سي چي زه يې ورکړم، هيڅ څوک په ټوله مملکت کي نه سو پيدا چي نوشېروان پر ما دا ظلم کړی دی.

د اسلام تاريخ د امام المسلمين ابي حنيفه قدس سره يو موشت نمونه خوار تقوى داسي بيان کړې ده.

د امام اعظم رحمه الله پر يوه مجوسي پور باندي و، نو امام رحمه الله د پور په طلب کي د هغه مجوسي کور ته ورغلی او دده چوټه پر يوه نجاست لگېدلې وه، ده مبارک چي چوټه وڅنډله چي نجاست څندي جلاسي ناگاه نجاست د چوټي څخه جلا سو او د مجوسي پر دېوال ومښتی، امام اعظم حيران سو چي دا نجاست څه په وکړم که يې پرېږدم د مجوسي دېوال

بدنماء کېږي او که یې ګوروېږ د دېوال خاوره ورسره جلا کېږي، نو ده له خانه سره دا فیصله وکړه چې مجوسي چې راووزي د هغه سره به فیصله وکړم په باره کې د دغه نجاست، هر څه چې دده خوښه وه هغسې به وکړم، نو دروازه چې یې وټکوله د مجوسي مینځه را ووتل چې امام اعظم یې ولیدی کورته ولاړه مجوسي ته یې وویل چې ابو حنیفه دي غواړي. مجوسي پوه سو چې په پور پسي راغلی دی، نو مجوسي چونکه پور د امام اعظم رحمه الله خنډولی و، نو په ډېر عجز او عذر له کوره دباندې راووتی، امام المسلمین مجوسي ته وویل چې ته د پور عذر مه کوه ته راسه زما څخه یوه خطاء پېښه سوې ده د هغې په باره کې ماته مشوره راکړه، نو امام اعظم رحمه الله د نجاست او د چوتې او د دېواله قصه وکړه او مجوسي ته یې وویل چې مشوره راکړه چې زه دد دېوال څرنګه چاره وکړم او څرنګه یې درپاک کړم. پر مجوسي دې خبرې ډېر تاثیر وکړی. نو مجوسي ورته وویل چې اول به زه خپل ځان درته پاک کړم، نو یې وویل ﴿لا اله الا الله محمد رسول الله﴾ او مجوسي بالفور مسلمان سو.

**نکته**: چونکه امام اعظم رحمه الله دا ببخې لږ ظلم پر مجوسي روا ونه باله نو دده د تقوی له برکته مجوسي مسلمان سو، او د ابدي بدبختي څخه د مجوسیت خدای ﷻ خلاص کړی.

**جزاء الظالم**: حکایت روای وایي چې یو نصراني و ماینه یې پر خره سپره کړې وه او هغه هم حامله وه، په یوه قریه کې د مسلمانانو تېرېدی، یوه ډله د مسلمانانو ببباکانو ناسته وه، نو یو جاهل د دوی څخه چې وه یې لېدل چې نصراني دی ور ولاړ سو او د خره لکۍ یې پرې کړه خره لغتې کړې او ښځه یې د مځکې ووهله او ښځې حمل واچاوه، نو نصراني ولاړی د هغه ځای د محکمې د مسلمانانو ته یې شکایت د دغو رندانو بېباکانو وکړی، قاضي هغه رندان راوغوښتل، هغه رند بېباکه چې دغه

کار یې کړی و په خپل جرم اقرار وکړی، نو قاضي و هغه رند ته وویل چې دا خر بوزه هر وخت چې یې بېرته لکې. راشنه سوه بیا به یې دغه نصارٰی ته وسپارې، او ماینه یې هم بوزه چې بیا حامله سوه دې نصراني ته یې ورسپاره، نصراني وقاضي ته وویل اهکذا حکم شریعتکم المشهورة في الدنیاء بالعدالة والانصاف، بیا نصراني د آسمان وخوا ته پورته وکتل او داسې یې وویل خدایه ته خو حکیم یې زما خو د قاضي پر دغه حکم صبر نه کېږي، خدایه ﷻ ته ناصر د مظلومانو یې او زه مظلوم یم. خدایه زما حق ددې قاضي ظالم څخه پر دې دنیا راواخلې فمسخ الله ذالک القاضي فصار حجرا وشکله شکل القاضي المذکور من ساعته.

**درویش وایي:** چې دې قاضي خو اول په شریعت اسلامي مطهره پسخنده وواه، او بل یې پر نصراني ظلم وکړی، او په شریعت مطهره کې ظلم پر کافر هم نه دی روا، او ښېرا د مظلم خدای ﷻ قبلوي که څه هم کافر وي

**پوه سه:** چې په مسلمانانو کې مسخ جزي روا ده البته مسخ کلي په برکت د علیه الصلوة والسلام ددې امت څخه مرفوع ده.

## يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ الْأَهِلَّةِ قُلْ هِيَ مَوَاقِيتُ لِلنَّاسِ وَالْحَجِّ ط

او صحابه ﷺ له تا څخه سوال کوي په بره کې د اهله وو.

**پوه سه:** چې اهله جمع د هلال ده، هلال د نوي میاشتې د اولې شپې څخه بیا تر درو شپو وایي.

**پوه سه:** چې مفسرین رح په اتفاق وایي چې معاذ بن جبل او ثعلبه بن غنم ﷺ چې دواړه انصار وه د علیه الصلوة والسلام څخه یې پوښتنه وکړه یا رسول الله ما بال الهلال یبدوا دقیقا مثل الخیط ثم یزید حتی یمتلي نوراً ثم لایزال بنقص حتی یعود کما بدء اولاً ولایکون علی حالة واحدة یعني لکه لمر یا نور ستوري نو دا آیت نازل سو.

**ترجمه:** څه حال د هلال دی چي اول داسي ښکاره سي نری لکه تار او بیا کرار کرار یې نور زیاتیږي حتی چي له نوره ډکه سي، یعني لکه پر څورلسم تاریخ او بیرته کرار کرار یې نور کمیږي حتی چي بیرته لکه اول وار چي ښکاره سوې وه نری سي، او ولي پر یوه حال نه پاتیږي.

**یوه سه:** چي ددې آیت په تفسیر کي اختلاف دی یعني چي ددغو دوو صحابه کرامو د سوال غرض څه و، بیضاوي وایي چي غرض ددوئ د سوال و د حکمت الهي څخه له حالات مذکوره و کي د سپوږمی، نو علیه الصلوة والسلام ته خدای پاک وویل چي ته دوئ خبر کړه په حکمت الهي چي دا اهلة وختونه دي د خلګو لپاره او د حج لپاره، یعني چي په دغو اهله و سره دوئ اوقات د پوروو او د کښتو او تجاراتو معلوموي، او داغه رنګه دوئ په معلوموي اوقات د هغو عباداتو په وخت معین پوري لکه روژه او بالخصوص وخت د حج چي هغه معیني میاشتي غواړي، اداءً او قضاءً بخلاف الصوم والصلوة ولي چي هغه معین وخت اداءً غواړي او قضاءً یې نه غواړي، ولهذا خص الحج بالذکر.

**یوه سه:** چي مواقیت جمع د میقات ده چي مراد دلته خندي وختونه دي.

**فائده:** فرق په منځ کي د وخت او د مدت او زمانې دادی چي مده چي مطلق ذکر سي مراد ځندي حرکت د فلک دی د ابتداء څخه تر انتهی پوري، او زمان هغه مدې ته وایي چي وېشل کېږي وکلو، میاشتو، ورځو او ساعاتو ته، او وخت هغه زمانې ته وایي چي سړی وټاکي د یو کار لپاره که دنیاوي وي او که اخروي.

**درویش وایي:** چي پر بیان د بیضاوي سوال او ځواب سره موافق سوه، ولي چي سوال هم د حکمت ؤ او ځواب هم په بیان د حکمت ورکړه سو، او بعض مفسرین رح وایي چي سوال د سبب او علت څخه د حالاتو متبدله وو څخه د سپوږمی و کما بین في کتب الریاضي من القرب والبعد من الشمس

واجتماعها، نو پر دې تقدير جواب پر اسلوب حكيم بناء دی يعني چې لائق د حاله سره د صحابه وو رض دا و چې د بيان د حكمت پوښتنه يې كړې وايې نه د بيان د علت او سبب، ولې چې رسول الله ﷺ لپاره د احكامو الهيه و مبعوث و، نه لپاره د بيان علله عقليه او رياضيه وو چې اصل مبناء د هغو پر اصول فاسده وو ده كما سيئاتي في موضع من هذ التفسير ان شاء الله العزيز، ولله در القاضي البيضاوي رحمه الله حيث اختار التفسير الاول لان فيه اخراج الكلام مقتضى الظاهر هو الصل كما تقرر في علم المعاني، والعجب من المظهري رحمه الله حيث قال بعد ايراد التفسير الثاني وهو الاظهر آه مع كونه شديد الانكار في مواضع من تفسيره على الاصول الرياضية جدا.

**پوه سه:** چې حج تخصيص بعد التعميم دی لان الحج داخل في قوله قل هي مواقيت آه وهذا التخصيص للتنبيه على فضيلة الحج على سائر العبادات الموقتة كالصوم والصلوة، لما قلنا آنفاً ان الحج مخصوص بالوقت المعين اعنى اشهر الحج اداء وقضاء بخلاف سائر العبادات حيث لا توقيت لها قضاء.

## وَلَيْسَ الْبِرُّ بِأَنْ تَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ ظُهُورِهَا

شان نزول د آيت دادی چې انصارو په جاهليت كې چې به د حج يا د عمرې احرام وتاړه، نو نه باغ ته او نه سرای ته او نه خونې ته د دروازې له خوا ورتی بلكه كه په د ختبو سرای نو د شا له خوا به يې سورې كړی، او تر هغه سوري به وتی او ننوتی، تر هغو پورې چې احرام يې نه وايې خلاص كړی دغه ددوی كار و او دغه دوی ښه كار باله له دې سببه چې دوی به ويل چې په احرامو كې د احرام تولة عادات بدلېږي، لكه په لباس او خوشبوي لگولو كې نو بايد د دخول او خروج د كورو عادت هم بدل سي، نو خدای ﷻ دا تشديد ددوی په احرام كې رد كړی چې دا هيڅ بر او د ثواب كار نه دی، البته قريش چې حمس يې بلله هغو ته اجازه د دخول او خروج پر دروازه وه، په روايت كې د حاكم د جابر رض څخه داسې راغلي

دي چي علیه الصلوة والسلام په وخت کي د احرام په یو باغ کي واو پر دروزه له باغ څخه ووتی، نو قطبه بن عامر الانصاري چي هغه هم په احرام کي و پر هغه دروازه په علیه السلام پسي ووتی، نو انصارو وعلیه الصلوة والسلام ته وویل چي قطبه ډیر بد سړی دی چي په احرام کي په تاسي پسي در ووتی نو علیه الصلوة والسلام وقطبه ته وویل ماحملک علی ما فعلت، قطبه ورته وویل چي ماته ولیدلې چي پر دروازه ووتلې نو زه هم پر دروازه در پسي ووتلم. علیه الصلوة والسلام ورته وویل اني رجل احمسي" یعني زه خو قریش یم مور ته خو اجازه د خروج الباب سته. قطبه ورته وویل چي زه خو بیا ستا پر دین یم، فانزل الله هذه الآیة.

**سوال:** دا آیت د دمخه آیت سره څه تعلق لري ولي یې په عطف سره راوړی؟

**ځواب:** ظاهره خو داده چي ولیس البر آه" دي معطوف وي پر مقول د قل، یعني هي مواقیت آه فلابد من المناسبة بین المعطوفین کماتقرر في النحو، چي دغه دوه سواله یعني ویسئلونک آه، او بل دا چي دخول د ظهور البیوت څخه ورتګ په حال کي د احرام برابر دی او که نه فلهذا عطف بین الجوابین والسؤال الثاني وان لم یصرح به القرآن لکنه مقدر یدل علیه الجواب، یعني ولیس البر، او بل جواب دادی چي په معطوف علیه کي مواقیت الحج ذکر سول او دخول من ظهور البیوت هم له امورو څخه د حج و نو دا به هم استطراداً وتبعا ذکر کړي که څه هم چا یې سوال نه و کړی، وذکر البیضاوي جوابین اخرین ترکناهما بسبب الاطناب وفیما ذکرنا کفایة.

**تنبیه:** که څوک ولیس البر آه عطف سي پر یسئلونک باندي نو بیا جامع ده عطف یې دادی چي اول قول لاینبغي دی یعین پر تفسیر ثاني کمامر عنقریب، او معطوف فعل لاینبغي دی بل هو مخترع الانصار، فتدبر غایة التدبر لیظهر لک حاصل ماقلنا.

وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنِ اتَّقٰى

**پوه سه:** چي چونکه حمل د "بر" پر "من اتقی" نه صحیح کیدی لکون البر مصدراً ومن اتقی ذاتاً، نو اهل تفسیر مضاف محذوف بولي یا د اسم سره یعني ذو البر من اتقی او یا له خبره سره والتقدیر ولکن البر بر من اتقی، او یا حمل مبالغةً دی والکل ظاهر في امثاله.

وَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ

ای في حالة الاحرام کما في غیرها

أَبْوَابِهَا وَاتَّقُوا اللّٰهَ

ای في اتیان العبادات واتقاء المحرمات

لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿۱۸۹﴾

ای لکی تفلحوا من العذاب

او ورځي کورو ته د درواز له خوا څخه لکه دمخه تر احرام چي ورتلاست، او د خدای ﷻ څخه ببرېږي یعني عبادت د خدای ﷻ پر ځای کوي، او د منهیاتو څخه پرهېز کوئ ولي چي "بر" هم دغه کار دی نه دخول د ظهور البیوت له خوا ورتګ په حالت کي د احرام، ددې لپاره چي تاسي به خلاصون پیدا کړئ له عذاب څخه د ورځي د قیامت.

**درویش وایي:** چي شان نزول ددې راتلونکي آیت مفسرین رح په اتفاق داسي بیانوي په روایت د ابن عباس رضی الله عنه چي په کال د حدیبیې چي علیه الصلوٰة والسلام په نیت د عمرې سره د پنځلسو (۱۵) اصحابو رضی الله عنهم قریشو د مکې وبیت الله شریفي ته د عمرې اجازه نه ورکوله آخر الامر یې صلح پر دې وکړه چي بنسخ کال به تاسي بېرته ځئ او پر کال به راځئ. درې ورځي موږ تاسي ته بیت الله در خالي کوو. خیر علیه السلام دا بل کال

سره د اصحابو كرامو ﷺ تصميم د تګ د بيت الله شريفي لپاره د عمرې ونيوى، او اصحاب ﷺ بېرېدله چي كفاره د مكې به وفا په وعده سره ونه كړي او بيا به دوئ د مسجد الحرام څخه منع راتـه وكړي او جنګ به راسره وكړي، او چونكه دغه مياشت د اشهر حرمو څخه وه چي قتال پكښي روا نه و، نو عليه الصلوة والسلام ته يې عرض وكړى چي موږ به څه كوو كه قريشو زموږ سره جنګ كاوه فانزالله هذه الآية.

وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوا ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ ﴿١٩٠﴾

او تاسي جنګ كوئ په لاره كي د خداى ﷻ يعني لپاره د اعلاء كلمة الله او لپاره د اعزاز د دين الله يعني نـه لپاره د غنيمت او يا عصبيت او رياء وغيره، نو سبيل چي معنا يې لار ده مستعار ده لپاره د دين الله لكه لار چي سړى وصل كوي ومطلوب ظاهري تـه، دين الله هم سړى وصل كوي د مرضات الرب جل وعلاته، او د هغو كسانو سره چي ستاسي سره جنګ كوي لكه په قرار د شان نزول كفار مكه چي تاسي توهم د جنګ ځنډي كوئ.

**پوه سه**: چي دا اول آيت دى چي مسلمانانو تـه د جنګ اجازه وركړه سوه په مدينه منوره كي لكن د هغه كفارو سره چي هغه ستاسي سره جنګ كوي، او كه يې جنګ نه كاوه تاسي به هم جنګ نه ورسره كوئ، نو پر دې تقدير دا آيت منسوخ دى په وروستني آيت سره، واقتلوهم حيث ثقفتموهم. يعني وژنياست كفار هر ځاى چي يې پيدا كړئ كه دوئ جنګ كوي او كه يې نه كوي، او پر تقدير مذكوره د لاتعتدوا معنا داده چي تاسي ابتداء په جنګ لاس مه پوري كوئ، او يا نابيره حمله پر كفارو مه كوئ، بلكه اول اول د دين دعوت وركړئ.

**فائده**: په دې آيت كي دا سوال پيدا كېږي چي يقاتلون خو باب د مفاعله دى چي دو طرفه فعل غواړي نو د "الذين يقاتلونكم" قيد مستدرك دى، نو

ددې سوال په ځواب کې قاضي بيضاوي رحمه الله درې وجهې راوړي دي

(۱) مراد له "الذين يقاتلونكم" څخه هغه کسان دي چې تاسي ته د دښمنۍ له لارې منصوبه د قتال جوړوي يعني بالفعل مقاتلين نه دي مراد بلکه هغه کسان دي چې صدد کې قتل خو وي که څه هم بالفعل په قتال يې لاس نه وي پورې کړی، وعلى هذا كما قلنا هذه الآية منسوخة بقوله تعالى "فاقتلوا المشركين كافة" ولې چې په آيت فوق کې خدای ﷻ مسلمانان د هغو کسانو څخه منع کړي دي چې هغه جنګ نه غواړي.

(۲) مراد د "الذين يقاتلونكم" هغه کافران دي چې له هغو څخه د جنګ توقع کېږي دون غيرهم كالمشائخ والنساء والصبيان، نو دا کسان خو په مفاعله کې نه دي داخل حتى چې ذکر يې مستدرک سي، نو آيت فوق منسوخ نه دی ولې سپين ږرو او د ښځو او نابالغه کوچنيانو مرګ اوس هم نه دی روا.

(۳) د "الذين يقاتلونكم" څخه ټوله کفار مراد دي ولې دوئ خو که څه هم بالفعل په جنګ نه وي درسره اخته لکن په سبب د اختلاف في الدين په قصد کې د قتال دي وعلى هذا ايضا فلايلزم الاستدراک، وايضا الآية غير منسوخة بلکه مضمون ددې آيت او "فاقتلوا المشركين كافة" سره يو دی.

**سوال:** پر دې تقدير په دې آيت خو نساء او صبيان او مشائخ او اهل ذمه ټوله داخل دي، او داغه رنګه په "فاقتلوا المشركين كافة" کې هم دا ټوله فرق داخل دی؟

**ځواب:** هو داخل خو دی لکن په احاديثو صحيحه مذکوره ډلې څخه ايستل سوي دي، او هغه حديثونه مخصص دُ عموم د مذکوره آيتو دي

* الاحاديث المخصصة: روى البغوي رحمه الله عن بريدة رضي الله عنه قال كان النبي ﷺ اذا بعث جيشا قال اغزوا باسم الله وفي سبيل الله، قاتلوا من كفر بالله ولاتغلوا، او د غنيمت څخه شی مه غلا کوئ" ولاتغدروا" او د کافرانو سره غدر هم مه کوئ "ولا تقتلوا امرئة" ولا ولداً ولاشيخا كبيرا، وعن

عبدالله بن عمر ﷺ قال نهى رسول الله ﷺ عن قتل النساء والصبيان متفق عليه، وروى ابو داوٗد عن انس ﷺ انطلقوا باسم الله على ملة رسول الله ﷺ لاتقتلوا شيخا فانيا ولا طفلا صغيرا ولا امرئة ولا تغلوا ضموا غنائمكم واصلحوا و احسنوا ان الله يحب المحسنين

**پوه سه:** چي د لا يحب المعتدين معنا داده چي خداى ﷻ اراده د خير ومعتدينو ته نه لري

**وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ وَأَخْرِجُوهُم مِّنْ حَيْثُ أَخْرَجُوكُمْ وَالْفِتْنَةُ أَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ**

او تاسي وژنئ كافران هرچېري چي مو پيدا كړه، او تاسي وباسئ كافران له هغه ځايه څخه چي دوئ تاسي له هغه ځايه څخه ايستلي ياست، يعني مكه مكرمه چناچه داغسي هم وسوه چي مكه فتحه سوه هغه كافران چي ايمان يې نه راوړى د مكې څخه ووتل. او فتنه د كفارو يعني شرک ددوئ په خداى ﷻ سره او په كال د حديبيې چي تاسي يې عمرې ته نه پرېښوولاست سخت دي په نيز د خداى ﷻ تر قتل ددوئ نو ځكه ددوئ وژل يې وتاسي ته روا كړه.

**فائده:** مقاتل بن حبان ﷫ وايي چي دا آيت منسوخ دی په هغه وروسته آيت يعني "ولا تقتلواهم عند المسجد الحرام آه" واعترض عليه المظهري ﷫ چي ناسخ خو تر منسوخ بايد متراخي وي په زمانه د لته خو دا دوه آيته سره متصل دي نو دې ته په اصطلاح د علم اصول تخصيص العام وايي چي فتنه په اصل لغت كي وراندي كول دي د سرو زرو پر اور تا چي غش او خيره يې څندي جلاسي، وروسته لفظ مذكور را نقل سو هر هغه كار ته چي سبب د امتحان وي تشبيها بمعناه في الاصل. فالمعنى المحنة التي يمتحن بها الانسان كالاخراج من الوطن المالوف مثل مكة المكرمة فيما نحن فيه

**فائده:** دا جمله اى "الفتنة اشد آه" متعلق ده په هغه جمله سابقه سره واخرجوهم آه
**فائده:** اخراج عن الوطن په دې سبب اشد دى تر قتل چي د قتل الم يو کرى وي او د اخراج الوطن الم او درد دوام داره دى كما يدل عليه التجربة، والخبر الذي ورد فيه حب الوطن من الايمان، وقيل لبعض الحكماء ما اشد من الموت، قال الذي يتمنى فيه الشخص الموت يعني الهجرة.

وَلَا تُقٰتِلُوْهُمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ

يعني مطلق الحرم لاخصوص المسجد

حَتّٰى يُقٰتِلُوْكُمْ فِيْهِ ۚ فَاِنْ قٰتَلُوْكُمْ

اى في الحرم المكي

فَاقْتُلُوْهُمْ ۗ كَذٰلِكَ جَزَآءُ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۹۱﴾

اى في ذالک الحرم

او تاسي جنګ مه ورسره کوئ د کفارو سره د مکې په حرم مکې کي تر هغو پورې چي دوئ ستاسي سره جنګ يعني په حرم مکي کي او که دوئ جنګ درسره شروع کړی په حرم مکي کي، نو تاسي وژنئ دوئ په هغه حرم کي او داغه ده جزاء د کافرانو يعني چي په مثل ددوئ د فعل به جزاء ورکړه کېږي.
**پوښتنه:** په دمخه آيت کي تېره سوه "واقتلوهم حيث ثقفتموهم" نو حيث خو لپاره د عموم د مكان القتل دى يعني که حل او که حرم وي او په دې کي "ولاتقاتلوهم عند المسجد الحرام آه" نو دا به تعارض نه وي؟
**ځواب:** صاحب د رواح البيان وايي چي دا آيت تخصيص دی ددمخه آيت لپاره او تخصيص ته تعارض نه وايي.

فَاِنِ انْتَهَوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۹۲﴾

او که دوئ منع سي له جنګه او داغه رنګه له کفره، نو په تحقيق سره چي خدای ﷻ بخښونکی ددوئ او مهربانه دی.

**پوه سه**: چي ترجمه د آيت يو وازي په منع سره د قتال کولو تقصير دی او صحيح نه ده، ولي چي نفس منع د قتال يعني چي کفر باقي وي دوی مستحق د بخښنې نه دي فضلا عن استحقاق الرحمة، بيضاوي، روح المعاني، روح البيان، تفسير کبير، مظهري.

## وَقٰتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ وَّيَكُوْنَ الدِّيْنُ لِلّٰهِ

او تاسي جنګ کوئ له مشرکانو سره حق چي نه سي پاته فتنه يعني الشرک. او سي دين او عبادت خاص لپاره د خدای ﷻ يعني د شيطان هيڅ برخه پکښي نه وي چي بت پرستي ده.

**مسئله**: د عربو د وثني يعني بت پرسته حکم دادی چي يه به اسلام راوړي او يا به قتل کېږي، روح البيان.

**فائده**: ضمير د "هم راجع دی الی الذين يقاتلونکم ته چي مشرکان د عربو دي لقوله تعالی في موضع آخر "تقاتلوهم او يسلمون" نو په حق د مشرکي العرب جزيه نسته بلکه جزيه په حق کي د اهل کتابو او مجوسيانو او د بت پرستانو د عجمو ده، واخطاء المظهري رحمه الله في عدم الفرق بين مشرکي العرب ومشرکي العجم في قبول الجزية منهم جميعا ان شئت، فطالع حاشية البيضاوي، روح البيان.

## فَاِنِ انْتَهَوْا فَلَا عُدْوَانَ اِلَّا عَلَى الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۹۳﴾

او که دوی نهي سوه له شرکه څخه که مشرکان د عربو وه. او يا نهي سوه د جنګ څخه د جزيه پر ورکړه سره که اهل کتاب وه او يا مجوسيان او يا مشرکان د عجمو وه، نو ظلم او تجاوز نسته مګر پر ظالمانو باندي او دغه منتهين خو اوس ظالمان نه دي.

**پوښتنه**: چو نکه په ترتب کي د جزاء په دې آيت کي يعني "فلا عدوان آه" پر مذکور شرط يعني "فا انتهوا" باندي خفاء ده، ولي چي فلا عدوان آه جمله خبريه ده بيله ترتبه پر ان انتهوا" صحيح ده نو توجيه د ترتب به څه وي؟

**ځواب:** اصل جزاء محذوفه ده یعني "فلاتعتدوا علیهم" او "فلاعدوان" آه علت د جزاء محذوف دی نو په ځای کي د جزاء يې راوړی، ولي چي علت خو مسلتزم حکم لره دی نو ملزوم په ځای کي د لازم کنایةً وډراوه، وهذا شائع في العربية.

**پوه سه:** چي مشرکانو د مکې مکرمې چي علیه الصلوة والسلام سره د اصحابو کرامو ﷺ چي لپاره د عمرې په سنه شپږ کي د هجرت محرمین او هدایا هم ورسره وې او خبر د منع د قرېشو د دوئ له دخول څخه د مکې و علیه الصلوة والسلام ته د مخه رسېدلی و، نو ځکه علیه الصلوة والسلام په حدیبیه کي ځای ونیوی او میاشت د ذو القعدة وه چي د اشهر حرم څخه ده، خیر قصه اوږده ده حاصل یې دادی چي آخیر الامر علیه السلام د قریشو سره صلح پر دې وکړه چي مکې والو ورته وویل چي بنخ کال به تاسي ناکامه ځئ پر کال د ذو القعدې په میاشت کي به د عمرې لپاره راځئ. موږ درې ورځي تاسي په مکه یعني مسجد الحرام تخلیه کوو او تاسي به عمره وکړئ، نو صلح نامه چي لاسلیک سوه علیه الصلوة والسلام او اصحابو کرامو ﷺ خانونه حلال کړه یعني سرونه یې وخریل یا یې قصر وکړی. او کالي یې واغوستل او بېرته مدینې منورې ته ستانه سوه، او په سنه اوه کي بیا د ذو القعدې په میاشت کي د عمرة القضاء لپاره یې تیاری ونیوی، او مسلمانان پر دې بېرېدل چي کفار مکه به پر وفاء وعده ونه کړي او زموږ سره به جنگ وکړي، او جنگ په حرم مکي کي او په حال کي د احرام زموږ او په شهر حرام کي به واقع سي، نو په دې میاشت کي هتک یعني سپکاوی د حرم مکي او هتک د شهر حرام به راسي، نو دا آیت نازل سو.

**درویش وايي:** چي صحیح شان نزول د آیت خو دغه و، لکن مظهري رحمه الله دا په قیل سره راوړی دی، او یو بل شان نزول یې اولاً راوړی دی والله اعلم بما في ضمير عباده، فانزل الله تعالى هذه الآية

## اَلشَّهْرُ الْحَرَامُ بِالشَّهْرِ الْحَرَامِ

یعني د حرمت د شهر الحرام هتک که تاسي مسلمانان وکړئ په جنګ سره د قریشو تاسي ته ګناه نسته، ولي چي دا هتک خو په مقابل کي د هتک د قریشو دی یعني چي اول هتک د حرمت دوئ وکړی په جنګ سره ستاسي او تاسي مدافعت د جنګ کوي ولا حرج علی المدافع. بلکه دا قصاص د فعل ددوئ دی.

## وَالْحُرُمٰتُ قِصَاصٌ

او هتک د حرماتو یو له بله کسات دی یعني حرمت د شهر الحرام او حرمت د حرم محترم او حرمت د احرام د مسلمانانو دا په حق کي د هغه چا دی چي هغه مراعات ددغه حرمات کوي، او څوک چي ددغو حرماتو هتک وکړي هغه ته به قصاصا جزاء ورکول کیږي.

## فَمَنِ اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوْا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ ۪ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِيْنَ ﴿۱۹۴﴾

او که چا تجاوز وکړی پر تاسي باندي یعني په جنګ سره په حرم کي او په شهر حرام کي او تاسي په حال د احرام کي واست، نو تاسي هم تجاوز وکړئ په مثل سره د اعتداء ددوئ.

**پوه سه**: چي جزاء ته اعتداء ّ یې اعتداء وویل مشاکلة مثل جزاء سیئة سیئة، او تاسي د خدای ﷻ څخه بېرېږئ بېله اجازې د خدای هیڅ عمل مه کوئ، او په دې پوه سئ چي خدای ﷻ ملګری دی د متقینو سره په عون او کومک او نصر سره.

**فائده:** په حدیث مبارک کي راغلي دي چي علیه السلام چي په سنه اوه کي سره د اصحابو ﷺ د عمرة القضاء لپاره راغله مشرکانو د مکې وفا بالعهد وکړه او دوئ يې بېله مزاحمته د عمرې افعالو ته پرېښول، لکن قریشو په صلح کي د حدیبیې دا شرط اېښی و چي وروسته تر افعالو د عمرې درې ورځي د استوګني حق په مکه کي لرئ او بیا به وځئ. چونکه علیه الصلوة والسلام په دې لنډ سفر کي میمونة بنت الحارث ﷺ په نکاح کړې وه، نو د علیه الصلوة والسلام دا خیال و چي څو ورځي نوري په مکه کي تېري کړي، چي مراسم د واده د میمونې ﷺ په مکه کي پر ځای کړي. لکن قریشو دا تمنا دده مباک ونه منل او حضرت علي ﷺ ته یې وویل چي ده ﷺ ته ووایه چي له مکې څخه په قرار د وعدې د صلح د حدیبیې له مکې څخه ووزه. نو علیه الصلوة والسلام په قرار د وعدې سره له مکې مکرمې څخه سره د اصحابو ﷺ ووتل او مراسم د واده د میمونې ﷺ په سرف نامي ځای کي اجراء کړه.

**فائده:** خدای ﷻ موږ مسلمانان په غزاء سره امر کړو ددې حکمت لپاره چي ظاهر کړئ خلګو ته چي څوک دی هغه سړی چي خپل ګران وجود في سبیل الله قربان کړي، او بیا په زکوة سره یې امر کړي یو تاچي ظاهره سي چي څوک دی هغه چي لپاره د محبت الهي د زړه پنډکي چي مال دی د زړه څخه لېري کوي او په لاره کي د خدای ﷻ یې ښندي.

نو غزا او زکوة معیار او مدار د محبت الهي دی ولي طبعا هر انسان حب الحیاة والمال په زړه کي لري، نو خدای ﷻ زموږ مسلمانانو امتحان په غزا او زکوة سره کوي، تاچي د خولې دعوه د محبت الهي د مدعیانو د محبت دفع سي ولي چي هر انسان او مسلمان په خوله د عوه د محبت الهي کوي، نو د رښتیاګو دعوه او د دروا‌غو دعوې به د محبت الهي به په غزا او زکوة سره معلومه سي، وهذا من الاسرار المکنونة في الغزو والزکوة.

قال المولوي المعنوي رحمه الله في المثنوي

اى شهان کشتيم ما خصم برون ❀ ماند خصمى زو بتر درا ندرون

کشتن اين کارعقل وهوش نيست ❀ شير باطن سخره خرگوش نيست

سهل شيرى دان که صفها بشکند ❀ شير آنست که خود را بشکند

كذا في روح البيان

## وَأَنفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ

او تاسي صرفوئ يعني اموال خپل په لاره کي د خداى جل جلاله

**پوه سه:** چي مراد د في سبيل الله څخه هغه دين د اسلام دى چي سړى رسوي و رضا ته د خداى جل جلاله او رحمت او جنت ته. نو هر مال چي سړى يعني مسلمان صرف کړي په مرسته کي د دين او په اعزاز کي د دين هغه په دې آيت کي داخل دى، اولين مصرف يې جهاد في سبيل الله دى. او داغه رنګه په حج يا په عمره کي او په صلة الارحام د اقرباؤ، او يا يې ضعفاؤ او فقراؤ ته ورکړي، او دغه رنګه په اهل بيت او عيال يې مصرف کړي.

## وَلَا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ

او تاسي مه اچوئ پخپل لاس ځانونه وهلاکت ته

**پوه سه:** چي کلمه د "با" زائده ده ولي چي "تلقوا" متعدي بنفسه دى كما في قوله تعالى فالقى موسى عصاه.

**فائده:** القاء چي په باسره متعدي سي مراد ځندي شر دى او مراد له "ايدي" څخه خپل ځانونه دي، او تعبير په "ايدي" وو سره يې له دې جهته وکړى چي اکثر افعال د سړي صادر د لاسونو څخه کېږي.

**فائده:** بعض مفسران رح وايي چي مراد له "تهلكة" څخه چي په معنا د هلاکت دى داده چي سړى په صرفولو کي د مال اصراف کوي او تر امدني يې روانګي ډېره وي لکه په هغه آيت کي چي اشاره ورته سوې ده ﴿والذين اذا انفقوا لم يسرفوا ولم يقتروا وکان بين ذالک قواما﴾ او بعض مفسرين رح وايي

چي القاء د ځان وهلاکت ته داده چي سړی غزا نه کوي او په مهماتو کي د غزاء مال نه مصرفوي، نو دښمن کرار کرار قوي کېږي او آخر پر مسلمانانو مسلط سي او دوئ به هلاک کړي، او وطنونه د مسلمانانو به کافران قبضه کړي، او د دویم تفسیر تائید هغه حدیث د ابو ایوب انصاري ﷺ کوي چي د ای ﷻ څه وخت دین ته د اسلام په عربو او شاوخوا کي عزت او غلبه ورکړه او عرب ټوله په دین کي د اسلام داخل سوه او دښمنان د اسلام لکه یهودیان د خپلو ځایو څخه وشړل سوه او یا قتل سوه، نو مونږ انصارو پخپل منځ کي سره وویل چي اوس اسلام قوي سو، نو کاشکي مونږ خپلو مالونو مځکو او باغونو ته رجوع وکړو چي خرابه ځایونه بېرته از سر نو آباد کړو، فانزل هذه الآیة ﴿وانفقوا في سبیل الله﴾ الی اخیر الآیة. یعنی جهاد في سبیل الله لپاره د تعمیر د مځکو او د باغونو مه پریږدئ ولي دښمنان به بېرته ځانونه قوي کړي او تاسي مسلمانان په هلاکت کي واچوي او مقبوضه ځایونه به بېرته در څخه قبضه کړي. نو ځکه ابو ایوب انصاري ﷺ تر مرګه په عزاګانو کي مصروفه و، حتی چي اخیره غزاء یې په خلافت کي د معاویه ﷺ د قسطنطنې غزاء وه چي هغه یې فتح کړه، نو ابو ایوب انصاري ﷺ په خدایي مرګ هلته وفات سو، او د قسطنطنیې د کلا په بیخ کي دفن سو، او دده په قبر سره مسلمانانو طلب د شفاء او بارانو کاوه. فرضی الله تعالی عنه وارضاه.

وَأَحْسِنُوٓا۟ ۛ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴿١٩٥﴾

او تاسي احسان کوئ په تحقیق سره خدای ﷻ خوښ لري احسان کونکي.

**پوه سه:** چي احسان په عبادت کي د خدای ﷻ هغه دی چي په یو طویل حدیث کي چي روایت یې بخاري او مسلم کړی دی راغلي دي چي جبرائیل ﷺ د علیه السلام څخه پوښتنه د ایمان وکړه او علیه السلام یې بیان مفصل ورته وکړی، او بیا یې پوښتنه د اسلام څندي وکړه، او علیه

السلام د هغه بیان هم مفصل ورته وکړی، او بیا یې ورته وویل چې "ما الاحسان ای الاخلاص في العمل" نو علیه السلام ورته وویل "الاحسان ان تعبد الله کانک تراه، فان لم تکن تراه فانه یراک الی اخیر الحدیث" او احسان په معاملاتو کي د خلکو هغه دی چي په دې حدیث کي اشاره ورته سوې ده چي ته خوښ لره بل چا ته هغه شی چي ته یې خوښ لري وخپل ځان ته یعنی من النعمة والعافیة والرزق الکثیر الحلال الی غیر ذالک، او ته مکروه بوله وبل چا ته هغه شی چي ته یې مکروه بولې وخپل ځان ته من المرض والفقر الی غیر ذالک، رواه احمد عن معاذ ﷺ، او په بل حدیث کي هم اشاره ورته سوې ده ﴿المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده﴾ رواه اصحاب السنن الاربعة

**حکایت**: راوي وایي چي حجاج بن یوسف چي د عراق والي مقرر سو نو ده پر زر (۱۰۰۰) سترخوانه سهار او ماښام ډوډۍ ورکوله او پر هر سترخوان به لس کسه کښېنستله چي مجموعه یې لس زره کسه کېږي. لکن په اول کي به یې سپاهیان پسي استول لکن اخر یې د عراق خلکو ته وویل چي زما له طرفه څخه تاسي ته قاصد لمر دی چي لمر راوختی راځی به او چي لمر ولوېدی راځی به، راوي وایي چي یوه ورځ خلګ څه کم راغلي وه حجاج د خپل دربار باشي څخه پوښتنه وکړه چي نن ولي خلګ کم راغلي دي، هغه ورته وویل چي تا خلګ په کورو له راتګه څخه مستغني کړه، حجاج بن یوسف ته ددې سړي وینا خوند ورکړی، نو حجاج ورته وویل اجلس ای بارک الله علیک، تاریخ وایي چي دا کرم او احسان د حجاج بن یوسف و، مع کونه اظلم اهل زمانه کماثبت في التواریخ الاسلامیة.

**درویش وایي**: چي قصه د جود او احسان د حاتم طائي چي په ټوله نړۍ کي په جود او احسان سره مشهور شخصیت دی او تر زماني د علیه الصلوة والسلام لږ دمخه و، او دین یې شرک هم و، راوي وایي چي په یو مملکت کي یو بادشاه و، چي ډېر په سخاوت او جود او احسان سره مشهوره و، نو

ددې بادشاه په مجلس کې به همېشه د حاتم طائي د سخا او جود بحث کېدی خو د بادشاه به قصد او حسد په کېدی چې سره زما د ډېري سخا او کرم د حاتم طائي د سخا بحث نه قطع کېږي، نو د ځانه سره يې دا وسنجول چې تر څو چې حاتم طائي قتل نسي تر هغو زما د سخاوت موضوع په نړۍ کې شهرت نه سي پيدا کولای، نو يو سړي ته د خپل مملکت يې ډېري پيسې او يوه غټه چوکۍ ومنل چي که ته حاتم طائي مړ کړې او سر يې ماته راوړې، نو هغه سړی د مکې پر خوا روان سو چې په اطرافو کې د مکې د حاتم مسکن و، خير هلته چې ورغلی او د حاتم کور او ځای يې پيدا کړی نو په مهمان خانه کې د حاتم يې اطاق ونيوی ددې لپاره چې کله پر حاتم برې پيدا کړي چې مړ يې کړي او سر يې يوسي خپل شاه ته او انعام موعود وګټي خير د حاتم وجود ته هغه قاصد هم حيران و او خپل د شاه جود يې مشت نمونه خروار وباله، راوي وايي چې يوه مياشت دې سړي د حاتم په مهمان خانه کې تېره کړه خو حاتم هيڅ پوښتنه نه ځندي کوي، اخر الامر هغه سړي حاتم ته ووېل چې ته ولې زما څخه پوښتنه نه کوې چې ته په څه کار پسې راغلی يې، نو حاتم ورته ووېل چې د مېلمه څخه پوښتنه زما عادت نه دی، نو هغه سړي د باچا ټوله قصه ورته وکړه او خپل د راتګ قصد يې هم ورته بيان کړی، نو حاتم طائي ورته ووېل چې زما په وينه تاته دومره انعام پيدا کېږي نو زه خو مرګ ته حاضر يم لکن زه پر دې ډېرېږم چې که ته زما سره دروړې شايد شاه به درته ووايي چې دا سر خدای خبر دی چې د حاتم سر دی او که د بل چا سر دی هغه موعود انعام به وتاته درنه کړي، ولې چې ستا شاه زه نه يم ليدلی نو ښه به دا وي چې زه به پخپله در سره ولاړ سم او ستا شاه به ما پخپله مړ کړي زړه به يې هم سوړ سي او تاته به هغه موعود انعام هم پوره در کړي، قاصد د حاتم وکارنامې او سخاوت ته حيران سو، خير خو حاتم د قاصد سره روان سو او د شاه ودربار ته چې ورسېدل شاه وقاصد ته ووېل چې

څه دي وکړه، قاصد ورته وویل چې دا دی حاتم طائي مي پخپله راوستی چې ته یې سر وربرېږ کړې، شاه حیران سو او قاصد ته یې وویل چې څرنګه دې راوستی قاصد ټوله ماجرا او د مهمان نوازی ده پوره قصه ورته وکړه، نو شاه قاصد ته خپل موعود انعام ورکړی او دا یې ومنل چې بېشکه چې حاتم طائي تر ما سخي دی ولې چې زه یوازې او فقط په مال سخي یم او حاتم طائي په سر او مال دواړو سخي دی، او حاتم طائي ته یې لوی انعام ورکړی او د حاتم یې ښه فوق العادة مهماني نوازي وکړه او د خپل شوم قصد یې ډېر عذرونه ورته وویل او حاتم یې څو ورځې وروسته رخصت کړی.

**درویش وایي**: چې په نړۍ کې د سخا نوم په مسخره نه ورل کېږي. اوس د حاتم طائي بلې قصې ته غوږ ونسئ چې روح البیان د شیخ هدایي څخه او هغه د شرح د رسالې د ابن زیدون نوریه نقل کړی دی، چې یو وخت د بني اسد او د قیس د قبیلې یوه قافله روانه وه د نعمان اکبر ملک العرب د ملاقات لپاره نو یې په لاره کې د حاتم سره ولېدل، او دوئ ورته وویل چې موږ ستا څخه شرمېږو لکن یو حاجت مو راوړی دی حاتم ورته وویل ما هي؟ خلګو ورته وویل چې زموږ د یوه ملګري اوښه پر لاري ورکه سوه او دی پیاده سو نو که دغه ملګري ته یو مرکب ورکړې حاتم طائي ورته وویل چې زما مادیانه اسپه دغه ده ملګري دې پر سپور سي، نو مینځې ته یې وویل چې اسپه راوباسه، هغې چې اسپه راویستل د اسپي بچي په مور پسي رامیدان کړه مینځه هغه د اسپي بچی پخپل پوړني وتاړه چې د مور څخه یې جلا کړي د اسپي کورونګي زوروڼه کړه په مور پسي یې میدان کړه ښځې په کورونګي پسي میدان کړه حاتم طائي خلګو ته وویل چې دا یو په بله پسي ټوله ستاسې دي، نو خلګو یوه اسپه او یو کرونګي او یوه مینځه بوتله انتهی.

سعدي شیرازي رحمه الله

کرم کن که فردا که دیوان نهند منازل بمقدار احسان نهند

–او په بعض احادیثو کې د معراج راغلي دي چې علیه الصلوة والسلام ته چې د دوزخ د احوالو د لیدلو اجازه خدای ﷻ ورکړه، یو خای یې یوه خطیره ولیدل چې شا وخوا یې اور و، او په منځ کې د خطیرې یو سړی ولاړ و چې اور نه مسه کاوه علیه الصلوة والسلام چې ددې سړي پوښتنه د خزنه وو څخه د دوزخ وکړه چې دا سړی څوک دی خزنه ورته وویل چې دا حاتم طائي دی چې په سبب د سخا دی د اور د جهنم څخه ساتل سوی دی، كذا في انیس الوحدة وجلیس الخلوة، روح البیان.

قال المولوي المعنوي رحمه الله في المثنوي

مرگ بې مرگی بود مارا حلال — برگ بې برگی بود مارا نوال
ظاهرش مرگ وبباطن زنده گی — ظاهرش ابتر نهان پاینده گی
چون مرا سوی اجل عشق وهوا رست — نهی لا تلقوا بایدیکم مرا است
زانکه نهی ازدانه شیرین بود — تلخ را خود نهی حاجت کی شود
دانه کش باشد مغز وپوست — تلخی ومکروهی اش خود نهی اوست
دانه مردان مرا شیرین شده — بل هم احیاء پی من آمده است

## وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ

تاسي پوره کوئ حج او عمره لپاره د خدای ﷻ یعني چې شروع مو په وکړه بیا یې مه فاسدوئ.

**پوه سه**: چې فائده د "لله" داده چې عربو د جاهلیت به حج لپاره د صرف اجتماعاتو او تجاراتو في الاسواق او لپاره د غزلو او د فخر په نیکه گانو کاوه، او هغه خو خدایي غرض نه و نو مسلمان خدای ﷻ امر کړه په دې سره چې ستاسي قصد دې په حج او عمرې سره صرف رضاء د خدای ﷻ وي وبس، ولې چې دا دوه عمله عبادت دی او عبادت لپاره د خدای ﷻ دی.

**اختلاف المذاهب في العمرة:** پوه سه چي عمره واجب ده په مذهب کې د احمد رحمه الله وبه قال الشافعي رحمه الله في اصح قوليه، او مالک رحمه الله وايي چي عمره سنت ده وهو المشهور من مذهب ابی حنيفة رحمه الله.

**فائده:** حج خو په اتفاق او اجماع د امت فرض دی محکم علی من استطاع اليه سبيلا او فرض عين دی، او له ارکانو څخه د اسلام دی قال الله تعالی ﴿ولله على الناس حج البيت من استطاع اليه سبيلا﴾ والسبيل هو الزاد والراحته كما فسر النبي ﷺ، او په حديث متفق عليه کي راغلي دي ﴿بنی الاسلام على خمس، (١) شهادة ان لا اله الا الله وان محمدا رسول الله (٢) واقام الصلوة (٣) وايتاء الزكوة (۴) والحج (۵) وصوم رمضان﴾ او په فرضيت کي د حج احاديث کثيرة شهيرة في الكتب الستة الصحيحة وغيرها راغلي دي وتعداد الكل اطناب.

**پوه سه:** چي صاحب د روح المعاني الحنفي بالحق وصاحب روح البيان په تفسير کي ددې آيت خصوصا په سنت والي کي د عمرې د پر په زړه پوري بيان کړی دی "واوري روح المعاني" اول په دې پوه سه چي روح المعاني والا څوک دی، هو خاتمة المحققين وعمدة المدققين ومفتي بغداد العلامة ابی الفضل شهاب الدين السيد محمود الآلوسي البغدای رحمه الله المتوفی سنه (١٢٧٠) هـ ق دده د عربي عبارت پښتو ژباړه.

تاسي ګرځوئ حج او عمره چي تاسي قصد د اداء ددې دوو عباداتو وکړئ پوره او تامه، نو په دې آيت کي بيله اتمامه بعد الشروع پر بل شي دلالت نسته وهو المتفق عليه بين الحنفية والشافعية رحمهم الله ولي چي افساد د حج يا د عمرې روا نه دی او که يې وکړی بيا قضاء پر لازمه ده ولا تدل على وجوب الاصل ای اصل الحج والعمرة قال الآلوسي رحمه الله

والقول بالدلالة ای على وجوب الاصل بناء على ان الامر بالاتمام مطلقا يستلزم الامر بالآداء لما تقرر ان ما لايتم الواجب المطلق يعني الاتمام الا به

يعني الشروع فهو واجب يعني فالشروع واجب، ليس بشيئ لان الامر بالاتمام يقتضى سابقية الشروع فيكون الامر بالاتمام مقيدا بالشروع، وادعا ان معنى الآية ائتويها حال كونها تامتين مستجمعى الشرائط والاركان وهذا يدل على وجوبها لان الامر يعني ايتويها ظاهر في الوجوب "يؤيده" قرائة علقمة وابراهيم النخعى وابن مسعود ﷺ واقيموا الحج ليس بمديد، اما اولا فلانه اى التاويل المذكور في الآية بقوله ايتوابها خلاف الظاهر وعلى تقدير التسليم فلانه يمكن ان يكون الوجوب المستفاد من الامر في الآية متوجها الى القيد اعنى تامين لا الى اصل الاتيان بهما كما في قوله النبي ﷺ يعني في بيع الاموال الربوية بيعوا سواء بسواء، اصل البيع ليس بواجب بل الواجب التسوية واما ثانيا فلان الامر في القرائة المذكورة يعني اقيموا آه محمول على المعنى المجازي المشترك بين الوجوب والندب واعني مطلق طلب الفعل والقرينة على ذالك اى ان الآية المذكورة محمول على المعنى المجازي الاعم، الاحاديث الدالة على استحباب العمرة اذ قد اخرج الشافعي ﷺ في الام (هو كتاب للشافعي ﷺ) وعبدالرزاق و ابن ابي شيبة وعبد بن حميد وابن ماجه انه صلى الله عليه والسلم قال الحج جهاد (اى مفروض كالجهاد في سبيل الله) والعمرة تطوع واخرج الترمذي وصححه عن جابر ﷺ ان رجلا سأل رسول الله ﷺ عن العمرة ا واجبة هي قال لا وان تعتمروا خيرلكم.

**درويش وايي**: چي زه تعجب كوم ودې ته چي مظهري دغه حديثونه ضعيف گڼلي دي "ويوئيده" ان ابن مسعود ﷺ صاحب (قرائة واقيموا الحج والعمرة كمامر من علقمة وابراهيم النخعي ايضا) فيما اخرجه عنه ابن شيبة وعبد بن حميد قال الحج فريضة والعمرة تطوع.

**درويش وايي**: كه د قرائة مذكوره معنا هغه وايي لكه چي مخالف وايي نو څرنگه صاحب د هغه قرائة يعن عبدالله ابن مسعود ﷺ دا وايي والعمرة

تطوع. واخرج ابن ابی داوٗد عنه یعني ابن مسعود انه کان یقرء ذالک في المصاحف (یعني واقیموا الحج والعمرة لله) ثم یقول لو لا التحریج اني لم اسمع فیها من رسول الله ﷺ شیئا لقلت ان العمرة واجبة مثل الحج وهذا یدل علی انه ﷺ لم یجعل الامر في العمرة للوجوب لانه لم یسمع فیها شیئا ولعله سمع ما یخالفه (ای یخالف الوجوب وهو الاستحباب ولهذا جزم في الروایة الاولی کما مر عنقریب بفرضیة الحج واستحباب العمرة وکانه لذالک حمل الامر في قرائة علی القدر المشترک الذي قلناه بناء علی امتناع استعمال المشترک في معنییه وعدم جواز الجمع بین الحقیقة والمجاز (یعني کما تقرر في کتب الاصول)

**درویش وایي:** چي آلوسي رحمه الله وروسته د خصم د دلائلو جوابونه ورکړي او د هغو حدیثو چي مظهري رحمه الله په تائید د مذهب د خصم یعني وجوب العمرة راوړي دي هم یې په زړه پوري جوابونه ورکړي دي نو په دې پاره کي یعني لپاره د تحقیق د مذهب د حنیفیانو او شافعیانو روح المعاني جلد ثاني د صفحه ۲۸ څخه بیا تر صفحه ۸۲ پوري مطالعه کړئ او د مظهري تفسیر د سیقول په پاره کي د ص ۲۱۶ ص ۲۱۷ ص ۲۱۸ ښه په غور مطالعه کړئ او انصاف په تاسي پوري اړه لري، درویش خو د آلوسي رحمه الله کلک ملاتړ کوي والله اعلم.

**فائده:** ارکان د حج پنځه دي (۱) احرام (۲) وقوف العرفة (۳) الطواف بالبیت الشریف (۴) سعي بین الصفاء والمروة (۵) حلق الراس او تقصیره. نو رکن د حج هغه فعل دی چي خلاصوالی د احرام بېله هغه فعله نسي کېدلایي، او واجبات د حج هغه دي چي په ترک سره یې دم لازمېږي، وسننه ما لایجب بترکه شیئ وبفعله یحصل الثواب، او په عمره کي هم ارکان سته او هم واجبات او هم سنن سته. نو ارکان د عمرې څلور دي (۱) الاحرام (۲) والطواف (۳) والسعي بین الصفاء والمروة (۴) وحلق الراس او تقصیره.

**فائده:** حج لره دوه تحلل دي او اسباب د تحلل درې دي (۱) رمی الجمرة العقبة یوم النحر (۲) وطواف الزیارة (۳) والحلق او التقصیر، نو چي ددغو درو څخه دوه پیدا سي یحصل التحلل الاول، او په دریم سره تحلل ثاني پیدا کیږي او تر تحلل و وروسته ده ته ټوله مخظورات د احرام راوا کیږي الا النساء یعني وطي د ماینې سره او په تحلل ثاني سره ټوله روا کیږي، فاحفظ هذه الفائدة.

**فائده مهمه:** امت مرحومه محمد یه ﷺ پر دې خبر متفق دی چي کول د عمرې او د حج پر درې قسمه جائز دی، والاختلاف في الافضل منها.

**الوجه الاول الافراد:** او صورت د افراد دادی چي سړی له میقات څخه په یوازې حج احرام وتړي ویقول لبیک بحج، بیا پر هغه احرام باقي وي تر وخته د اداء د افعالو د حج او وروسته بیا له حل څخه چي د هغه خای نوم دی چي تر منځ د میقات او د حرم واقع دی احرام د عمرې وتړي او عمره هم پای ته ورسوي؛ په دې صورت کي دم د شکریه نسته.

**والوجه الثاني التمتع:** او د تمتع صورت دادی چي اول وار د میقات څخه په اشهر کي د حج احرام د عمرې وتړي او ټوله افعال د عمرې اداء کړي کمامرت او د عمرې څخه ځان حلال کړي او بیا وروسته په دغه کال د مکې مکرمې څخه احرام د حج وتړي او افعال مذکوره د حج هم پر ځای کړي پر دې سړي تم پسه د شکریه لازم دی یا روژې که دم نه وي کما سیئاتي ان شاء الله تعالی.

**والوجه الثالث القران:** او صورت د قرآن دادی چي له میقات څخه نیت د حج او د عمرې وکړي معاً او ووایي لبیک بحج وعمرة، او راتګ په افعالو د عمرې وکړي من غیر تحلیل منها ثم یاتي بافعال الحج کلها ثم یحلل منهما معاً، پر دې سړي هم دم د شکریه یا لس روژې لازمي دي، والافضل عند الحنفیة رح القرآن وجاء في الحدیث النبوي ﷺ «تابعوا بین الحج والعمرة فانهما ینفیان الفقر والذنوب کما ینفی الکیر خبث الحدید والذهب والفضة ولیس الحج المبرور جزاء الا الجنة» کذا في الکتب الفقهة والتفصیل لهذه الوجوه الثلثة في الفقة.

**فائده:** تفسیر مظهري رحمه الله هغه حدیث مشهور چي هم یې بخاري او هم یې مسلم روایت کړی دی او په دویمه صفحه کي د مشکوة هم موجود دی. او د هغه حدیث راوي عمر بن خطاب رضی الله عنه دی چي یو وخت یو سړی چي شدید بیاض الثوب و، او شدید سواد الشعر و، او هیڅ اثر د سفر هم نه پر معلومېدی، او په مونږ کي هیڅ چا هم نه پېژندی، وعلیه الصلوة والسلام ته د التحیات پر هیئت کېښېستی او په پوښتونو یې شروع وکړه، نو هغه سړي د علیه السلام څخه اوله پوښتنه دا وکړه، ما الاسلام، د حدیث متفق علیه عبارت خو بل ډول دی کما في المشکوة لکن مظهري رحمه الله د علیه الصلوة والسلام د جواب عبارت داسي راوړی دی ان تشهد ان لا اله الا الله وان محمدا رسول الله وان تقیم الصلوة وتوتی الزکوة و تحج البیت.

**درویش وایي:** چي دا عبارت خو په متفق علیه حدیث کي هم موجود دی لکن مظهري دا عبارت پر بالا کړی وتعتمر وتغتسل من الجنابة وتتم الوضوء، وروسته یې د متفق علیه دا عبارت راوړی دی وتصوم رمضان وروسته مظهري پر خپل ځان سوال کړی دی چي زیاتي عبارت په صحاح حدیثو کي نسته بیا په ډېر څګر خوني سره جواب ورکړی دی.

**درویش وایي:** چي ددې حدیث په مذکوره عبارت سره نقل او بیا د زائد عبارت جواب ورکول ددې علامه ده چي مظهري رحمه الله په هر قیمت چي وي ووجوب العمرة ته تیار دی لهذا درویش د مظهري رحمه الله په دې ځای کي تقلید به ونه کړی بلکه د علامه آلوسي رحمه الله صاحب روح المعاني تقلید یې مختاره کړی.

**عذر:** دا توهم دي څوک نه کوي چي درویش تر علامه مظهري رحمه الله ځان بالا بولي حاشا الله لکن شعر

ومن مذهبی حب مذهب الاحناف لاهله و للناس فیما یعشقو ن مذاهب

**فائده:** او بعض مفسران وایي چي د اتمام څخه د حج او د عمرې مراد دادی چي له کوره احرام په دواړو وتړي، او بعض وایي چي د اتمام الحج والعمرة

معنا داده چې د هر یوه لپاره به جلا جلا سفر کوي. او بعض وایي چې د اتمام معنا داده چې نفقه به یې حلاله وي، او بعض وایي چې حج او عمره یې مشوب په غرض دنیوي سره نه وي. فعلی هذه التفاسیر لاموقع لاختلافات السابقة في وجوب العمرة او استحبابها.

# فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ

او که تاسې بند کړه سوه سواست د اداء څخه د افعالو د حج او یا د عمرې، نو پر تاسي لازمه ده هغه هدیه چې تاسي ته اسانه وي یعنې پسه، غويي، اوښ.

**مسئله:** مراد له احصار څخه په نیز د مالک رحمه الله او د شافعي رحمه الله احصار په سبب د دښمن یعنې که دښمنانو تاسي نه پرېښولاست چې افعال د حج یا عمرې پر ځای کړئ والقرینة علیه قوله تعالی فاذا امنتم ای من العدو، وکذا نزول هذه الآیة في الحدیبیة قرینته علی ان الحصر انما هو لاجل العدو لان احصار الحدیبیة کان لاجل العدو یعني کفار قریش مکة ولقول ابن عباس رضي الله عنه لاحصر الا حصر العدو، او په نیز د امام ابو حنیفة رحمه الله احصار په دښمن سره او په مرض وغیرهما سره دی، ولې چې په حدیث صحیح کې راغلي دي (من کسر او عرج فعلیه الحج من قابل) دا حدیث که څه هم بیضاوي ضعیف ګڼلی دی لکن لا اعتبار لتضعیفه ولې چې دا حدیث په طرقو مختلفه و سره په سنن اربعه و کې راغلی دی او ترمذي دا حدیث حسن بللی دی.

**پوه سه:** چې د لفظ احصار اکثره استعمال په منع مطلق کې دی که د دښمن له خوا وي او که د مرض له جهته او د کسر او عرج له کبله وي او حصر په منع کې د دښمن د پر مستعملېږي، نو ابو حنیفه رحمه الله په باره کې د حکم یعنې لزوم الهدی کې مطلق منع معتبره کړې ده، او شافعي رحمه الله منع خاص د دښمن معتبره کړې ده.

والجواب عن جانب الحنفية عن القرينة الاولى ان لفظ الا من عام سواء كان الامن من العدو اومن المرض والكسر كما لايخفى، والجواب عن نزول الآية في الحديبية ان العلماء اتفقوا ان الاعتبار لعموم اللفظ لا لخصوص المورد، والجواب عن حديث ابن عباس ﷺ ان المراد والله اعلم ان الحصر الكامل او المعتاد في الحالة الراهينة لايكون الا من العدو، وارادة الفرد الكامل المعتاد كثر في الاحاديث المباركة مثل لاصلوة لجار المسجد الا في المسجد ولا وضوء لمن لايسمى، قال البرسوي ﷫ في تفسير هذه الآية، كه تاسي منع سولاست د افعالو څخه د حج يا د عمرې په مرض سره يا په دښمن سره يا مو نفقه خلاصه سوه يا مو راحله مړه سوه، ثم قال لان الخطاب وان كان للنبي ﷺ واصحابه ﷺ، وكانوا ممنوعين بالعدو اى في الحديبية لكن الاعتبار لعموم اللفظ وهو الاحصار لا لخصوص السبب وهو العدو.

**درويش وايي:** الوسي ﷫ په تفسير كي د آيت داسي وايي "فان احصرتم" دا مقابل د محذوف دی يعني لزوم د اتمام پر تاسي هلته دی چي تاسي قادر پر اتمام د حج او عمرې ياست، او كه چېري تاسي حصر سواست الخ. او الوسي ﷫ هغه درې قرينې چي قبلا ذكر سوې يعني پر حصر د احصار پر منع د دښمن لكه چي مذهب د مالک او د شافعي رح دی هم راوړي دي، او وروسته يې لپاره د تائيد د مذهب د ابو حنيفه هغه مخنى حديث من كسر او عرج آه هم راوړي دي، او بيا يې په روايت د طحاوي د عبد الرحمن بن زيد څخه داسي حديث راوړی دی چي يو سړي چي نوم يې عمر بن سعيد و، احرام يې په عمره تړلی و، نو پر لاري مار وخوړی او دی بېهوښه و، او په لاره كي ملګري هم ورسره وه، چي يو جماعت قافله پر راغله چي په هغو كي ابن مسعود ﷺ هم و، نو ملګرو ته د هغه ابن مسعود ﷺ وويل ابعثوا بالهدى واجعلوا بينكم وبينه يوم امارة فاذا كان ذالک فليحل، ثم قال الوسي ﷫ واخرج ابن ابى شيبة عن عطاء لا احصار الا من مرض او

عدو او امر حابس، ثم قال واما الثالث فلانه بعد تسليم حجية قول ابنْ عباس ﷺ هو معار ض بما اخرج ابن جرير و ابن منذر عن ابن عباس ﷺ انه قال في تفسير الآية ومن احرم بحج او عمرة ثم حبس عن البيت بمرض يجهده، او عدو يحبسه فعليه ذبح ما استيسر من الهدى. فابن عباس ﷺ كما خصص الاحصار بعدو عمم في هذه الرواية.

**درویش وایي**: چي مور تاویل د تخصیص د ابن عباس ﷺ دمخه انفاً ذکر کړی.

**درویش وایي**: چي علامه مظهري ؒ تفسیر ددې آیت د مذهب حنفي سره موافق کړی دی حیث قال ای ان منعتم من الوصول الی البیت الحرام بعدو مسلم او کافر او مرض فیمنعه من المضی علی افعال الحج والعمرة او هلاک نفقة او موت محرم للمرئة او نحو ذالک کذالک فسره ابو حنفیة ؒ لان الاحصار والحصر في اللغة المنع بای سبب کان بل غالب استعمال الاحصار في المرض ونحوه.

**درویش وایي**: چي عبارت د علامه مظهري ؒ توله پر ماقلنا دلالت کوي والله اعلم بالصواب.

**فائده**: هدی بعض مفسران ؒ وایي جمع د هدیة لکه جدی وجدیة یا لکه تمر وتمرة، او بعض وایي چي هدی مصدر دی په معنا د مفعول ای المهدی ولذالک اطلق علی المفرد والجمع او مراد دلته هغه حیوان دی چي مسلمان یې واستوي بیت الله شریفي ته گویا دا یوه هدیه ده چي بنده یې خدای ﷻ ته استوي، او هدیه د درو حیواناتو څخه روا ده، ادنی یې پسه دی او اوسط یې غوبی دی او اعلی یې اوښ دی، او هر څه چي حیوان لوی وي هغه افضل دی او ابن عمر ﷺ وایي هدی خاص په بقره او بدنه سره ده، نو یو سړي ده ته وویل چي شاة نه دی کافي؟ ده ورته وویل یا.

**مسئله**: اکثره امامان رح وایي چي هر خای چي محصر حصر سو هورې به هدیه ذبح کوي، دوئ وایي چي علیه الصلوة والسلام او اصحاب کرام چي په

حدیبیه کې حصر سوه هدایا یې په حدیبیه ذبح کړې، او حدیبیه خو خارج د حرم ده او د احنافو مذهب دادی چې هدیه به محصر حرم ته استوي، او د هغه چا په لاس چې یې ورکوي یوه ورځ به د ذبح ورسره ټاکي چې هغه ورځ راسي او د محصر غالب ګمان داسي چې اوس به یې هدیه ذبح کړې وي نو دی په حلق یا تقصیر سره خان حلال کړي، کما سیأتي في الآیة الآتیة.

دلیل د مذهب زموږ دا آیت دی ﴿ثم محلها الی البیت العتیق﴾ وقوله تعالی ﴿هدیا بالغ الکعبة﴾ او موږ دا منو چې په کال د حدیبیه ذبح د هدیو په حدیبیه کې آنحضرت ﷺ او اصحابو ﷺ وکړه، او دا نه منو چې ذبح د هدایاوو په حل کې تر سره سوه. موږ وایو چې محصر د علیه الصلوة والسلام في طریق الحدیبیة اسفل مکة، والحدیبیة متصلة بالحرم نو د حدیبیه یوه حصه په حل کې او بله په حرم کې ده، ویدل علیه ماجاء في الحدیث چې اوطاقونه او خېمې د علیه السلام او د اصحابو ﷺ په حل کې وې، او لمونځونه یې په مځکه کې د حرم کوله نو ذبح او نحر یې په مځکه کې د حرم تر سره کړی. قال الوسي ﷺ وبه یجمع بین ماقال مالک ﷺ وبین ماقال الزهري ﷺ وهو ان رسول الله ﷺ نحر في الحرم وکون الروایة عن الزهري ﷺ لیس بثابت في حیز المنع انتهی.

**مسئله:** اکثر ائمة رح وایي چې خدای ﷻ چې یوازي دلته هدیه ذکر کړه دا دلیل دی پر عدم قضاء ددغي عمرې، ولي که قضاء وایي نو خو ځای د بیان و خدای ﷻ به قضاء هم ذکر کړې وایي، او په نیز د حنفیانو ددغي عمرې قضاء پر سته ولي چې هغه بل وروسته کال علیه الصلوة والسلام او اصحابو ﷺ د تېر کال د عمرې قضاء راوړه ولهذا تسمی تلک العمرة عمرة القضاء، او هغه چې دوئ وویل چې قضاء خدای ﷻ نه کړه ذکر موږ وایو چې مقصود خو دلته بیان د خروج د محصر دی د احرام څخه لابیان کل ماوجب علیه هکذا قال صاحب روح المعاني.

**درویش وایي:** چي هغه حدیث چي مور ووېل چي اوطاقونه الخ، هغه حدیث فقیه ابو جعفر طحاوي رحمه الله په شرح معاني الاثار کي دده په سند سره د مسور رضي الله عنه روایت داسي کړی دی، ان رسول الله ﷺ کان في الحديبية خبائه في الحل ومصلاه في الحرم آه.

**فائده:** په دې مباحثو کي یوازي بیت الله شریفه نه ده بلکه مراد ټوله د حرم مکي مځکه ده فلا یرد مایتوهم المتوهم.

## وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ حَتَّىٰ يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ

او تاسي مه خرياست سرونه خپل كناية عن الخروج من الاحرام والضمير راجع الى المحصرين، تو هغو پوري چي هدیه رسېږي وخپل ځای ته.

**درویش وایي:** چي ځای د هدیه د رسېدو قبلا آنفاً په تفصیل سره د اختلافه د مذاهبو ذکر سو.

**درویش وایي:** چي امام شافعي، امام مالک او امام احمد رح وایي چي پر محصر باندي قضاء نسته، او امام اعظم رحمه الله وایي قضاء پر سته کما نبذ من ذالک دوئ وایي کمامر که قضاء پر وایي نو خدای ﷻ به دوئ په قضاء سره امر کړی وایي وقد مر جواب عنه نقلا عن روح المعاني، او امام مظهري رحمه الله داسي یو معقول جواب ورکړی دی چي اداء د حج یا د عمرې پسله شروع واجب ده بالاجماع لقوله تعالى ﴿واتموا الحج والعمرة لله﴾ ولاحاجة لوجوب القضاء الى نص جديد، او دا آیت "فان احصرتم آه" خو صرف پر رخصت د تحلل بعذر الاحصار کوي نه پر سقوط د قضاء فلا يسقط القضاء، نو دا قول د بیضاوي شافعي المذهب اقتصاره تعالى في الآية على الهدى دليل على عدم القضاء صحیح نه دی لان وجوب القضاء مفروغ عنه کمامر آنفاً عن كلام المظهري رحـ فلهذا لم يظهر القضاء في الآية، او سبط ابن الجوزي وايي چي دلیل د عدم وجوب القضاء دادی چي عليه الصلوة والسلام په سنه شپږ (۶) کي چي احرام د عمرې وتاړه دده مبارک سره څورلس صحابه کرام رضي الله عنهم ملګري وه کمافي البخاري

ومسلم، او په عمرة القضاء کي په سنه اوه (۷) کي لږ کسان د عليه الصلوة والسلام سره ملګري وه، نو که قضاء واجبه وايي بايد عليه السلام تولو د سنه شپږ ملګري خبر کړي وايي، او امام شافعي رحمه الله هم دغه دليل ته د ابن الجوزي رحمه الله اشاره کړې ده په دې قول سره قد علمنا من الاحاديث متواطئة انه ﷺ اذا اعتمر عمرة القضاء في العام القابل تخلف عنه بعض الصحابة من معتمري العام الماضي من غير ضرورة، ولو لزمهم القضاء لامر هم ﷺ بذالک

**جواب**: دا خبره چي په سنه اوه جمع يسير ملګري وه موږ يې نه سو منلای، او دا هم موږ نه منو چي عليه الصلوة والسلام صحابه کرام په قضاء نه دي امر کړي، کيف وقد روی الواقدي رحمه الله في المغازي عن جماعة من مشائخه چي څه وخت چي مياشت د ذو العقدة د سنه اوه راورسېدل امر النبي ﷺ اصحابه ﷺ ان يعتمروا قضاء لعمرتهم التي صدوا عنها فلم يتخلف عنه ﷺ الا من قتل بخيبر او مات وخرج معه ناس ممن لم يشهد الحديبية سنه (۶) وکان عداد من معه ﷺ الفين.

**پوښتنه**: واقدي رحمه الله خو محدثانو ضعيف ګڼلی دی؟

**ځواب**: ان خبر الواقدي رحمه الله في المغازي مقبول اذا لم يخالف الاخبار الصحيحة کذا قالوا، او جواب ددې قول د امام شافعي رحمه الله بان جماعة من الصحابة ﷺ ممن حضروا عام الحديبية سنه (۶) تخلفوا بغير عذر، يعني في سنه (۷) غير مقبول فمن تخلف عن الخروج لعله کان له عذر وليس القضاء واجب على الفور يعني في العام القابل ولعل من تخلفوا في العام القابل سنه (۷) قضوا عمرتهم بعد ذالک لانهم علموا ان القضاء بعد الشروع في الحج او العمرة واجب کمامر، مظهري، درويش

او موږ دا دليل هم لرو د حديث صحيح د حجاج بن عمر الانصاري ﷺ څخه چي روسول الله ﷺ وويل ﴿من عرج او کسر فقد حل وعليه الحج من قابل﴾

**درویش وایي:** چي قائل بالفرق بین الحج والعمرة په دې مسئله کي د لزوم د قضاء هیڅ امام نسته، والله اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب

**درویش وایي:** چي په باب د احصار في الحج والعمرة او په باره کي د وضع د هدې د ذبح او په باب د اسبابو د احصار علی اختلاف المذاهب او ایراد د دلائلو د مذهب حنیفي په قدر د طاقت بیان مي اختصاراً وکړی ومعهذا ځای د بیان د تفاصیلو د حج او عمرې او د دلائلو ځای د بیان خو کتابونه د فقهي شریفې دي لکن د ضرورت د حل د مقام او د تفسیر د آیات، وارده في هذا المقام که څه بیان اوږد سو لکن عذر دی اعتراض د اطناب مه کوئ لانهم قالوا مالایدرک کله لایترک کله ومن الله التوفیق وبه الاعتصام.

فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ بِهِ أَذًى مِنْ رَأْسِهِ فَفِدْيَةٌ مِنْ صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ

او که څوک وي له تاسو څخه یعني اې محرمانو د حج یا د عمرې ناجوړی یعني داسي ناجوړی چي د سر د خریلو ته یې اړ کړي او یا یې په سر کي گوم تکلیف و، یعني داسي مریضي چي د سر حلق ته یې مجبور کړي لکه چي سر یې ډېري شپږي کړي وي کما سیئاتي، او بیا یې سر وخریي، نو پر ده واجب ده فدیه، چي یا به روژې نسي درې، ولي چي اقل د جمع اصطلاحي درې دي او یا به صدقه ورکوي او یا یو حیوان چي اعلی یې اوبښ دی او اوسط یې بقر دی او ادنی یې شات دی ذبح کوي.

**مسئله:** که یو محرم د مخیط جامې و اغوستلو ته او یا خوشبوئي ته مجبور سو، نو حکم یې مذکور في الآیة حکم دی.

**مسئله:** پیوسته درې روژې شرط نه دی لاطلاق النص.

**پوه سه:** چي صدقه چونکه مقدار یې نه دی معلوم په آیت کي او داسي لفظ ته په اصطلاح کي مجمل وایي، نو ددې اجمال بیان په حدیث کي د بخاري د

کعب بن عجره څخه راغلی دی هغه دادی چي علیه الصلوة والسلام (یعني په کال د حدیبیه کي) زه ولیدم چي شپږي مي پر مخ راتویدلې ، نو ده مبارک وویل چي دا شپږي تاته ازار درکوي یعني خندي په تکلیف یې، ماورته وویل هو! نو علیه الصلوة والسلام دی امر کړی چي سر دي وخریه، او دا علیه الصلوة والسلام او اصحابو کرامو ته نه وه معلومه چي موږ به تولله په حدیبیه کي خانونه حلال وو یعني په سبب د منع د قریشو د مکې بلکه هنوز ددوئ طمع وه چي موږ ته به گوندي قریش اجازه راکړي چي موږ عمره وکړو، نو خدای ﷻ د فدیې امر نازل کړی یعني په آیت مذکوره کي، نو علیه الصلوة والسلام کعب بن عجره امر کړی چي شپږو مسکینانو ته نیمه نیمه کاسه غنم یا یوه یوه کاسه خرما صدقه ورکړه یا پسه ذبح کړه او یا دري روژې ونسه.

**یوه سه:** چي په حدیث شریف کي دا خبره راغله چي د دوئ طمع وه آه، له دې سببه چي قریشو د مکې په هیڅ ډول نه سوه قانع چي علیه الصلوة والسلام په دغه سنه (۶) ودخول مکې ته پرېږدي چي دوئ عمره وکړي، بلکه صلحه پر دې وسوه چي آینده کال د ذو القعدة الحرام سنه (۷) بـه تاسي مکې ته د عمرې لپاره راځئ وقد مر بیان ذالک تفصیلا في آیة الاحصار عنقریب.

**فائده:** هره فدیه چي پر محرم لازمـه سي حتماً بـه یې پـه مکـه کي ذبح کوي، سوی د دم الاحصار چي په هغه اختلاف عنقریب تېره سوه.

**اعراب الآیة:** الفاء للعطف علی ماقبله، وکلمة من موصولة او شرطیة وکان شرطه او صلته، ومریضاً خبر کان "ومنکم" حال منه ای کائنا منکم لانـه کان صفة لـه فاذا قدم صار حالاً کماهو القانون النحوي، واذی عطف علی مریضا، وبه صفته ای الم کائن به ومن راسه بیان لاذی والمراد به القمل کمامر في حدیث کعب بن عجرة ﷺ او یا تبې وي په سر کي، او یا پر سر درد وي او یا نیم سری وي یعني هر هغه مرض چي محرم د سر خریلو ته مجبور کړي، او فدیه مرفوع علی الابتدائیه وخبره محذوف مقدم ای علیه

فدية او دا جمله جزاء ده من شرطیه او یا خبر ده د من موصوله. ومن صیام بیان للفدية مع ماعطف علیه.

## فَإِذَا أَمِنتُمْ فَمَن تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ

او که تاسي په امن کي واست یعني یا د اصل څخه په امن کي واست، او یا خوف د دښمن له منځه څخه ولاړ ی، او یا ناجوړي واست جوړ سواست، او په اخیرني دوو صورتونو کي دا شرط دی چي محرم به له احرامه ځان نه وي حلال کړی، نو هغه محرم چي نفعه واخلي په تقرب کي وخدای ﷻ ته په عمره سره یعني چي په اشهر د حج کي وي، الى الحج اى منضما الى الحج او په دغه کال کي نو دا آیت شامل تمتع او قران دواړو ته دی، نو پر ده واجبه ده هغه هدیه چي ده ته اسانه وي لکه پسه.

**پوه سه**: چي دا هدیه د شکر ده د تمتع یا د قران په یوه کال کي.

**پوه سه**: چي بعض مفسرین رح وایي چي څوک چي فائده واخلي پسله ځان خلاصولو د عمرې څخه په ممنوعاتو د احرام لکه سر پټول قمیص او پرتوګ اغوستل حتى د ماینې په جماع سره وغيرها من المحظورات تر وخته د احرام په حج سره و حینئذ فلا یشمل الآیة القران بلکه په تمتع شرعي پوري خاص دی، او مظهري رحمه الله پر دې تفسير دا سوال کړی دی چي پر دې تفسير لا معنى للباء في قوله بالعمرة ولي تمتع خو دغه سرې په محظوراتو د احرام واخستل په عمره سره خو يې تمتع نه ده اخستې، فقال في آخير السؤال المذكور فالتاويل الاول اولى لفظا من اجل الباء ومعنى حيث يجب الآية المذكورة على القارن ان الهدى ايضا بالاجماع.

**درویش وایي**: چي علامه جلال الدين سيوطي رحمه الله د آیت ترجمه په دوهم تاویل سره کړې ده، حيث قال اى استمتع بمحظورات الاحرام بسبب فراغه من العمرة، او سلیمان جمل رحمه الله داسي نوشته کړي دي اى انتفع وتلذذ وقوله بمحظورات الاحرام متعلق بتمتع آه.

**درویش وایي**: چي پر دې تقدیر متعلق د تمتع محذوف دی ای بمحظورات الاحرام او لفظ د باء لپاره د سببیت ده والمضاف محذوف ای بسبب اداء العمرة والتحلل منها ومعنی الی الحج داده چي دا تمتع په محظوراتو د احرام جاري وه تر احرام تړلو په حج سره، ولایخفی انه تکلف في العبادة ویلزم علی هذا ان وجوب الهدی علی القارن اما بالاجماع او بدلالة النص، ولهذا اورد البضاوي والآلوسي والبرسوي وغیرهم رح هذا التفسیر الثاني بلفظ قیل اشارة الی ضعفه ووجه ماقلت آنفاً فتامل وخذما صفا ودع ماکدر.

**مسئله**: یوه سه چي حضرت الامام الشافعي رحمه الله دا هدیې دم جبر بولي ولي چي پر حج کونکي دا واجب وه چي ده احرام د حج له میقات څخه تړلی وایي. نو ده چي له مکې څخه احرام وتاړه نو دده په حج کي خلل واقع سو، نو دا دم د هغه نقصان جبیره ده ومن هذا لایجب علی المکي لعدم وجوب الاحرام من المیقات علی المکي ومن فی حکمه ولایتعین له یوم النحر بل یستحب ولا یاکل منه. او د امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله او د امام احمد رحمه الله مذهب دادی چي دا هدیه دم شکر دی چي حاجي ته خدای ﷻ توفیق ورکړي چي جمع د حج او عمرې په یوه کال کي وکړي نو ده ته اکل روا دی، او دا دم لکه اضحیه دی چي د اختر په ورځ به یې حلالوي په حرم کي او ده ته یې اکل روا دی. د امام اعظم او امام احمد رح دلیل پر جواز د اکل د غوښو د هدیې د تمتع او د قران دادی چي سبط بن الجوزي د عبدالرحمن بن ابي حاتم په سنن کي دده د حدیث څخه د علي رضی الله عنه داسي نقل کړی دی چي زه علیه الصلوة والسلام امر کړم چي خیرات کړه غوښي د هدایا وو سوی ماناکل.

**درویش وایي**: چي دا تر ټولو صریح حدیث دی په جواز کي د اکل د غوښو د هدیې متمتع او قارن لره، او بل دلیل د ابو حنیفه رحمه الله دادی چي فقیه ابو جعفر الطحاوي رحمه الله چي اعلم الناس په مذهب د ابو حنیفه رحمه الله مثل سوی دی په شرح کي د معاني الآثار په صحیح طریقه دا ثابته کړې ده: چي آنحضرت ﷺ په حجة الوداع کي قارن و، اذا عرفت هذا فنرجع الی

حدیث جابر ﷺ چي اوږد حدیث دی، د هغه حدیث په یوه برخه کي داسي راغلي دي ثم امر ﷺ یعني علي ﷺ چي علیه السلام دی په خپلو هدایاوو کي شریک گرځولی و، چي د هري بدني څخه دي یوه یوه ټوټه د غوښو جمع کړي، نو په یوه کتهوي کي دي واچوي او نوري غوښي دي خیرات کړي، نو علي ﷺ هم دغسي وکړه نو غوښي چي پخي سوې نو علیه الصلوٰة والسلام او علي ﷺ د هغو غوښو څخه خوراک وکړی او ښوروا یې پسي وڅښل، نو ددې حدیث څخه هم د اکل د غوښو د هدی القران جواز ثابت بلکه خوراک یې مستحب هم دی. لصدور الامر منه علیه الصلوٰة والسلام لعلي ﷺ بجمع بضعة من کل الهدایا وطبخها في القدر.

**درویش وایي:** چي امام شافعي ﷺ هم په دې باب کي دلائل لري او زموږ له طرفه جوابونه ورکړه سوي دي چي د تفصیل ځای یې کتابونه د فقه شریفي دي، وفي ماذکرنا کفایة والاطناب یوادي الی الملال.

**مسئله:** ذبح د هدیې د تمتع د مخه تر ورځي د اختر نه ده روا، بلکه وروسته تر رمی د جمرة العقبة به یې ذبح کوي، وهذا مذهب ابي حنیفة والشافعي و احمد رح وقال بعض اهل العلم یجوز الذبح قبل یوم النحر ایضاً، زموږ دلیل هغه حدیث د حفصة بنت عمر ﷺ دی ﴿قالت مایمنعک یارسول الله ﷺ ان تحل معنا قال اني اهدیث ولبدت راسي ولا احل حتی انحر هدیي﴾ نو که ذبح قبل یوم النحر وقارن ته روا وایي نو ددې حدیث به څه معنا وایي فتامل لانه دقیق، والله الموفق والمعین.

## فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ فِى الْحَجِّ وَسَبْعَةٍ اِذَا رَجَعْتُمْ ؕ تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ ؕ

او که چا یعني متمتع یا قارن هدي یې نه درلوده یعني طاقت مالي د هدیې یې نه و، نو پر ده واجب دي درې روژې په حج کي یعني په وخت کي

د احرام الحج چي اخيري ورځ به يې د عرفات وي، او كه دغه سړي له مخه تر دغو ورځو روژې په احرام كي ونيولې اجماعاً روا دي، او كه يې وروسته تر عرفات دا درې روژې شروع كړې نه دي روا، يو له دې سببه چي احرام خو بالا نسته، او بل دا چي روژه د ورځي د اختر او د ايام د تشريق خو حرامي دي فكيف يتادى به الواجب كذا في المظهري، او اوه روژې به بيا هلته ونسي چي تاسي رجوع وكړئ يعني له افعالو څخه د حج فارغه سئ.

**پوه سه:** چي امام ابو حنيفه رحمه الله او احمد رحمه الله د "اذا رجعتم" ترجمه داسي كړې ده "اذا فرغتم من افعال الحج" يعني تاسي د افعالو څخه د حج فارغه سواست يعني كه څه هم هنوز تاسي په مكه مكرمه كي ياست، او د امام مالك رحمه الله مذهب دادى، او ترجمه د آيت داسي كړې ده اى خرجتم من مكة قاصدين او طانكم، يعني په مكه مكرمه كي دغه اوه روژې نيول امام مالك روا نه بولي، او مشهور مذهب د امام شافعي رحمه الله چي يو روايت د امام احمد رحمه الله هم دى چي معنا د اذا رجعتم داده چي تاسي خپلو وطنو ته ورسېږي نو به هورې دا اوه روژې به نسي، نو ددوئ په نيز دا اوه روژې نه په مكه كي روا دي او نه قبل الوصول الى الوطن روا دي.

**پوه سه:** چي امام اعظم رحمه الله وايي چي رجوع په معنا د فراغ عن افعال الحج ددې سببه ده چي متمتع يا قارن كه نيت د اقامت په مكه مكرمه كي وكړي او يا دا سړى خپل وطن نه لري هغه ته دا اوه روژې په مكه مكرمه كي اجماعا روا دي فكذا من كان له وطن غير مكة لئلا يلزم الجمع بين الحقيقة والمجاز كذا قال المظهري.

**فائده:** په درو روژو كي او داغه رنګه په اوه روژو كي تتابع نه ده شرط تفرق هم روا دى.

**فائده:** چونكه فراغ د افعالو د حج څخه غالباً سبب د رجوع الى الوطن دى نو ځكه امام اعظم رحمه الله وايي چي په ايت شريف كي ذكر مسبب دى او مراد څني سبب دى.

**فائده:** تلک اشاره په آیت شریف کې و درو او اوو روژو ته ده.

**پوښتنه:** هر سړی په دې پوهېږي چې درې او اوه لس دي نو د عشرة څه فائده ده؟

**ځواب:** فائده یې دفع د توهم ددې ده چې کلمه د واو عاطفه په معنا د او عاطفه به وي، کما في قوله تعالی "وثلث وربٰع" او بله فائده یې داده چې دوه علمه تر یوه علم ښه دي، نو دلته خدای ﷻ دا دوه عدده یو وار تفصیلاً ذکر کړه او بیا یې اجمالاً.

**فائده:** کاملة صفت مؤکد دی د عشرة، ولې نحات وایي چې صفت ګاهي لپاره د تاکید وي که موصوف معنا د وصف ورکوله. نحو الهین اثنین، او دا تاکید دوئ هلته کوي چې حکم مؤکد مهتم بالشان وي تاچې څوک تساهل پکښې ونه کړي وههنا کذالک یعني رعایت د لسو روژو د مهماتو څخه دی باید څوک تکاسل او تساهل پکښې ونه کړي، فاحفظ هذه الفائدة السنیة تنفعک في مواضع شتی.

**مسئله:** که متمتع یا قارن چې د مخه یې قدرت د هدیې نه درلودی او په هغو درو روژو یې شروع کړې وه، په منځ کې د روژو قادر سو پر هدیې باندې، یعني یو شناخته د هدیې روپۍ ورکړې مثلا، او وروسته تر درو روژو د مخه تر حلق الراس، نو پر ده هدیه لازمه ده چې ذبح کوي به یې خلافا للشافعي واحمد ومالک رح، مونږ وایو چې دا حاجي قادر سو پر اصل باندې د مخه تر دې چې په خلف یعني په روژو ده ځان حلال کړی وایي، نو خلافت د روژو لغو سو، لکه یو سړی چې فاقد الماء وي او تیمم وکړي او د لمانځه په منځ کې اوبه پیدا کړي، نو د هغه حکم خو اتفاقاً دادی چې تیمم یې لغوه سو اودس په تازه کوي او لمونځ به د سره شروع کوي، او که حاجي مذکور درې روژې پوره کړې او حلق یې هم وکړی او بیا قادر سو پر هدیې نو ذبح د هدیې نه ده پر واجب باتفاق الائمة الاربعة رحمهم الله، مثال یې دادی لکه فاقد الماء، چې تیمم وکړي او لمونځ په هغه تیمم هم اداء کړي وروسته

او به پیدا کړي نو اودس او را ګرځول د لمانځه نه دی پر واجب اتفاقا.

**مسئله:** که فاقد القدرة د هدیې درې روژې نه ونیولې، نو دم یعني هدي پر واجب ده د هري خوا چي یې کوي عند الحنفیة ، او امام شافعي او امام مالک رح وایي چي ددغو درو روژو دي قضاء راوړي وروسته تر حج، دوئ وایي چي دا خو قضاء ده په مثل معقول سره، او فقهاء رح وایي چي قضاء په مثل معقول سره نص جدید نه غواړي، موږ وایو چي دغه درې روژې خو بدلي د هدیې وې، او فقهاء دا هم وایي چي نصب د ابدالو په رایه سره نه دی روا فتامل في الفرق بین قولی الفقهاء لئلا تقع في الخطاء المبین

## ذٰلِكَ لِمَنْ لَّمْ يَكُنْ اَهْلُهٗ حَاضِرِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۭ

دغه یعني تمتع د هغه چا لپاره روا ده چي کور یې په مسجد حرام یعني په مکه مکرمه کي نه وي، نو پر دې تقدیر مکي سړي ته تمتع نه ده روا. وهذا مذهب ابي حنیفة ، او امام شافعي او امام مالک او امام احمد رح وایي چي مکي ته خو تمتع روا ده لکن هدیه نه ده پر واجب، دوئ وایي چي اشاره په ذالک سره وجوب الهدی ته ده پر متمتع باندي، موږ وایو چي "لام" له "لمن" کي استعمال یې په هغه کي کېږي چي موږ ته جائز وي نو تقدیر د آیت دادی ذالک یجوز لمن آه، نو هرو مرو به اشاره وتمتع ته وي، او که اشاره و وجوب ته د هدیې وایي نو مناسبه کلمه د "علی" وه یعني ذالک علی من آه ای وجوب الهدی علی من آه.

دا دلیل زموږ د عربیت د لاري و، او د حدیثو د لاري زموږ دلیل دادی، چي د حنیفیانو رح تاویل د عمر بن الخطاب او دده د زوئ عبد الله بن عمر او د عبد الله بن عباس  څخه روایت دی، چنانچه امام بخاري  په خپل کتاب کي د ابن عمر  داسي روایت کړی دی " انه " ای عبد الله بن عمر "سئل" دده څخه چا پوښتنه وکړه "عن متعة الحج" د تمتع څخه د حج "فقال ان الله انزله في کتابه " ابن عمر  وویل چي تمتع خدای  پخپل کتاب

قرآن کي نازله کړې ده قال الله ﷻ ﴿ذالک لمن لم يکن اهله حاضري المسجد الحرام﴾ نو ددې دليل څخه د ابن عمر ﷺ دا معلومه سوه چي ابن عمر ﷺ ذالک اشاره بولي تمتع ته کماهو مذهب الحنفية ﷺ او وروسته يې په حديث کي داسي ويلي دي "وسنه نبيه" او مشروع گرځولې ده يعني تمتع نبي د خدای ﷺ "واباحه للناس غير اهل مکة" او مباح گرځولې ده نبي د خدای ﷺ تمتع وخلگو ته غير د اهل مکې.

**فائده**: اهل د سړي هغه خاص قريبان د سړي دي او ذکر د اهل يې له دې سببه وکړی چي سړی غالباً هلته وسېږي چي اهل دده هلته وي. نو له سکونت څخه د اهل مراد سکونت دده دی.

**تفريع**: هغه چا ته هم شامل سو چي مجرد وي يعني بې قريبانو وي او په مکه مکرمه کي اوسېږي.

**فائده**: حاضري المسجد الحرام په نېز د ابو حنيفه ﷺ هغه کسان دي چي کور يې داخل المواقيت وي نو دغسي سړي ته نه تمتع روا ده او نه قران.

**مسئله**: که داخل المواقيت سړی تمتع يا قران وکړي پر هغه باندي دم د جنايت واجب دی، او دوئ به خوراک نه ځندي کوي کماهو القانون في دم الجناية.

**تفريع**: داخل المواقيت خلگ بايد عمره په غير کي د اشهر الحج وکړي او اشهر الحج خالص د حج افراد لپاره وگرځوي لعدم الضرورة لهم في العمرة في تلک الاشهر بخلاف الآفاقي لانه عسى ان لاتيسر لهم العمرة في غير اشهر الحج فاجاز الشرع له التمتع والقران.

**فائده**: دم د افاقي دم د شکريې دی پر دوه نعمته د عمري او د حج. نو دی پخپله خوراک ځندي کولای سي کمامر تفصيله ودليله فتذکر، او په نېز د امام شافعي ﷺ حاضری المسجد الحرام هغه کسان دي چي کم د مسافت د قصر د لمانځه يې کور وي، او بعض علماء وايي چي چونکه د مسجد حرام څخه خو فقط مسجد نه دی مراد اجماعا، نو قريب ومسجد

الحرام ته حرم مکي دی وبه قال طاؤس رحمه الله وغیره، او امام مالک او نافع او د احنافو څخه الطحاوي رح وایي چي مراد د حاضری المسجد الحرام څخه فقط اهل مکه دي والعلم عند الله.

وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿١٩٦﴾

او د خدای جل جلاله څخه ببرېږئ، یعني اوامر یې پر ځای کوئ او د منهیاتو څخه یې پرهېز کوئ خصوصا في افعال الحج والعمرة، او دغه خصوصیت کافي دی په ربط کي ددې آیت له ماقبله سره، او په دې هم پوه سئ چي خدای جل جلاله سخت دی عذاب دده، یعني هغه چالره چي عصیان وکړي په ترک د اوامرو د خدای جل جلاله او یا په ارتکاب د معاصي وو، قال السعدي الشیرازي قدس سره

مرو زیر بار گنه ای پسر — که حمال عاجز بود در سفر
تو پیش از عقوبت در عفو کوب — که سودی نه دارد فغان زیر چوب

**پوه سه:** چي تمام الحج کمایکون بالفراغ عن مناسکه وافعاله بحسب الظاهر کذالک یجب علی الحاج اتمام الحج بسبب توجه قلبه الی الله جل جلاله بشرا شره حتی ینور قلبه بانواره ولایکون هذا الا باخذ البیعة من العالم المتشرع لا ممن جعل الطریقة وسیلة الی اخذ اموال الناس وجمع حطام الدنیا، او لاجل طلب الجاه والجلال کماهو المعتاد في هذا الزمان في بعض المتصوفة. قال بایزید البسطامي قدس سره لایجوز اخذ الطریقة الا ممن قدامه التفسیر وعن یمینه الحدیث وعن شماله الفقه یعني یکون عالما بهذه العلوم الثلثة.

**درویش وایي:** چي صاحب د روح البیان رحمه الله د مالک بن دینار رحمه الله څخه یوه دلسوزه واقعه نقل کړې ده چي الفاظ عربیه ډېر زیبا دي، او درویش دومره زیبا کلمات دلسوزه په پښتو ژبه کي نه سي پیدا کولای، نو څکه دي سامعان و هغه عربي عبارت ته غوږ ونسي.

قال مالک بن دینار رحمه الله خرجت الی مکة حاجا فرئیت في الطریق شاباً اذا جن علیه اللیل رفع وجهه الی السماء وقال یا من تسره الطاعات

ولاتضره المعاصي هب لي مايسرک، واغفرلي مالايضرک فلما احرم الناس ولبوا، قلت له لم لاتلبى فقال ياشيخ وما تغني التلبية عن الذنوب المتقدمة والجرائم المكتوبة والمعاصي السالفة اخشى ان اقول لبيک، فيقال لي لالبيک ولاسعديک، لا اسمع کلامک ولا انظر اليک ثم مضى فما رئيت الا بمنى يعني حيث ذبح للناس الحجاج الهدايا. وهو يقول اللهم اغفرلي ذنوبي کلها، ويقول اللهم ان الناس قد ذبحوا وتقربوا اليک بالهدايا وليس لي شيئ اتقرب به اليک سوى نفسي فتقبلهامني ثم شهق شهقة وخر ميتاً غفرله الله بلفظه وکرمه واخلاصه العظيم في خبابک. محصول الآيات

**درويش وايي:** چي خدای ﷻ لره دي حمد او ثناء وي چي موږ مسلمانانو لره يې درې قسمه اعمال لپاره د طهارت الذنوب په دغو آياتو کي ذکر کړه يعني حج عمره مجتمعا وهو المراد بالتمتع في الآيات المتلوة، وروسته په سنت نبوي ﷺ سره دا خبره ثابته ده چي جمع د حج او عمرې پر دوه قسمه ده يو دادی چي د ميقات څخه د دوارو احرام وتړي او بيا يو ځای د دوارو څخه ځان حلال کړي وهو القران في العرف الشرعي، او بل قسم جمع داده چي اول احرام په عمره سره وتړي او افعال د عمرې چي يې وکړه ځان حلال کړي او داغسي حلال وه اوسېږي په مکه مکرمه کي او د اتم په ورځ د مکې څخه احرام د يوازي حج وتړي، او په ورځ د اختر ځان حلال کړي په نيز د فقهاو رح ودې ته تمتع وايي لکن ددې قسم اجتماع لپاره شرط دادی چي هديه بې نه وي د ځان سره راوستلې، او بل قسم دادی چي اولاً د ميقات څخه يوازي د حج نيت وکړي هغه لکه قارن د اختر په ورځ به ځان حلالوي او دا درې سره په اجماع روا دي هيڅ خلاف نسته پکښي، اختلاف په دې کي دی چي کوم قسم يې افضل دی، او په دې کي اختلاف دی چي عليه الصلوة والسلام په حجة الوداع کي قارن و، او که متمع و او يا مفرد حج يې و.

**سوال:** که عليه الصلوة والسلام متمتع وايي نو ځان يې ولي نه کړی حلال پسله اداء څخه د افعالو د عمرې؟

**ځواب**: مانع د تحلل یې هدایا وې چې د ده سره ورسره وې کمامر آنفا.
**درویش وایي**: چې تحقیق د دې خبرو خو په احادیثو مبارکه وو کي دی، او یا په کتابو کي د فقهي شریفي، او بل اختلاف په دې کي دی چې کوم یو د دغو درو حجو ښخه افضل دی. والتحقیق هذا چي علیه الصلوة والسلام په حجة الوداع کي قارن و، او قران چې سره د د سوق الهدی وي افضل دی تر تمتع او که هدي نه وه ورسره نو تمتع افضله ده، او قران او تمتع افضل دي تر حج مفرد.
**درویش وایي**: چې په دې مذکور افضلیت بعض فقهاؤ د احنافو رح قول کړی دی، او بعض فقهاء رح وایي چې قران مطلقا که هدي ورسره وي او که نه افضل دی تر تمتع. ولې چې په قران کي مشقت ډېر دی تر تمتع. کما لایخفی او بل سبب دادی چې د قارن حج مکي نه دی بخلاف المتمتع.

## اَلْحَجُّ اَشْهُرٌ مَّعْلُوْمٰتٌ

بعض مفسران رح وایي چې معنا د آیت داده وقت الحج اشهر آه او بعض وایي چې وخت د احرام د حج اشهر آه وهو الاظهر عند الشافعي رحمه الله ولې چې وخت د اداء د ارکانو د حج فقط یوم العرفة او یوم النحر ده.
**پوه سه**: چې د اشهر ښخه مراد د شوال میاشت او دمیانې میاشت او نه ورځي د لوی اختر د میاشتي الی طلوع الفجر من یوم النحر، او د ابن عمر رضي الله عنه ښخه روایت دی چې لس ورځي د ذو الحجة دي په هر صورت مضاف محذوف دی، یا یو مضاف او یا دوه مضافه کما اشرنا الیه.
**پوښتنه**: که مراد له جمع ښخه جمع لغوي وي خو اطلاق د لفظ د اشهر پر دوو میاشتو او لس شپو صحیح دی او که جمع اصطلاحي وي نو اقل د جمع قلة خو دوې دي.
**ځواب**: په دې ځای کي بعضو لس ورځي په ځای کي د کل میاشتي شمېرلي دي، او معنا د معلومات داده چې دغه میاشتي قبل الشرع الشریف عربوته معلومي وې او شریعت پاک یې تقریر وکړی.

**پوه سه**: چي فایده د تعین د حج په دغو اشهرو سره داده چي هیڅ شی د افعالو څخه د حج بېله دغو میاشتو نه دی روا ، او احرام د حج که څه هم تر دغو درو میاشتو د مخه روا دی په نیز د امام اعظم رحمه الله لکن مکروه دی حاصل دادی چي د امام اعظم رحمه الله په نیز احرام رکن حج نه دی بلکه شرط یې دی نو تقدیم یې روا دی کتقدیم الطهارة علی اداء الصلوة، وما قلنا سابقا ان المراد وقت احرامه وهو الاظهر فهو مذهب الشافعي رحمه الله واما عند ابي حنیفة رحمه الله فلایجوز حذف المضافین ای وقت احرامه لان وقت احرامه هو جمیع اشهر السنة لقوله تعالی ﴿یسئلونک عن الاهلة کلها قل هي مواقیت للناس والحج فجعل الله سبحانه الاهلة کلها مواقیت للحج وهذا معلوم اجماعا ان الاهلة کلها لیست مواقیت لصحة اداء الحج فتعین ان الاهلة کلها مواقیت لصحة احرام الحج کذا في حواشي ابن الشیخ رحمه الله

**فائده**: د مضاف اول یعني وقت الحج بله فائده داده چي حمل د حج پر اشهر صحیح سي ولي چي حج خو افعال مخصوصه دی او اشهر میاشتي یعني زمانه ده نو څرنګه به حج عین زمانه سي.

## فَمَنْ فَرَضَ فِيهِنَّ الْحَجَّ

نو که چا واجب او لازم کړی پر ځان باندي په دغو میاشتو کي حج یعني یعني احرام په حج یې وتاړه.

**سوال**: احرام څه شی دی؟

**ځواب**: امام مالک، امام احمد، او امام شافعي رحمهم الله وایي چي احرام مطلق نیت د زړه دی لکه په روژه کي، او په احرام کي تلبیه شرط نه ده لکن مالک رحمه الله وایي چي تلبیه واجبه ده په وخت کي د احرام نو که چا پرېښوله دم پر لازم دی، او مشهوره مذهب د امام احمد او شافعي رح دادی چي تلبیه سنت ده، او امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله وایي چي احرام تلبیه ده سره له نیته، لکه تکبیر افتتاح د لمانځه سره له نیته، زمونږ دلیل دادی چي

حج خو عقد د زړه دی پر منع د محظوراتو څخه د حج لکه لمونځ چې عقد د زړه دی پر منع د محظوراتو څخه د لمانځه فلابد من ذکر کتکبیر الافتتاح في الصلوة لکن چونکه حج تر لمانځه فراخه دی نو په حج کې خصوص ده لبیک اللهم آه، لازم او واجب او شرط نه دی بلکه مطلق یو ذکر چې دال پر تعظیم د خدای ﷻ وي، که عربي او که فارسي وي، او یا یو فعل دال پر تعظیم لکه سوق الهدی شرط او کافي دی، او بل دلیل زموږ د مذهب دادی چې ابن عباس ﷺ په تاویل کې ددې آیت وایي فرض الحج ای رفع الصوت بالتلبیة. وقال ابن عمر ﷺ فرض الحج التلبیة، او د نیت فرضیت خو په هر عبادت کې معلوم دی لیمتاز العبادة عن العادة.

**فائده**: امام شافعي رحمه الله وغیره دا آیت ددې دلیل بولي چې احرام بالحج نه دی مګر په دغو میاشتو کې کماهو قول ابن عباس ﷺ وعطاء رحمه الله وغیرهما. وجه الاستدلال داده دوی وایي چې که احرام د حج په غیر کې ددې میاشتو روا وي لکه حنفیه رحمه الله چې وایي نو د لفظ فیهن به څه فائده وایي؟

**ځواب**: موږ وایو چې فائده د فیهن داده چې دغه میاشتې دي د اعمالو د حج کمامر لکن که څوک احرام د حج تر دغو میاشتو د مخه وتړي نو احرام خو صحیح دی مع الکراهة وقد مر نبذ من هذا التفصیل عنقریب.

فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوقَ وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ ؕ

نو نسته رفث.

**پوه سه**: چې دا درې کلمې ظاهرا نفي دي په معنا د نهي دي ای لاترفثوا، ولا تفسقوا ولاتجادلوا، زجاج رحمه الله وایي چې رفث کلمه جامعه ده لکل مایرید الرجال من النساء. او ډیر مفسران رح وایي چې رفث په معنا د جماع دی او دواعي د جماعو لکه مچه اخستل د ماینې څخه او یا یې په غېږ کې کښېکښل، او بعض مفسران رح چې ترجمه د رفث یې په قول فحش سره کړې ده. مظهري رحمه الله پر هغه دا سوال کړی دی چې دا خو مطلقا حرام دی

په احرام او په حج پوري څه تعلق لري؟ برسوي او آلوسي رح د هغه په ځواب کي وايي چي دا که څه هم واجب الاجتناب دی في کل حال لکن په حج کي چي مقصود خندي تقرب الی الله دی افحش او اقبح دی کلبس الحرير في الصلوة للرجال، والتطريب في القرآن بحيث تخرج الحروف القرآنية عن مخارجها وهيئاتها.

**درويش وايي**: چي دغه رنګه مظهري رحمه الله تفسير د فسوق او جدال په هغه اقوالو او افعالو سره کړی دی چي حرمت يې د حج سره خصوصيت لري او الوسي او برسوي يې عام تفسير کړی دی، والسوال والسوال يعني مامر من جانب المظهري رحمه الله والجواب الجواب يعني من جانب المفسرين المذکورين رحمهم الله.

**پوه سه**: چي رفث که څه هم په فسوق کي داخل دی لکن خدای جل جلاله جلا ذکر کړی لشدة الاهتمام بشان الرفث، ولي چي رفث په معنا د جماعو هر يو د حج او د عمرې فاسدوي بالاجماع بخلاف غيره من محظورات الاحرام ولي چي هغه حج نه فاسدوي بلکه دم لازموي کما في کتب الفقه.

**مسئله**: که حاجي جماع وکړه قبل الوقوف بعرفة حج يې فاسد سو بالاجماع، او که يې بعد الوقوف بالعرفة وکړې په افساد کي د حج يې خلاف دی ولاخلاف في حرمته.

**پوښتنه**: موږ ولي الفاظ ثلثة چي ظاهر معنا يې نفي ده په نهي سره وکړه؟

**ځواب**: که نفي پر خپل ظاهر باندي پاته سي خلف او کذب په کلام الهي لازميږي ولي دا مذکوره افعال خو د حاجيانو څخه ډېر ځله واقع کيږي.

**پوښتنه**: حکمت د تعبير په نفي سره څه دی؟

**ځواب**: د معاني وو په کتابو کي وايي چي فائده او حکمت يې مبالغه في النهي ده يعني ګويا چي منهي مبادرت وکړي و امتثال ته د نهي اوس ناهي اخبار خندي کوي کذا في المطول وغيره.

**پوه سه**: چي محظوارت د احرام قرار ذيل دي (۱) رفث (۲) دواعي الجماع (۳) قتل د صيد البر (۴) واشاره وصيد ته کول (۵) رهنمايي د صيد کول چي

دلالت يې بولي، كما قال الله تعالى ﴿ولاتلقوا الصيد وانتم حرم﴾ (۶) خریل یا غچي كول د وېښتيانو (۷) پرې كول د نوكانو، قال الله تعالى ﴿ولاتحلقوا رؤسكم حتى يبلغ الهدى محله﴾ (۸) قتل د شپږي چي د ډېري خيري څخه پيدا كېږي، او دا متعلق په قطع الشعر پوري دي (۹) خوشبويي لگول دي پر جامه يا بدن باندي، قال رسول الله ﷺ ﴿لاتلبسوا شيئًا مسه زعفران او ورس﴾ بخاري ومسلم، چونكه دا دوه خوشبويه وه نو نوري خوشبوی گانې پر قياس دي.

**پوه سه:** چي دا مذكوره افعال عام دي ښځي او نر دواړو ته شامل دي، او بعض په نرو پوري خاص دي (۱۰) گنډلې جامه اغوستل هره جامه چي وي (۱۱) گوټونه او موزې په پښو كول، لكن كه حاجي چپلكي نه درلودې او يا لنگ يې نه درلودی نو موزې دي په پښو كي لكن د بجلكو لاندي دې پرې كړي، او يا دي پرتوگ سره څيري كړي او لنگ دي څندي جوړي كړي كذا جاء في الحديث متفق عليه، لكن اخطاء بعض المفسرين في عدم ذكر قطع الخفين (۱۲) پټول د سر (۱۳) پټول د مخ د محظوراتو څخه د نر او ښځي دواړو دي په نېز د امام ابو حنيفه ومالك رح، او امام شافعي او احمد رح وايي چي پټول د مخ يوازې د محظوارتو څخه د ښځو دی، والتفصيل والدلائل في كتب الفقه وشروح كتب الاحاديث المفصلة مظ، در.

**پوه سه:** چي د جدال تفسير آلوسي او برسوي په جنگ وجدل د انډيوالانو سره يا د خادمانو سره يا كرايه كشانو سره كړی دی وهو الصحيح والمذكور في كتب الفقه، او بعض مفسرانو رح تفسير په خصوماتو سره د اهل جاهليت يو له بله سره په افعالو كي د حج او يا په مواقفو كي د حج كړی دی.

**درويش وايي:** چي بحث او آياتونه د قرآن خو په حج كي د مسلمانانو نازل دی نو خصوصيات د اهل جاهليت دلته څه كار لري.

وَمَا تَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ يَعْلَمْهُ اللَّهُ

او هر څه چي تاسي وكړئ له عمل څخه د خير كه مالي وي او كه اخلاقي

وي او که بدني خداي ﷻ په هغه خبر دی یعني پر هغه خیر به خدای ﷻ ثوابونه درکړي.

**پوه سه:** چي خدای ﷻ په تېرو آیاتو مسلمانان نهي کړي د درو معاصیو څخه او په دې آیت کي یې ترغیب ورکړی دی وټولو کارو ته د خیر یعني الطاعات، نو ددې آیت حاصل بحث او مباحثه کول دي د خیر پر کارو وروسته تر نهي د شر له کارو څخه فیدخل فیه استعمال الکلام الحسن مقام القبیح والتقوی مقام الفسوق والاخلاق الجمیلة والوفاق مکان الجدال کما في الآیات السابقة.

## وَتَزَوَّدُوا فَإِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوَىٰ

او تاسي چي حج ته ځی نفقه د سفر درسره اخلئ، ولي چي د نفقې خیر او فائده خان ساتنه ده له سوال څخه.

**پوه سه:** چي بخاري رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي د اهل یمن عادت داوو چي حج ته به تله نو به یې د سفر نفقه او خرڅ نه ورسره اخستی او دوئ به ویل چي موږ متوکلون علی الله یو نو چي مکې ته به ورغله پر خلګو به یې سوال کاوه، او خلګ به یې په سوال کولو سره ډېر تنګول نو دا آیت نازل سو.

**پوه سه:** چي انسان دوه سفره لري یو سفر دی په دینا کي له یوه ځایه وبل ځای ته لکه په مانحن فیه سفر د وطن څخه وبیت الله شریف ته نو ددې سفر لپاره خدای ﷻ موږ امر کړي یو په زاد سره یعني طعام او مشروب او مرکب او بل سفر دی له دنیا څخه و اخرت ته نو د هغه لپاره څرنګه زاد به ضروري نه وي ددې سفر زاد معرفت الهی دی او طاعات او پرهېز د معاصیو څخه او دا زاد بهتر دی تر زاد د سفر في الدنیا ولي سفر په دنیا کي موقت دی او تکالیف یې هم چند روزه دی، او سفر له دنیا څخه و اخرت ته مائبد دی او تکالیف یې هم ډېر شاقه دی، اعاذ الله جمیع المؤمنین وایانا عن التکالیف بجمیع اقسامه في یوم القیامة.

وَتَّقُوْنِ یٰٓاُولِی الْاَلْبَابِ ﴿۱۹۷﴾

او له ماڅخه ویېرېږئ ای خاوندانو د عقلو.

**پوه سه:** چي کسره د نون دال پر یای محذوفه ده. وانما خص اولی الالباب بالذکر لان مقتضی العقل ان یخشی صاحبه من ربه الغالب القادر علی مایشاء کیف یشاء.

**مسئله:** پیاده تګ بیت الله شریفي ته اولی دی، او که پیاده تګ سړی ضعیفه کاوه او سوء خلق ته مفضي کېدی او یا په افعالو کي د حج یې قصور پیدا کاوه بیا رکوب افضل دی لکه روژه د مسافر او مریض افضل ده که ضعف او سوء خلق ته نه مفضي کېدی.

**درویش وایي:** چي واوری نصیحت د سعدي شیرازي رحمه الله

از من بگوی حاجي مردم گزاري را کو پوستین خلق بازار میدرد

حاجي تونیستی شتر است برای انکه بیچاره خار میخورد وبار میبرد

حاصل دا چي حاجي دوه قسمه دی حاجي مغفور دی چي حج یې مبرور وي، یعني د ټولو محظوراتو مفسده او مکروه وو څخه خلاص وي او بل حاجي عقور دی چي په حج کي کي یې مردم ازاري کړې وي.

لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَبْتَغُوْا فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ ؕ

او نسته پر تاسي ګناه چي تاسي طلب کوئ د رزق د خدای جل جلاله څخه ستاسي یعني بالتجارة في مواسم الحج. بخاري رحمه الله د ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت کړی دی چي په جاهلیت کي به حاجیانو تجارت په کښي کاوه درې خایه وه، عکاظ وذو المجاز ومجنة، نو اسلام چي منځ ته راغلی د مسلمانانو په خیال ددغو بازارو تجارت په مواسم کي د حج حرج او ګناه بلله. في مواسم الحج وعند القراء السبعة هذه العبارة منسوخة التلاوة یعني في مواسم الحج.

**مسئله**: د فرضي حج غاړي د حاجي خلاصېږي هر څونده تجارت چې وکړي، او که حج نفلي و نو که مقصود بالذات د حاجي حج و او ضمنا وبالتبع يې بعض تجارت هم کاوه ثواب د حج يې پر ځاى دى، او که يې اصل مقصود تجارت و، يعني که دا تجارت نه وايي حج ته به تلى نو ثواب د حج يې نسته بلکه ثواب د سفر الحج يې ربح في التجارة فقط.

فَإِذَآ أَفَضۡتُم مِّنۡ عَرَفَٰتٖ فَٱذۡكُرُواْ ٱللَّهَ عِندَ ٱلۡمَشۡعَرِ ٱلۡحَرَامِۖ وَٱذۡكُرُوهُ كَمَا هَدَىٰكُمۡ وَإِن كُنتُم مِّن قَبۡلِهِۦ لَمِنَ ٱلضَّآلِّينَ ﴿١٩٨﴾

او چې تاسي په اجتماعي صورت راکښته سى له عرفات څخه نو ذکر د خداى ﷻ کوى په نبز د مشعر الحرام، او تاسي ذکر د خداى ﷻ کوى لکه چې خداى ﷻ د هغه هدايت وتاسي ته کړى دى که څه هم تاسي واست له مخه تر ښووني د خداى ﷻ د گمراهانو جاهلانو مشرکانو څخه، او بعض مفسران وايي چې کلمه د ان مخفف د مثقله څخه ده يعني وانکم کنتم آه، په قرينه ددې چې په خبر کې لام راغلى دى ولې چې لام فارق دى په منځ کې د ان متصله او ان مخففه وهذا الراى اختاره البرسوي والآلوسي والمظهري رحمهم الله.

**فائده**: همزه د افضتم لپاره د تعديه دى والمفعول محذوف اى دفعتم انفسکم له عرفات څخه بعد غروب الشمس ورجعتم بعد الوقوف بها.

**درويش وايي**: چې مظهري رحمه الله په متابعت د بيضاوي رحمه الله وايي چې عرفات جمع د عرفة ده او برسوي رحمه الله وايي چې عرفات علم او نوم دى د موقف معروف او حقيقة جمع نه ده بلکه د قبيله څخه د مازيدت حروفه لزيادة معناه ليدل على المبالغة في المعرفة.

**درویش وایي**: چي قول د بیضاوي او مظهري رح فراء رحمه الله رد کړی دی چي لفظ د عرفة عربي محض نه دی.

**سوال**: څرنګه به صحیح وي قول د فراء وقد ورد في الحدیث الحج عرفة

**ځواب**: مراد په حدیث مذکور کي نهمه ورځ د ذو الحجة ده لا الموقف المعروف، وانکر الفراء استعماله في المکان جدا وقد نبه علیه شروح البخاري، وقال صاحب روح المعاني چي عرفات اسم دی یعني مفرد في اللفظ لا الجمع، وقال وقول الناس نزلنا بعرفة شبیه بالمولد ولیس بعربي محض.

**درویش وایي**: ددې قول د روح المعاني چي په حدیث مذکور کي مراد یوم تاسع د ذو الحجة ده تائید کوي ماصرح به الراغب اللغوي والکرماني والبغوي. والعجب من المظهري کیف ترکب متابقة البغوي مع ان جمیع تفسیره مبني علی روایات البغوي رحمه الله کما هو الظاهر لمن طالع تفسیر المظهري.

**پوه سه**: چي الوسي رحمه الله وایي چي چونکه په حدیث مذکور کي یعني الحج عرفة بعض اهل اللغة لکه صاحب د شمس العلوم اشتباه کړې ده چي مراد په حدیث کي به مکان وي، نو ځکه دی وایي چي عرفات جمع د عرفة دی، او شمس العلوم والا وایي چي جمعیت د عرفات په اعتبار ددې دی چي هر جزء ته د مکان مذکور یې د عرفه نوم ورکړی دی. قال العلامه البغدادی رحمه الله وانما نون وکسر مع ان فیه العلمیة والتانیث یعني د عرفات ولفظ ته یې تنوین ورکړی او مکسور یې هم کړی، او سره له دې چي د عرفات په لفظ کي خو علمیت او تانیث دواړه موجود دي نو باید غیر منصرف وایي ولي چي دوې علامې د غیر انصراف پکښې سته کما عرف في النحو وقد تقرر في النحو ان غیر المنصرف لایقبل التنوین والکسر لان التنوین جمع المؤنث في مقابلة نون جمع المذکر، فان النون في الجمع المذکر قائم مقام التنوین الذي في الواحد في المعنی الجامع لاقسام التنوین وهو کونه علامة تمام الاسم فقط ولیس في النون ای الذي

في الواحد وجمع المذكر شيئ من معاني اقسام التنوين كما بينت في النحو فكذا التنوين في الجمع المؤنث علامة تمام الاسم فقط وليس فيها اى في النون الجمع المونث لشئي من تلك المعاني سوى المقابلة وليس الممنوع من غير المنصرف هذا التنوين اى تنوين المقابلة بل تنوين التمكن وان ذهاب الكسرة اى من غير المنصرف على المذهب المرضى تبع لذهاب التنوين من غير عوض بسبب عدم الصرف فقط وفي لفظ عرفات لم يذهب التنوين بسبب عدم الصرف لعدم كونه تنوين التمكن بل تنوين المقابلة واذا لم يذهب التنوين من لفظ عرفات لعدم الصرف لم يذهب الكسرة ايضا منه لكونها تبعا له اى التنوين، وهذا مذهب الجمهور انتهى ماقال العلامة البغدادي رحمه الله مع زيادة العبد العاصي.

**درويش وايي**: چي علامه زمخشري يوه ډېره ښايسته وجه راوړې ده حيث قال وانما نون وكسر لانه اى لفظ عرفات منصرف لعدم الفرعيتين المعتبرتين لان التانيث المعتبر مع العلمية في منع الصرف اما انيكون بالتاء المذكورة وهي ليست تاء التانيث بل علامة الجمع واما انيكون بتاء مقدرة كما في زينب واختصاص هذا التاء بجمع المؤنث يابي تقدير تاء اخرى لانه بمنزلة الجمع بين علامتي تانيث فهذه التاء كتاء بنت ليست للتانيث بل عوض عن الواو المحذوفة واختصت بالمؤنث فمنعت تقدير تاء فعلى هذا لو جعلت بنت علما للمؤنث كان منصرفا انتهى قول العلامة الزمخشري. او شيخ رضي پر ماقال د زمخشري دا سوال كړى دى چي كه په عرفات كي تانيث نه وايي نو ولي عربو پر ځان دا لازمه كړېده چي عرفات ته مؤنث ضمير راجع كوي، ويجاب عنه چي دا وزن چونكه خاص په مونث سره و ويكفى لارجاع ضمير المؤنث ولايلزم في ارجاع الضمير وجود التاء لفظا او تقديرا.

**درويش وايي**: چي علامه بغدادي د ابن الحاجب او د عصام الدين رحمه الله د سوالونو جوابونه هم وركړي دي فارجع الى تفسيره. قال المفسرون رح چي

دغه مکان مخصوص يې له څه وجهي په لفظ د عرفات مسمی کړی د حضرت علي او د ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی چې ابراهیم علیه السلام ته دغه مکان وربنوول سوی و. نو چې وه یې لیدی وه یې پېژندی، او بغوي رحمه الله د ضحاک څخه روایت کړی دی چې آدم علیه السلام چې مځکي ته راکښته سو په هند کي واقع سو، او حواء علیها السلام په جده کي نو بیا هر یو په بله پسي گرځېدل، نو د عرفات پر غونډۍ سره یو ځای سو او سره وه یې پېژندل، وقیل غیر ذالک مما یطول به الکلام.

**تنبیه**: درویش وایي چې د درویش په سبب د حسد علمي یا د حسد قومي او یا له سببه د مقبولیت عامه د کتابو او د حواشیو، دده دوه قسمه حاسدان دي په طالبانو کي هم سته او په کتب فروشانو کي هم بعض کسان سته او په ملا یانو کي بعض نفر سته، یو قسم درویش د سارق په نامه بولي چې له ده څخه څوک پوښتنه وکړي چې ولي سارق دی؟

هغه ورته ووایي چې دی پخپلو کتابونو او حواشیو کي د نورو علماؤ د کتابونو څخه نقل کوي، او بعض د ناقل په نامه.

**درویش وایي**: چې دواړو ډلو ته دي معلومه وي چې بناء د دین د اسلام پر نقل د صحابه کرامو رضي الله عنهم د آنحضرت صلی الله علیه وسلم څخه او د صحابه رضي الله عنهم څخه تابعینو رحمهم الله نقل کړی دی، او ائمة اربعة رحمهم الله د مذاهبو اربعه وو هم نقل کړی دی ثم وثم الی یومنا هذا. نو که نقل سرقه وي نو دا حاسدان ددغو مجتهدینو او ائمة اربعه او د مصنفینو رحمهم الله د کتب فقیه وو چې یو له بله څخه نقل کوي، او محدثان هم د یوه امام او د بل امام څخه د جرح او تعدیل نقل کوي څرنگه الفاظ استعمالوي. بیت

چشم بد اندیش که برکنده باد عیب نماید هنرش درنظر

**سوال**: ددغه کسانو چې ته یې په نامه د حاسدانو یادوې د هغو به دا غرض وي چې ته د یو کتاب څخه نقل کوې د هغه کتاب نوم ولي نه اخلې؟

**خواب**: له دې سببه زه د هغه کتاب نوم نه اخلم چې په هغه کتاب کې خبره مجمله وي زه يې په پښتو کې تفصيل غواړم، نو که د ګرده تفصيل حواله ورکړم خو درواغ به وي، او که يې هغسې چې په منقول منه کې وي پښتو ته واړوم شايد ډېره مطالعه کونکې به فائده پر وانه خلي.

او بل ځواب دادی چې تفسير مظهري چې په ټوله نړۍ کې منل سوی تفسير دی او درويش هم و هغه تفسير ته عقيده لري، تاسې يې مطالعه کړئ په نحوي قوانينو کې دا تفسير ګام په ګام په تفسير بيضاوي پسې اجمالاً روان دی او د بيضاوي نوم نه اخلي نو امام قاضي ثناء الله مرحوم ته تاسې څه واياست العياذ بالله سارق يې بولې که څرنګه؟

فيصله تاسې وکړئ، او نور ورته کتابونه په فقه او اصول الفقه او په د علوم عقليه وو کې ښځې ډېرې دي چې نقل کوي او د منقول منه نوم نه د کتاب او نه د مصنف اخلي نو هغه ته تاسې څه واياست.

**نتيجه داده**: چې ټولې نيوکې پر درويش باندې د حسد پر بناء دي وبس

قوله تعالى ﴿فَاذْكُرُوا اللّٰهَ﴾ يعني ذکر د خدای ﷻ کوئ په تلبيه سره او په ﴿لا اله الا الله﴾ ويلو سره او په ﴿سبحان الله﴾ او په ﴿الحمد لله﴾ ويلو سره او په دعاګانو کولو سره يعني د ټولو اذکارو اجازه ده بايد غافله او فارغه نه اوسئ ولې چې مزدلفه ځای د طاعت دی او د اجابت د دعاګانو دی.

**يوه سه**: چې مشعر حرام نو م د يوه غره دی چې قزح يې بولي چې امام الحجاج پر هغه ځای درېږي.

**مسئله**: درېده د حاجيانو قريب و جبل قزح ته خو افضل دی تر ټولو ځايو د مزدلفې ولذا خص ذالک الموضع بالذکر لکن د مزدلفې ټوله مځکه ځای د درېدلو ده، لکه عرفات چې ټوله ځای د درېدلو دی، که څه هم وقوف نژدې وجبل الرحمة ته افضل دی.

**يوه سه**: چې مشعر په قول د روح البيان العلم ته وايي والصحيح ماقال صاحب روح المعاني چې مشعر په معنا د معلم دی يعني ځای د علامې د عبادت والتوصيف بالحرام لحرمته، والبيضاوي ايضا فسر المشعر بالمعلم.

او زما گمان دادی چي لفظ د المعلم په روح البیان کي سهوه د کتاب ده والاصل المعلم فیتوافق الکل في معنى المشعر والشعائر العلامات.

**پوه سه**: چي معنی د کاف په "کماهداکم" کي لپاره د مطلق تقید ده او بیان الحال دی ای اذکره کما علمکم ولاتجاوزوا عن هدایته تعالی. او یا لپاره د تشبیه ده ای اذکرواه ذکرا حسنا کماهداکم هدایة حسنة والذکر الحسن مایکون کثیرا علی وجه التفرع والخفیة ناشیا عن الرغبة والرهبة مقرونا بالطمع في القبول والاثابة وحضور القلب کما في الحدیث المتفق علیه الاحسان ان تعبد الله کانک تراه فان لم تکن تراه فانه یراک ویکون الذکر في هذا الموضع الشریف الذي لایلقاه الحاج في کل وقت وحین خالیا عن الریاء والسمعة کما ان بعض العلماء المرائین یغطون الناس في هذا المقام الشریف ویشغلون الناس بسماع وعظه عن الذکر والادعیة والرغبة والرهبة وحضور القلب فبئس مایفعلون.

**پوه سه**: چي د ابن عباس ﷺ څخه روایت دی او هم د نورو صحابه کرامو څخه روایت دی چي قریش او حلفاء ددوئ به عرفات ته نه تله دوئ به ویله چي موږ اهل حرم یو او عرفات په جل کي داخل دی او مزدلفه په حرم کي داخله ده نو دوئ په مزدلفه کي وقوف کاوه او نور عرب به عرفات ته تله اتباعاً لملة ابراهیم ﷺ او قریشو به ترفع او تکبر کاوه ددې څخه چي موږ به د نورو حاجیانو په مثل پر عرفات دربږو ددوئ سره یو ځای. نو چي نور حاجیان به له عرفاته را روان سوه دوئ یعني قریش به له مزدلفي څخه را روان سوه، او قریشو به خپل قوم حمس باله چي جمع د احمس ده وهو الرجل الشجاع، وقیل الاحمس هو الرجل الصلب في الدین والقتال، نو څه وخت چي دین اسلام په منځ کي راغلی چي حقیقت دین ابراهیمي و. قال الله تعالی ﴿بل نتبع ملة ابراهیم حنیفاً﴾ نو مسلمانان د قریشو امر سوه په وقوف د عرفات لکه نور عرب او دا آیت نازل سو.

**درویش وایي**: چي دا وو شان نزول متفق علیه د ټولو احادیثو مبارکه وو او د تفاسیرو معتبره وو ددې آیت.

# ثُمَّ أَفِيضُوا مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ النَّاسُ

وروسته تر دریدو پر عرفات راکښته کیږي ای قریشو له هغه ځایه څخه چې نور خلګ راکښته کیږي، یعني نور عرب وهو عرفات یعني د جاهلیت ترفع او تکبر پریږدئ.

# وَاسْتَغْفِرُوا اللَّهَ ط

او طلب د بخښنې وکړئ د جاهلیت له کارو څخه

# إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٩٩﴾

په تحقیق خدای ﷻ بخښي ګناه د طلبونکي د مغفرت او نور احسان هم ورسره کوي.

په حدیث شریف کې راغلي دي چې خدای ﷻ فخر کوي پر ملکو باندې او ورته وایي وګورئ زما بندګانو ته چې له لرې ځایو څخه راغلي دي ببر سرونه یې دي او سپیرې پښې یې دي تاسي ملکي شاهداني یاست چې ما دوئ بخښلي دي، او په یو بل حدیث کې راغلي دي چې اعظم د خلګو په ګناه کې هغه سړی دی چې وقوف عرفات وکړي او بیا یې هم دا ګمان وي چې زه به خدای ﷻ نه یم بخښلی، او په بل حدیث شریف کې راغلي دي چې ﴿ان الشیطان ماروءی في یوم اصغر و احقر وازل منه یوم العرفة وما ذالک الا لما یری من تنزل الرحمة وتجاوز الله عن الذنوب العظام﴾

**بوه سه:** چې روح البیان د نهراني رحمه الله څخه داسي نقل کړی دی چې یو وخت یو حمامي د اوښ هډوکي سره جمع کړي وه او د حمام د تودولو په غرض یې د بټو په غار کې اچولي وه اور چې بل سو هغه د اوښ هډوکي تر غار دباندې را وغورځول سوه حمامي بېرته وغارته وروغورځول هډوکي د غار څخه بېرته را وغورځول سوه دریم وار بیا حمامي غارته ورواچول او حمامي ودې ته په تعجب کې دئ چې هډوکي اور ولې نه اخلي او سره ددې

چي په غار کي اور بل دی، حمامي وايي چي دا وار په داسي شدت سره هڅوکي را وغورځول سوه او د حمامي پر سينه ومبتلا، او هاتفي اواز حمامي واوريدی چي افسوس دی تاله ولي دا هڅوکي بار بار و اور ته اچوې او دا د هغه اوښ هڅوکي دي چي لس واره حج پر سوی دی، نو چي د حاجي د حيوان دا حال وي چي اور يې نه سوځي فماظنک بالحاج نفسه.

**فَاِذَا قَضَيۡتُمۡ مَّنَاسِكَكُمۡ فَاذۡكُرُوا اللّٰهَ كَذِكۡرِكُمۡ اٰبَآءَكُمۡ اَوۡ اَشَدَّ ذِكۡرًا**

او چي تاسي پوره کړئ او فارغه سئ له ارکانو څخه د حج، يعني په ورځ د لوی اختر وروسته تر رمی د جمرة العقبة او د ذبح او حلق او طواف زيارت.

**پوه سه:** چي ارکان يعني فرائض د حج دري دي بالاجماع (۱) الاحرام (۲) والوقوف بالعرفات (۳) والطواف الزيارة، او امام شافعي رحمه الله سعي د صفا ام مروه او حلق هم د ارکانو څخه بولي، وسياتي التفصيل في سورة الحج ان شاء الله تعالی، نو تاسي ذکر د خدای ﷻ کوئ په تکبير، حمد او تسبيح سره لکه چي تاسي به ذکر کول يعني په جاهليت کي خپل پلرونه او نيکه گان.

**پوه سه:** چي امام مظهري رحمه الله ددې آيت په تفسير کي داسي ويلي دي كان العرب اى في زمان الجاهلية اذا فرغوا من الحج وقفوا عند البيت اى بيت الله الشريف فذكروا مفاخر آبائهم آه، روح البيان وايي وكانت العرب اذا قضوا مناسكهم وقفوا بين المسجد اى مسجد الخيف الآن والجبل يعني في ايام المنى ويذكرون مفاخر آبائهم ومحاسن ايامهم يريد كل واحد منهم حصول الشهرة والترفع على غيره، نو خدای ﷻ ددې جاهليت د تکبر او فخر په اباو سره نهي کړه، او دوئ امر کړه په خپل ذکر سره او تمجيد او ثنا سره ولي تول خير د خدای ﷻ له خوا دی او ددوئ نيکه گان بندگان د خدای ﷻ وه لکه دوئ، او خدای ﷻ معطي د ټولو نعمتونو دی او خالق او رازق دی نو هر ذکر او ثناء خدای ﷻ لره ښايي.

**درويش وايي:** چي تفسير د روح البيان اشهر دی په نيز د مفسرينو او اهل

حدیثونه، او الوسي رحمه الله داسي عبارت ذکر کړی دی چي د دواړو شان نزول محتمل دی حیث قال ای کماکنتم تذکرون آبائکم عند فراغ حجکم بالمفاخر یعني خای د ذکر د مفاخر الآباء یې نه په گوته کړی، او د بیضاوي رحمه الله تفسیر موافق دی د روح البیان سره لفظا بلفظ دی والله اعلم بالصواب.

**پوه سه:** چي نور ترکیب د "اشد ذکرا" په بیضاوي، روح المعاني، روح البیان، تفسیر کبیر او تفسیر مظهري ډېر گران دی چي ددې تفسیر ایوبي د مستفیدانو تر فهم ډېر لوړ دی او پر مجازاتو او استعار ومبني دی، نو زه صرف د مظهري رحمه الله په دغو الفاظو اکتفاء کوم یعني "بل اشد ذکرا" او ذکرا تمیز دی د نسبت څخه د اشد.

فَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ رَبَّنَآ اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا وَمَا لَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ ﴿۲۰۰﴾

**پوه سه:** چي کلمه د فاء لپاره د تفصیل د حال د حاجیانو ده او من یقول مبتداء ده من الناس یې خبر دی، والمعنی نو بعض د حاجیانو څخه یعني مشرکان چي د اخرت او بعث بعد الموت څخه منکر دی او د ددوئ زړونه یوازي پر نعمتو ددنیا بند دي نو هغه یعني د مشرکانو حاجیانو بعد الفراغ من مناسک بي داسي کوله، چی اې رب زموږ، موږ ته راکړې په دنیا کي

**پوه سه:** چي مفعول د آتنا محذوف دی لپاره د تعمیم یعني مطعومات د هر قسم او ملبوسات هر ډول او مشروبات او مېوې رقم رقم وغیرها من النعم الدنیویة، خدای ﷻ ددوئ حال داسي بیانوي چي نسته دوئ لره په آخرت کي هیڅ برخه ولي خو دوئ اخرت نه مني او نه د آخرت برخه یې طلب کړېده.

**پوه سه:** چي کلمه د من لپاره د استغراق د نفي ده.

وَمِنْهُم مَّن يَقُولُ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿۲۰۱﴾

او بعض حاجیان چي د مراسمو څخه د حج فارغه سي یعني مسلمانان چي آخرت او نعیم د آخرت مني داسي دعا کوي چي اې رب زموږ، موږ ته راکړې په دنیا کي نعمت حسنه من الصحة والعافیة واخلاص العمل لله وتوفیق الطاعات والاجتناب من المعاصي والماکل والمشارب والاولاد وغیرها من النعیم الدنیویة.

**پوښتنه:** په دې آیت کي خو "حسنة" نکره ده او په سیاق د اثبات واقع ده وقد تقرر في النحو ان النکرة في سیاق الاثبات لاتعم.

**ځواب:** نکره په اثبات کي هم ګاهي عامېږي په قرینه د مقام کما في قوله علیه الصلوة والسلام ﴿تمرة خیر من جرادة﴾ یعني محرم که مچخ مړ کړي په احرام کي نو هره خرما بهتره ده په فدیه کي د هغه مچخ، وفیما نحن کذالک لان السائلین لنعم الدنیا لایخص سوالهم لطلب شیئ دون شیئ لان قدرة الله تامة ورحمته عامة واحتیاجات المسلمین في الدنیا کثیرة متنوعة فکیف یطلبون البعض دون البض. او مسلمانان حاجیان په آخیر کي دا هم وایي او موږ وساتې له عذاب څخه د اور یعني په عفو او بخښښي د ګنهو ټولو.

**درویش وایي:** چي چونکه دا دعاء جامع د ټولو خیراتو د دنیا او آخرت ده ځکه د لمونځو په آخیر کي دا دعاء ډېره زیبا او موزونه ده. وما روی عن علي کرم الله وجهه ﴿ان الحسنة في الدنیا المرئة الصالحة وفي الآخرة الحوراء، وعذاب النار المرئة السوئ﴾ فلیس المقصود منه الحصر بل لتعظیم الحسن في الاولین، وتعظیم العذاب في الآخرة. د انس ﷺ څخه روایت دی ﴿کان رسول الله ﷺ یکثر ان یقول ربنا آتنا الی آخیره﴾ بخاري مسلم

د عبدالله بن سائب ﷺ څخه روایت دی چي علیه الصلوة والسلام په منځ

کي د رکن يماني او حجر اسود ربنا آتنا تر پايه ويله رواه ابو داوُد والنسائي والحاکم، د انس ﷺ روايت دی چي رسول الله ﷺ يو سړی وليدی چي داسي ضعيف سوی و، لکه د مرغه چيچی يعني چي وزر يې نه وي کړي، نو عليه السلام و هغه ته وويل چي تا ګاهي خدای ﷻ ته يو خواست کړی و، او يا دي يو شی له خدای ﷻ څخه غوښتی و؟ هغه سړي ورته وويل چي ما داسي خواست خدای ﷻ ته کړی و چي خدايه ماته چي هغه عذاب په آخرت کي راکوې په سبب د ګنهو زما ما ته يې پر دې دنيا راکړې، يعني د آخرت له عذابه مي وساتې، عليه الصلوة والسلام ورته وويل سبحان الله چي د خدای ﷻ د عذابو خو ته طاقت نه لرې، ولي دي داسي نه ويل ربنا آتنا في الدنيا حسنة وفي الآخرة حسنة وقنا عذاب النار. او په بل حديث کي چي هم يې روايت انس ﷺ کړی دی راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام که به سل واره دعا کولای خو پيل او ختم به يې ربنا آتنا في الدنيا حسنة آه کوله.

## أُولَٰئِكَ لَهُمْ نَصِيبٌ مِّمَّا كَسَبُوا

او دوئ لره برخه سته له سببه د کسب ددوئ.

**پوه سه:** چي مظهري ﷫ فقط د بيضاوي عبارت راوړی دی اشارة الی فريق الثاني وقيل اليهما، او روح البيان فقط احتمال اول راوړی دی يعني چي اشارة وفريق الثاني ته دی يعنې هغه کسان چي حسنه د دينا او اخرت يې غوښتل چي مؤمنان وه، او دليل يې دا ويلی دی چي خدای ﷻ حکم د فريق اول چي کافران وه په هغه آيت کي ذکر کړی ﴿وما لهم في الآخرة من خلاق﴾ او روح المعاني په تفصيل خبري ډېري په زړه پوري کړي دي او دا يې ويلي دي چي اشارة په اولئک سره وفريق ثاني ته د او دا جمله مقابل د هغه جملې ده فريق اول ده ﴿ومالهم في الآخرة من خلاق﴾

**فائده:** تنوين د "نصيب" پر دې احتمال لپاره د تعظيم دی.

**فائده**: حکم يې پر اسم اشارة وکړی ددې لپاره چې علة د حکم په نصيب عظيم دوئ لره اتصاف د دوئ دی په ماسبق سره يعني دعا ددوئ د حسنة د دنيا او آخرت. او هم دا سبب دی چې جمله د اولئک آه عطف نه کړه ولې چې دا جمله لکه نتيجه د ماسبق ده نو په منځ کې کمال اتصال دی فلا يصح العطف کما بين في علم المعاني.

**فائده**: اولئک چې اشاره د بعيد د تنبيه ده پر لوړ مقام د فريق ثاني عند الله ثم قال الآلوسي رحمه الله وجوز ان تکون الاشارة الى الفريقين المتقدمين يعني الکافرين والمؤمنين.

**فائده**: نو پر دې تقدير تنوين د نصيب لپاره د تنويع دی يعني د کافرانو برخه يوازې په دنيا کې ده، او د مؤمنانو دا په دنيا او آخرت دواړو کې ده.

**پوه سه**: چې بيضاوي رحمه الله د لفظ "من" په مماکسبوا کې اول داسې کړېده، ای من جنس ماکسبوا وهو جزائه، او توجيه د جنسيت يې داده چې جزاء د عمل مماثله د عمل ده في القدر والوصف قال الله تعالى ﴿من جاء بالحسنة فله عشر امثالها ومن جاء بالسيئة فلا يجزى الا مثلها﴾ او دويمه ترجمه بيضاوي داسې کړې ده او من اجله کما في قوله تعالى ﴿مما خطيئاتهم اغرقوا﴾ يعني له سببه د ګنهو ددوئ غرق کړه سوه. او بيضاوي دا احتمال هم راوړی دی مما دعوا به من الحسنتين نعطيتهم ماقدرنا.

**سوال**: دوئ خو دعا کړې وه او په آيت کې خو د کسب لفظ راغلی دی، نو څرنګه به دا احتمال صحيح وي؟

**ځواب**: دا ځواب بيضاوي ورکړې دی چې دعاء خو هم کسب دی لانه من الاعمال انتهى، مظهري رحمه الله صرف په تفسير کې د آيت دغه قدر عبارت راوړی دی اقتداء بهذا الاحتمال للبيضاوي، سمى الدعاء کسبا لانه من الاعمال.

**تنبيه**: ددغو تورو ښځه به طالب ځه وفهموي.

وَاللّٰهُ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿۲۰۲﴾

او خدای ﷻ به په ورځ د قیامت کې حساب د ټولو بندګانو ژر پای ته رسوي، روی انه تعالی سحاسب العباد مع کثرتهم في قدر نصف نهار من ايام الدنیا، وروی في مقدار فواق الناقة، وروی في مقدار لمحة البصر کل ذالک لانه تعالی لايشغله شان عن شان.

**پوښتنه:** په اخبارو کې راغلي دي چې ورځ د قیامت پنځوس زره کاله ده فکیف التوفیق بین اخبار الحساب وهذا الخبر الذي یخبر بطول یوم القیامة؟

**ځواب:** طول مذکور خو صحیح دی لکن په دې ټوله طویله زمانه کې خدای ﷻ مشغول بالحساب نه دی بلکه په طویله زمانه کې خلګ منتظره وحساب ته وي فاذا اشرع الله ﷻ بالحساب مع العباد یکون ختم الحساب في المدة القصیرة المذکورة في الاخبار السابقة.

**فائده:** د حسن بصري رحمه الله څخه روایت دی چې خدای ﷻ وایي چې تاسي ما ذکر کوئ په هغو الفاظو چې طفل پلار ته وایي ولې چې طفل اول مایتکلم مع الاب یقول یا اب یا اب فعلی کل مسلم ان یقول یا رب یا رب.

**درویش وایي:** چې مور باید د هغو اطفالو چې په زانګو کې وي او هنوز وزمانې ته د خبرو کولو نه وي رسېدلي پند واخلو په دې معنا چې طفل مذکور چې یا وږی سي او یا یې پر نس درد وي او یا یې پر غوږو مثلا، نو دی څرنګه خپل د عوارضو عریضه مهرباني مورته رسوي د هغه طفل عریضه وهغه مهرباني مور ته ژړا ده، نو دا طفل چې په زانګو کې وژاړي مهربانه مور یې راواخلي اول یې وخپل تي ته واچوي چې شاید چې ده ژړل وږی به و، نو که په شیدو ارام نه سو او بیا یې هم ژړل، نو مهربانه مور یې پر نس او غوږو ورګرځي آخر الامر مور ته د ژړا علت معلوم سي او د هغه تداوي وکړي او طفل ارام سي، نو موږ لره هم پکار دی چې خپل حوائج او مشکلات وعالم الغیب والشهادة ته د اوښکو په توېدو او ژړا ودربار ته د رب اعلی په عرض ورسوو، ولنعم ماقیل

هر کجا آب روان سبزه شود　　هر کجا اشک دوان رحمت شود

وکذا ماقیل

تانگرید ابر کی خندد چمن　　تانگیرد طفل کی جوشد لبن

وکذا قوله

د رحمت باران که غواړې ته له خدایه

ته د اوښکو باران وه اوروه خدای ته

خواجه عبدالله انصاري قدس سره چه خوش میفرماید در بیان اهل عرفان

طرفة العینی نبوده غافل از حضرت ولی
سیلها با این همه از دیدها بکشاده اند
یک زمان از نوحه همچون نوح فارغ نیستند
همچو یحیی گوئیا از هر زاري زاده اند
ربنا گویند ازان لبیک عبدی بشنوند
جمله سرمست الست از جرعه این باده اند
راحتی دیدند وذوقی یافتند از انس وجان
روز وشب در کنج خلوت برسر سجاده اند
تا بدنیا آمدند از کلبه کتم عدم
سوی حضرت جز نیاز وناله نفرستاده اند
پیر انصاری تومیدانی که ایشان کیستند؟
فرقه بی کر وفر وزمره دل ساده اند.

**درویش وایي:** چي د بایزید بسطامي قدس سره ځخه چا پوښتنه وکړه ددې آیت د معنا ﴿والله سریع الحساب﴾ یعني چي څرنګه به د ډېرو بندګانو ځخه د طرفة العین په مقدار خدای ﷻ حساب کوي؟ بایزید رحمه الله ورته وویل چي د خدای ﷻ له خوا ځخه خو د ټولو بندګانو ځخه دا پوښتنه ده من ترا بودم تو کرا بودي، یعني من خالق رازق تو بودم تو عبادت که را میکردی یعني عبادت بتان میکردی یا عبادت نفس وشیطان میکردی، جواب آن بېندګان تعلق دارد.

## وَاذْكُرُوا اللّٰهَ فِيٓ اَيَّامٍ مَّعْدُوْدٰتٍ

او تاسي اى حاجيانو ذكر كوي د خداى ﷻ يعني هر ذكر چي وي په هغو ورځي كي چي د حساب ورځي دي يعني ايام التشريق في منى، معدودات يې په دې وبللې چي لږ دي كذا روى عن ابن عباس ؓ.

**پوه سه:** چي مراد له ذكره څخه په دې ځاى كي تكبيرونه د تشريق دي يعنې الله اكبر الله اكبر لا الـه الا الله والله اكبر الله اكبر ولله الحمد، تر هر لمانځه وروسته په جهر سره يو وار.

**فائده:** ورځي د تشريق وروسته تر ورځي د اختر چي يوم النحر يې بولي درې دي او يوولس (۱۱) ورځي چي يوم القر يې بولي ولي چي حاجيان ټوله په منى كي قرار لري، او دولسمه ورځ چي يوم النفر الاول يې بوليٓ ولي چي بعض حاجيان وروسته ددې ورځي تر رمى الجمار د منى څخه وزي كما سيئاتي في القرآن المجيد، او ديارلسمه ورځ چي يوم النفر الثاني يې بولي چي حاجيان ټوله په دغه ورځ له منى څخه وزي كما سيئاتي ايضاً.

**فائده:** دغه درې سره د يوم النحر ورځي د وشتلو د جمار دي چي د جمار په وشتلو كي هم الله اكبر ويل كېږي، او تكبيرونه د تشريق د عرفات د ورځي د سهار د لمانځه څخه شروع كېږي تر اخيره د ورځو د تشريق چي تر درويشتو لمونځو وروسته ويل كېږي، وفي الحديث ﴿كبروا من يوم عرفة الى اخير ايام التشريق﴾ ويوافق هذا الحديث مذهب الصاحبين للامام الاعظم رحمه الله.

## فَمَنْ تَعَجَّلَ فِيْ يَوْمَيْنِ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ۚ وَمَنْ تَاَخَّرَ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ۙ

نو كوم څا چي تلوار وكړى يعني په وتلو كي له منى څخه په دوو ورځو كي د ايام تشريث يعنې د منى څخه ووزي دوهمه ورځ پس له رمى د جمارو په هغه ورځ كي، نو گناه نسته پر ده لانه عمل بالرخصة او كه څوك وځنډېږي په وتلو كي د منى دريمي ورځي ته نو پر هغه گناه نسته بلك د دريمي ورځي ځنډېدل اولى او افضل او عزيمت دى.

**پوه سه:** چي مجتهدين رح ټوله پر دې متفق دي، که يو حاجي له منى څخه نه ووتى حتى دريمه ورځ پر داخله سوه نو پر هغه رمى د دريمي ورځي هم واجب دى لكن اختلاف په دې كي دى چي معتبره دريمه شپه ده، نو شافعيان وغيرهم وايي چي معتبر دخول د دريمي شپې دى يعني پر حاجي دريمه شپه په منى كي داخله سوه نو پر هغه حاجي د دريمي ورځي رمى الجمار واجب دى، او امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله وايي چي د دريمي ورځي رمى پر ده نه دي واجب تر څو چي د دريمي ورځي سپېدې نه وي راچاودلي يعني كه په دريمه شپه د منى څخه ووزي روا ده، او كه د دريمي ورځي سپېدې په منى كي پر راوچاودې نو بيا د هغې ورځي رمي هم پر واجب دي، امام اعظم رحمه الله وايي چي وخت د رمى خو ورځ د شپه نه ده، نو قبل دخول اليوم ليس وقت الرمى فلا يجب عليه الرمى بدخول الليلة الثالثة، نو مثال يې دادى چي يو سړى په سفر كي په ورځ د جمعې له ښاره څخه ووزي چي زوال نه وي سوى يعني وخت د لمانځه د جمعې نه وي داخل سوى نو هغه ګناه كار نه دى بخلاف من خرج عن البلد وسافر بعد الدخول وقت صلوة الجمعة فانه عاص.

لِمَنِ اتَّقٰى ۗ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّكُمْ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿۲۰۳﴾

**پوه سه:** چي "لمن اتقى" خبر د مبتداء محذوف دى يعني هذه الاحكام المذكورة للحج نو معنا د آيت داده چي احكام مذكوره د هغه لپاره دي چي هغه د خداى ﷻ څخه ببربږي ولي چي پر احكام الهيه وو عموما وخصوصا هغه سړى نفع اخلي چي د خداى ﷻ څخه ببربږي او د خداى ﷻ څخه وببربږي او په دې پوه سي چي تاسي وخداى پاک ته راجع كېږئ يعني په ورځ د حشر نو خداى ﷻ به د تقوى ثوابونه په په ورځ د حشر دركړي.

**تتمه:** په روايت د ابو هريره رضي الله عنه داسي مرفوع حديث په بخاري او مسلم كي راغلى دى ﴿من حج لله ولم يرفث ولم يفسق رجع كيوم ولدته امه﴾ كه چا حج وكړى لپاره د خداى ﷻ يعني ريا او سمعه او تجارت يې باعث نه وو

پکښې، او رفث چې معنا يې له مخه تېره سوه، او بل فسق يې پکښې ونه کړي، نو دی به له حج څخه داسې ستون سي لکه هغه ورځ چې له موره زېږېدلی وي، يعني له ټولو ګنهو څخه پاک، او دغه رنګه د ابو هريره ﷺ په روايت په بخاري او مسلم کې داسې راغلي چې آنحضرت ﷺ وويله ﴿الحج المبرور لس له الجزاء الا الجنة﴾ او د ابن مسعود ﷺ څخه روايت دی چې امام شافعي ﷺ او ترمذي ﷺ کړی دی قال قال رسول الله ﷺ ﴿الحج والعمرة ينفيان الفقر والذنوب كما ينفي الكير خبث الحديد﴾

**ترجمه**: حج او عمره نيستي کوي مسکنت او ګنهونه لکه چې نيستي کوي کوره د آهنګر خيري او نور خبث د وسپني.

**درويش وايي**: چې لکه په حديث شريف کې چې آنفاً تېره سوه دار ومدار د عفو د ټولو ګنهو پر دې دی چې په حج کې به رفث او فسق نه کېږي، او په قرآن مجيد کې هم قبلاً ذکر سوه ﴿فلا رفث ولا فسوق ولا جدال في الحج﴾ لکن په اوسني زمانه کې چې ازدحام د خلګو ډېر دی او په يوه وطاق کې ډېر حاجيان په نفقه يعني په اندازه سره شريکان وي نو ددغو درو مذکوره عملو څخه به ډېر لږ حاجيان خلاص وي.

اول حاجيان چې په مجلس کې سره کښېني او بانډار سره کوي نو د يو چا غيبت پسې راواخلي چې ګناه کبيره ده، او چې مسخرې سره کوي په خندا قهقه سره خاندي چې ګناه ده، دوهم فسق خو يو عام لفظ دی ډېر منهيات تر لاندې کېږي، دريم جدال خود انډيوالانو تر منځ ډېر پېښېږي، يو وايي ته ولې مستې يوازې پر سر پورته کوې، بل وايي وېشګر ته د غوښو وايي چې تا فلانې ته څونډه لويه برخه ورکړه اخير پر جنګ سره راسي، او بعض اوقات له وطاقه سره ووزي، که د يو چا سره ځوانه ماينه ورسره وه د احرام په وخت کې ګاهې ناوخته رفث څندې کېږي، نو ښه ژوند په حج کې دا دی چې ګوښه د خلګو څخه ژوند کوي، او که يې قدرت مالي درلودی يوازې او يا د يو ډېر نژدې قريب سره لکه زوی پلار مور وطاق کرايه کړي، او

اکثره اوقات په مسجدینو مبارکینو کي تېروي او په طواف یا په تلاوت د قرآن کریم او یا نورو اذکارو ورځ او شپه تېره وي او په حرمینو شریفینو کي د چا سره دنیاوي خبري نه کوي ومن الله التوفیق

**درویش وایي:** چي دغسي حاجي به نو حاجي مغفور وي لکن مثل هذا الحاج نادر غایة الندرة في الزمان الحاضر.

**درویش وایي:** چي ما په اخري حج کي خلګ خپله ولیدل چي د عرفات پر ډګر به حاجیان په خېمو کي د مسلمانانو ناست وه، او پسله له زواله چي وخت د وقوف دی بیا هم په بانډارو او مسخرو سره اخته وه، چي د مازدېګر وخت به نژدې سو نو یو ګړی به یې دعاګانې وکړې، او د معلمانو په موټرانو کي به چي ډېر ازدحام به و په جنګو او حملو سپاره سوه. د مزدلفې پر خوا به راوان سوه، درویش به بعضو اندیوالانو حاجیانو ته وویل چي ته چي حج ته راتلې تاته به دوستانو او قریبانو ویلي وي چي حاجي صاحب ماته به د عرفات پر ډګر دعا کوې تابه وعده ورسره وکړه چي ښه دی، نو تا اوس پر عرفات کوم قریب او دوست ته په نامه دعاء وکړه، نو چي زما سره په خیمه کي اندیوالان وه مابه هغه وروسته تر زوال په لمانځه د ماپښین اخته او وروسته تر لمانځه په دعاګانو او نفلونو او قرآئة القرآن او تسبیح وتهلیل سره اخته الی وقت صلوة العصر.

**سوال:** د ماپښین او د مازدېګر لمونځ پر عرفات یو ځای سره کېږي، نو تا ولي دا دوه لمونځونه جلا جلا سره کول؟

**ځواب:** جمع ددغو لمونځو خو په مسجد نمره کي په امامت د امیر الموسم سره کېږي او هغه مسجد ته رسیدګي په سلو کي لس کسه نه سي کولای، او په خیمو کي چونکه جمع ددغو دوو لمونځو نه ده روا کما تقرر في کتب المذهب، او اکثره حاجیان دغه دوه لمونځونه په خېمو کي کوي، لهذا ما دغه دوه لمونځونه جلا جلا ذکر کړه. او که کوم حاجي موفق سي او مسجد نمره ته ځان ورسوي، نو هغه چي جمع ددغو دوو لمو نځو په

جماعت سره وکړه هغه سمدستي په دعاګانو شروع کوي الی قریب من غروب الشمس، او بعض ملایان وحاجیانو ته وایي چي په امام مسجد النمره پسي لمونځ مه کوئ، ولي چي دی خو له مکې څخه راغلی دی، او د مکې څخه تر عرفاته پوري مسافت د قصر د لمانځه نه دی، او سره ددي امام المسجد المذکور دغه دواړه لمونځونه دوه دوه رکعته کوي، چي زموږ حنفیانو د مذهب خلاف دی، او دوئ خبر نه دي چي دغه امام المسجد په دغه ورځ وختي طائف ته ځي یعني ځان مسافر کوي او د طائف له خوا څخه عرفات ته راځي، نو خو امام هم مسافر دی تر هغه وخته چي بېرته مکې ته چي دده وطن دی رسېږي،

وللناس فیما یعشون مذاهب          ومن مذهب حب الدیار لاهلها

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُّعْجِبُكَ قَوْلُهٗ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَيُشْهِدُ اللّٰهَ عَلٰى مَا فِىْ قَلْبِهٖ ۙ وَهُوَ اَلَدُّ الْخِصَامِ ﴿۲۰۴﴾

**شان نزول هذه الآیة:** مظهري رحمه الله له بغوي رحمه الله او هغه د کلبي، مقاتل او عطار رحمهم الله څخه نقل کړی دی چي اخنس بن شریف الثقفي چي معاهد یعني حلیف د بني زهره و، او په حقیقت کي منافق و، او علیه الصلوة والسلام ته یې اظهار د ایمان کړی و، او علیه السلام ته به یې ویل چي والله اني احبک، او دا منافق ډېر خوږ ژبی سړی و، او هم ډېر ښکلی سړی و، یعني په ملبوساتو کي، نو دی چي به مجلس نبوي ﷺ ته راغلی آنحضرت ﷺ به ځان ته نژدې کښېناوه او دده خبرو ته به یې غوږ نیوی، نو دا آیت په شان کي د هغه منافق نازل سو.

**پوښتنه:** علیه السلام دده په قلبي نفاق نه پوهېدی؟

**ځواب:** عالم الغیب والشهادة خو رب جل وعلا دی، قرآن مبارک ددې شاهد دی، قال الله ﷻ حاکیا عن قول رسول الله ﷺ ﴿قل لو کنت اعلم

الغيب﴾ الاية، او احاديث مباركه هم ددې شاهد دي چي آنحضرت ﷺ لا ببله
وحي الهي يا متلو يا غير متلو او يا ببله الهام الهي حكم د چا په نفاق سره
نه کاوه، او هم په دې جلد کي د تفسير تېره سوه دوو کسو چي به عليه
السلام ته دعوه پېش کړه ده به ورته وويل انما انا بشر ولعل بعضكم الحن
بحجته الى آخير الحديث.

**ترجمه**: او بعض د خلګو څخه داسي سته چي تا په تعجب کي اچوي، او
تاته خوند درکوي خبري دده په سبب د فصاحت او بلاغت او دا خوند د
خبرو دده محصور دی پر دې دنيا او په آخرت کي خو به خود دی رسوا سي
په منافقت سره، نو بيا خو خبري دده چي دعوې د اسلام او ستا د محبت به
يې کوله خوند نه کوي، لکونه کذب بحت و ادعاء صرف. او دی شاهد
ګرځوي خدای ﷻ پر هغه شي چي دده په زړه کي دی، يعني دی وايي چي
خدای ﷻ شاهد دی چي زما په زړه کي هم ستا سره محبت سته. لکه په
خوله چي وايم، او حال دادی چي سخت عداوت لري له تاسره، بلکه د ټولو
مسلمانانو سره لان من عادي رسول الله ﷺ فهو عدو لدينه ولجميع من
يتبع دينه بل هو عدو للقرآن ودين الاسلام كما لايخفى.

**پوه سه**: چي دلته يو سوال دا پيدا کېږي چي "الد" خو اسم تفضيل دی او
اسم تفضيل خو هغه شي ته مضاف کېږي چي دی بعض د مضاف اليه څخه
وي نحو فلان افضل القوم، او خصام خو مصدر دی د خاصم يخاصم
مخاصمة وخصاما، نو پر دې تقدير خو الد بعض له افرادو څخه د خصام
چي مصدر و، وګرځېدی نو حمل د "الد" پر "هو" باندي حمل د مصدر دی
پر ذات باندي؟ ددې سوال ځواب بعضو مفسران دا ډول ورکوي چي مضاف
محذوف ای هو ذو الد الخصام، او بعض يې حمل مبالغة بولي، كما
يقولون في زيد عدل، مظهري رحمه الله د "الد" ترجمه په اسم تفضيل سره کړې
ده او "خصام" يې مصدر ګڼلی دی، فقال ای اشد الخصومة، وقال والخصام

مصدر خاصمه آه نور يې سوال او خواب ته هيڅ تفصيل نه دی ور کړی. او روح البيان هم تفسير د "الد" په اسم تفضيل سره کړی دی حيث قال ای اشد في العداوة والخصومة للمسلمين على ان الخصام مصدرا آه، او روح المعاني او بيضاوي يې تفسير په شديد الخصومة سره کړی دی او اشاره يې ودې ته کړې ده چې "الد" اسم تفضيل نه دی بلکه صفت مشبه دی لکه احمر باتفاق النحاة، ولې چې الد په تشديد د دال وزن يې د احمر ويدل عليه ان جمع د الد، لد په تشديد د دال ده لکه چې د احمر جمع حمر ده، او مؤنث د "الد" لداء دی لکه د احمر مؤنث چې حمراء دی.

**درويش وايي:** پر دې تقدير يې حمل پر هو صحيح دی لانه صفة مشبة او اضافت يې اضافت د صفت و فاعل ته ای هو شديد خصومة.

**درويش وايي:** چې هغه مفسرين رحمهم الله چې "الد" اسم تفضيل بولي او حمل يې پر هو روا بولي هغه وايي چې خصام مصدر نه دی بلکه جمع د خصم ده لکه بحار جمع د بحر وهو المنقول عن الزجاج ياصعاب جمع د صعب وهو المنقول عن البيضاوي رحمه الله، نو پر دې تقدير اسم تفضيل چې الد دی مضاف سو الى ماهو بعض منه بلا تکلف.

**درويش وايي:** چې روح البيان چې "الد" اسم تفضيل بولي او خصام مصدر بولي په خواب کې د سوال مذکور داسې وايي يعني اشارة چې د الد مفضل عليه محذوف ای اشد الناس او اضافة يې وخصام ته په تقدير د في بولي حيث يقول اشد في الخصومة.

**درويش وايي:** چې فهم د خواب له عبارت څخه د روح البيان مما الهم لهذا العبد الفقير فهو سانح عزيز.

**درويش وايي:** چې مظهري رحمه الله يو روايت ضعيف و ابن عباس رضي الله عنه ته منسوب کړی دی چې په غزا کې د رجيع چې په هغه کې عاصم او مرثد هم وه بعض مسلمانان شهيدان سوه، نو دوو کسو د منافقانو وويل يا ويح

هؤلاء المقتولين الذين هلكوا الاهم قعدوا في اهلهم فانزل الله تعالى هذه الآية، دا قول د اکثرو مفسرانو څخه خلاف دی، ولې هغه يې په اخنس بن شريف کې نازل بولي کمامر.

**درويش وايي:** چې د حال سره د اخنس مذکور دا بيتونه ډېر زيبا دي.

تعصی الاله وانت تظهر حبه          هذا لعمری في الفعال بديع
لو کان حبک صادقا لأطعته          ان المحب لمن احب مطيع

حافظ شيرازي

بصدق کوش که خورشيد زايداز نفست
که از د روغ سيه روی گشت صبح نخست

يعنی صبح کاذب لانه يعقبه الظلام في الافق فيظهر کذبه للناس في قرب الشمس من الافق.

**مسئله:** فقهاء رح وايي که چا دروغ ويل او داسې يې وويله چې خدای ﷻ شاهدي دی چې زه صادق يم هغه په دغه وينا کافر کېږي، ولې چې خدای پاک يې شاهد د دروغو وباله.

**درويش وايي:** چې تر دې ډېرې د پښتنو خبرې لاندې کېږي، مثلاً يو سړی وبل ته د تملق او غوړه مالی له لارې ووېل چې خدای شاهد دی که ماته په يوه دعاء کې هېر کړی يې، او داغسې نه وه دا کفر دی وغير ذالک من اقوال الافاغنة.

**درويش وايي:** چې بيضاوي يو روايت په قيل سره راوړی دی حيث قال وقيل في المنفقين کلهم، دا احتمال نهايت ضعيف دی، او هيڅ چا د مفسرانو دا احتمال صحيح نه دی بللی، او تو له سياق الآية ددې له دې احتماله څخه مخالف دی کما لايخفی.

**الاعراب:** يوه سه چې من يقول سره د صله مبتداء ده، او من الناس يې خبر دی

**سوال:** څه فائده ده چې من یقول د انسانانو څخه دی، لانه اظهر من الشمس او سره ددې نحات وایي چې محط د فائده خو خبر وي وههنا لیس کذالک؟
**ځواب:** ددې اخبار فائده داده چې من یقول آه صرف او صرف انسان دی یعني د انساني کمالاتو څخه هیڅ شی پکښې نسته وهذا الخبر مفید، کمالا یخفی، او علامه تفتازاني رحمه الله په حاشیه کې د کشاف ویلي دي چې من تبعیضي یعني په من الناس کې په تاویل د بعض الناس مبتداء ده، او من یقول آه یې خبر دی وهذا الخبر مما لاشک في کونه مفیدا، لکن علماء وایي چې د من تبعیضي مبتداء والی صرف علامه تفتازاني رحمه الله له قوته وفعل ته رایستلی دی، یعني لم یذهب الیه قبله من العلماء والله اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب.
**درویش وایي:** که ورته احتمال ما راوړی وایي حاسدانو به د خلو د غیبت په ډبرو سنگسار کړی وایي، ولې چې ماته د بعضو جاهلانو غیبت په دې ډول رسېدلی دی چې ما په قدوري وغیره کې د ذکر، دبر، خښتېنو، حشفه ترجمه په پښتو کړې ده، دوئ جاهلان وایي چې عبید الله نه شرمېږي چې دغسې الفاظ وایي، نو زه دوئ ته وایم دغه الفاظ په عربي ژبه د علیه الصلوة والسلام پر پاکه ژبه جاري سوي دي او کتب د احادیثو مبارکه وو او د فقهاؤ رح هم په دغو عربي الفاظو سره ډک دي، نو درویش خو ترجمه په پښتو ژبه ددغو کتابو اخستې ده، نو درویش په پښتو کې ددغو الفاظو څرنګه پښتو ترجمه وکړي.

**بیت**

چشم بد اندیش که بر کنده باد غیب نماید هنرش درنظر

لکن درویش وایي چې کاروان د تصنیف د درویش پر مخ روان دی ستاسي په چون وچرا سره شاته نه راځي، ببغمه خپل غیبتونه کوئ، او د حسد په اور خپل زړونه سوځئ، د درمختار مقدمه خو لطفا مطالعه کړئ او کاشکي د درمختار په مقدمه دوئ پوهېدلای.

وَإِذَا تَوَلَّىٰ سَعَىٰ فِي الْأَرْضِ لِيُفْسِدَ فِيهَا وَيُهْلِكَ الْحَرْثَ وَالنَّسْلَ ۗ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الْفَسَادَ ﴿٢٠٥﴾

**پوه سه:** چي مفسرین رح په متفقه ډول ددې آیت داسې ترجمه کوي. او هغه وخت دغه منافق اخنس بن شریف چي ستا له مجلس څخه رجوع وکړي او یا ولي او مالک وګرځي د یو ځای نو دي سعي کوي په مځکه کي ددې لپاره چي دی فساد وکړي، او دی هلاک کړي کښت د خلګو یعني اور ورواچوي او مواشي د خلګو او د خدای نه دی خوښ په مځکه کي فساد.

**فائده:** اخنس مذکور چي دغسي هم وکړه او دده او د ثقیف د قبیلې تر منځ عداوت و، نو اخنس د شپې له خوا ورغلی او د ثقیف د قبیلې کښتونو ته یې اور واچوی او مواشي ددوئ یې ورمړه کړه.

**فائده:** سعي په لغت کي چابک تګ ته د پښو وايي، او دلته مجازا په کوشش کي په یو کار کي مستعمل دی.

**پوښتنه:** سعي په معنا حقيقي او مجازي دواړو کي مخصوص په مځکه پوري دي، نو د في الارض څه فائده ده؟

**ځواب:** په راوړو کي د ارض اشاره ده وکثرت ته د فساد دده، ولي لفظ د ارض ټولو اجزاؤ ته د مځکي شامل دی، وعموم الظرف یعني الارض یستلزم عموم المظروف یعني الفساد.

**فائده:** حرث کښت ته وايي د هر شي کښت چي وي، که غنم وي او که جوار وي وغیرهما.

**پوه سه:** چي حرث او نسل که څه هم دواړه مصدر دي لیکن دلته په معنا د مفعول دي، قاله صاحب روح البیان.

**فائده:** که څه هم بغض او محبت د شي په منځ کي واسطه لري مثلا زید له عمره سره نه بغض لري او نه محبت ورسره لري، لکن په ټوله قرآن مبارک

کې عدم محبت د خدای ﷻ د شي سره په اتفاق د مفسرینو رح په معنا د عدم رضاء د خدای ﷻ ده بلکه د بغض او غضب د خدای ﷻ ده. فلا ینبغی للمؤمن ان یعمل العمل الذي ورد فیه انه تعالى لایحبه، لانه تعالى یغضب علی عامل العمل المذکور.

**فائده:** عطف د "یهلک الحرث والنسل" پر "یفسد فیها" باندې عطف د خاص پر عام دی لان الاهلاک المذکور من جملة الافساد . وفائدة العطف التنبیه علی شدة وخامة هذا النوع من الافساد ای اهلاک الحرث والنسل لتضمنه مفاسد اخری کما لایخفی.

**درویش وایي:** چې په روح البیان او روح المعاني کې داسې سوال او ځواب موجود دي، چې خدای ﷻ انسانان او حیوانان وژني او پر میوو د درختو بې وخته ژلۍ اوروي چې ټولې میوې فاسدې سي وهکذا نور ورته کارونه کوي، نو دا کارونه افساد نه دی، او خدای جل سلطانه وایي ﴿والله لایحب الفساد﴾ قال العلامه الآلوسي رحمه الله في جوابه ان الافساد في الحقیقة اخراج الشیئ عن حالة محمودة لا لغرض صحیح وذالک غیر موجود في فعله تعالى ولا هو امر به وما نراه من فعله جل سلطانه افسادا فهو بالاضافة الینا ، واما بالنظر الیه تعالى فکله صلاح وله تعالى فیه حکم محمودة لاتحصی واما امره باهلاک الحیوان مثلا لاکله فلا صلاح الانسان الذي هو زبدة هذا العالم السفلی.

**درویش وایي:** چې حاصل د کلام د علامة البرسوي رحمه الله او د علامه آلوسي رحمه الله دادی چې په دلائل نقلیه او عقلیه سره دا ثابته ده چې رب جل سلطانه حکیم مطلق دی او هیڅ شی او هیڅ کار دده له حکمت او فائدې څخه خالي نه دی که یې څوک په حکمت وپوهیږي، او که نه نو د خدای ﷻ کارونو ته افساد نه سي ویل کېدای بلکه خالي عن الفائدة هم نه دی بخلاف افعالنا فافهم

وَإِذَا قِيلَ لَهُ اتَّقِ اللَّهَ

او چي وبه ويل سوه اخنس ته پر طريقه د نصيحت چي وبېرېږه له خدايه يعني اهلاکه د حرث او نسل د خلګو مه کوه.

أَخَذَتْهُ الْعِزَّةُ بِالْإِثْمِ

نو دی باعثه کړی عزت او تکبر د جاهليت يعني چي په څه به ماته ناصح نصيحت کوي بالاثم ای علی الاثم يعني نور پر خپل افساد ټينګ سي

فَحَسْبُهُ جَهَنَّمُ ۚ وَلَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿٢٠٦﴾

نو ده لره کافي دی جهنم جزاءً وعذاباً في الآخرة.

**پوه سه**: چي جهنم نوم دی د دار العقاب في الآخرة که اور وي او که زمهرير وي، که څه هم په اصل لغت کي مرادف د اور دی، او هر آئينه بدفراش دی جهنم وهو المخصوص بالذم المحذوف.

**درويش وايي**: چي د ابن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي د لويو ګنهو څخه دا خبره د سري ده چي يو ناصح وده ته ووايي اتق الله دی ورته ووايي چي ته خپل ځان بنه کړه. ومثل هذا الجواب رائج في جهلة الناس في زماننا ايضا، روی انه قيل لعمر بن الخطاب ﷺ اتق الله فوضع خده على الارض تواضعا لله ﷻ، وهكذا روی عن عمر بن عبد العزيز ﷺ ذالک الملک العادل انه قيل له اتق الله وکان راکبا على فرس فوثب عن الفرس ووضع محاسنه على الارض ثم قال للقائل ماحاجتک.

**فائده**: لفظ د "حسب" مصدر دی په معنا د فاعل دی او مبتداء د جهنم يې خبر دی، او جنهم غير منصرف دی، للعلمية والتانيث السماعي، او بعض علماء وايي چي جهنم لفظ فارسي دی، او اصل يې ګهنام و فعرب بابدال الکاف الفارسي بالجيم کما هو القانون مثل لجام ولګام او الف يې ځندي حذف کړی نو پر دې تقدير عدم انصراف يې په سبب د عجميت او علميت دی.

**تمهید:** پوه سه چي شراء په عرف کي د فقه شریفي بذل الثمن لتحصیل المبیع، یعني ورکول دي د روپو، مثلا لپاره د لاسته راوړلو د مبیع هر شی چي و، نو مقصود د مشتري مبیعه وي، ودې ته په پښتو کي رانیول وایي، او بیع ورکول د مبیع دی او لاس ته راوستل د ثمن دي نو مقصود بالذات د بائع ثمن دی چي دې ته په پښتو کي خرڅول وایي، لکن فقهاء رح وایي چي لفظ د شراء او بیع د اضدادو څخه دي، یعني دا دواړه لفظه په دواړو معناوو کي مستعملېږي لکه چي په راتلونکي آیت کي چي لفظ د شراء راغلی دی په معنا د بیع، نو د آیت معنا داده.

بعض خلګ یعني مجاهدین د مسلمانانو داسي دي چي خپل ځانونه خرڅوي یعني خپل ځانونه قربانوي او خپل وینه تویوي په غزاء کي د کافرانو سره لپاره د تحصیل د رضاء الهي په سبب داعلاء کلمة الله، نو دغو مجاهدینو خپل ځانونه لکه ثمن ګرځولي دي او مرضات الهي لکه مبیعه یعني مقصود بالذات ددوئ طلب ده رضاء الهي ده، او خپل ځانونه او ویني یې ثمن ورته ګرځولي دي، قال الله عزوجل في بیان حال هولاء

وَمِنَ النَّاسِ مَن يَشْرِي نَفْسَهُ ابْتِغَاءَ مَرْضَاتِ اللَّهِ ۗ وَاللَّهُ رَءُوفٌ بِالْعِبَادِ ﴿٢٠٧﴾

او بعض د خلګو څخه یعني مسلمانان چي بندي او خرڅوي خپل ځان.

درویش وایي: چي اګرچي شان نزول ددې آیت خاص خلګ وه کماسیئاتي لکن عبرت عموم لره د لفظ دی خصوص لره د مورد نه دی، نو څکه یې مظهري رحمه الله داسي تفسیر کړی دی، ای یبیع ویبذل في الجهاد او الامر بالمعروف والنهی عن المنکر، او درویش داهم پر زیاتوي، او کلمة الحق عند سلطان جائر، او روح البیان ډېر تعمیم پکښي کړی دی ای یبذل نفسه في طاعة الله من الصوم والصلوة والحج والزکوة والجهاد وتوصل بذالک

الی وجدان ثواب الله الخ، لپاره د طلب د رضا د خدای ﷻ نو مرضات مصدر میمي دی، او خدای ﷻ ډېر مهربانه دی پر بندګانو.

**درویش وایي:** چي دا د رب العزت ډېره غټه مهرباني ده چي زموږ نفسونه زموږ مالونه يي ټوله خاص ملک او حق د خدای ﷻ دي او بيا هم خدای ﷻ دا خپل خاص ملک له موږ څخه رانسي او په عوض کي په ورځ د قيامت هغه نعمتونه د جنت من الحور والقصور والماکولات الشهية والمشروبات لذيذة، راکوي چي مالاعين رئت ولا اذن سمعت ولاخطر علی قلب بشر يعني بالتفصيل، او هم دا ټوله رحمةً او احساناً واکراماً وفضلاً راکوي فما نبغی غيرها.

**پوه سه:** چي بعض مفسرين شان نزول دې آيت داسي بيانوي چي صهيب بن سنان الرومي ﷺ چي عمر يې سل کاله و، له مکې څخه ووتی په نيت د هجرت الی دار رسول الله ﷺ يعني المدينة المنورة او دده سره څو نفره نور هم ملګري وه، نو يو څو نفره د کفارو د قريشو په دوئ پسي ووتل. او دده ملګري کسان يې په شهادت ورسولﷺ او د صهيب سره خپل بغل خولی د غشو ډکه ورسره وه، او صهيب ﷺ د غشو په وشتلو کي ډېر مهارت درلودی او غشی يې نه خطاکاوه، نو قريشوته يې وويل يامعشر القريش چي تاسو پوهېږئ او خبر ياست چي په ټوله مکه کي زه ډېر مصيب غشي وشتونکی يم او قسم په خدای دی چي زه به هر غشی ستاسي د يوه پر زړه لګوم، او قسم په خدای دی چي تاسي مانه سئ نيولای چي زما په بغل خولی کي هرڅو غشي دي يو يو ستاسي به مړه نه کړم، وروسته چي زما غشي خلاص سي بيا نو افعلوا بي ماشئتم، او دا خبره يې هم ورته وکړه چي زه شيخ کبير سالخورده يم زما وجود په مکه کي تاسي ته څه فائده ده. او صهيب ورته زياته کړه چي زما په کور کي يعني په مکه مکرمه کي ډېر مال او نقود سته ورسئ هغه ټوله يوسئ او ما واسلام او هجرت سره پرېږدئ کفارو دا خبره ومنل او دی يې خوشي کړی، نو څه وخت چي صهيب ﷺ

مدینې ته ورسېدی اولین ملاقات یې د حضرت ابو بکر ﷺ سره وکړی، حضرت ابو بکر ﷺ وده ته وویل ربح البیع یاصهیب یعني ګټوره بیع دي وکړه؟ صهیب ورته وویل وما ذاک یا ابابکر فاخبره ابوبکر ﷺ بما نزل في شانه ای هذه الآیة ففرح صهیب بذالک جداً.

**درویش وایي:** چي پر دې شان نزول شراء پر خپله معنا ده ولي چي صهیب خپل ځان له کفارو څخه د قریشو رانیوی یعني خلاص یې کړی په بذل د خپلو اموالو.

**پوه سه:** چي دغه واقعه حارث بن ابي اسامه په خپل مسند کي او ابن ابي حاتم د سعید بن المسیب ﷺ څخه په ډېره مختصره توګه روایت کړی دی او په ځای کي یې د ابو بکر ﷺ نبي ﷺ ذکر کړی دی یعني علیه الصلوة والسلام ربح البیع ورته وویل، او دا حدیث صحیح دی پر شرط د مسلم وان لم یخرجه.

**فائده:** صهیب ﷺ صحابي معروف دی او په اصل رومي نه و بلکه عرب و لکن په کوچنیوالي رومیانو غلا کړی و، نو ځکه نو د رومي په نامه مشهوره و، او روح المعاني وایي، تو له شیعه ګان او بعض د اهل سنتو هم وایي چي دا آیت په شان کي د علي ﷺ نازل سوی دی، یعني لکه په بخاري او نورو کتابو د احادیثو کي چي راغلي دي چي رسول کریم ﷺ چي د مکې مکرمې څخه هجرت کاوه، نو علي ﷺ یې راوغوښتی چي ته راسه زما پر بستر تنه شپه پربوزه ولي چي نن کفار مکه زما کور تر محاصره لاندي نسي زما د قتل لپاره، نو علي هم دغسي وکړه نو ګویا علي ﷺ خپل ځان خرڅ کړی لپاره د رضا الهي.

**درویش وایي:** چي پر دې شان نزول هم شراء مذکور في الآیة بمعنی البیع کما لایخفی.

**پوه سه:** چي آلوسي ﷺ په روح المعاني کي وایي چي کواشي په خپل تفسیر کي ددې آیت په شان نزول کي داسي ویلي دي چي دا آیت په شان کي د زبیر بن العوام ﷺ او د مقداد بن الاسود ﷺ نازل سوی دی چي څه وخت چي خبیب ﷺ حارث نامی کافر په بدر کي وژلی و، نو زامنو د حاث دا کوشش

کوی چې خبيب لاس ته ورسوي چې د پلار په عوض کې يې مړی کړي خو اخر الامر خبيب ﷺ ژوندی په لاس ورغلی چې قصه به يې زه عنقريب درته وکړم ان شاء الله تعالی، نو زامنو د حارث خبيب ژوندی په دار کړی په تنعيم کې او بيا يې په نېزه په ځيګر کې وواهه چې خبيب ﷺ اخر شهيد سو او څلوېښت ورځې او شپې په هغه دار ځړېدی او څلوېښتو کسانو به پيره پر کوله چې نبايده د مسلمانانو له خوا څوک رانه سي او دی يو نسي، نو عليه الصلوة والسلام يوه ورځ وويل "من ينزل خبيبا عن خشبته ای خشبة التي هو عليها فله الجنة" نو زبير بن العوام او مقداد بن الاسود وويل چې موږ يې راکښته کوو، او مدينې ته يې راوړو، نو دا آيت نازل سو ددغو دوو صحابه وو په باره کې.

**درويش وايي:** چې په دې تقدير هم شراء چې په آيت کې ذکر ده په معنا د بيع ده يعني دغو دوو صحابه کرامو خپل ځانونه خرڅ کړه په عوض کې يې ثمن د جنت تر لاسه کړی.

**درويش وايي:** چې تفصيل د قصې په روايت د بخاري د ابي هريره ﷺ څخه دادی چې آنحضرت ﷺ لس نفره عينا يعني د معلومات د راټولولو لپاره واستول او امير يې عاصم بن ثابت وټاکی، نو بني لحيانو ته د هذيل د قبيلې چا ددغو صحابه کرامو ﷺ راپور ورکړی، نو هغه سل کسان تقريبا غشي ويشتونکي پسې راووتل، نو چې عاصم ﷺ او ملګرو دده دوئ وليدل نو يوې غونډۍ يا کوچنې غره ته پورته سوه او د هذيل د قبيلې سل کسه شاوخوا پر هغه غره يا غونډۍ راوګرځېدل، او کافرانو صحابه کرامو ﷺ ته اعلان وکړی چې که تاسي په رضا ځانونه موږ ته په لاس راکړئ موږ ستاسو څخه يو هم نه وژنو.

**درويش وايي:** چې دا خو لفظ د بخاري دی، او مظهري ﷺ تر دغو توړو وروسته دا توري زيات کړي دي (وانا والله لانريد قتلکم بل نريد ان نصيب شيئا من اهل مكة) والله اعلم بحال زيادة المظهري ﷺ. نو عاصم وويل چې زه خو په امان کې د کافر ځان په لاس نه ورکوم يعني له غره څخه نه ورکښته کېږم، او په روايت د مظهري ﷺ داسې يې وويل "اللهم انی

الیوم احمی لک دینک فاحمی لحمي" خدایه زه ساتم نن ورځ ستا دین ته وساتې زما غوښې، او د بخاري په کتاب کې صرف دغه الفاظ د عاصم موجود دي "اللهم اخبر عنا رسولک" نو جنګ تر منځ د لسو صحابه کرامو او د سلو کسانو کافرانو شروع سو، نو کافرانو عاصم د اوو کسانو صحابه وو سره په شهادت ورسول، او آنحضرت ﷺ او مسلمانانو ته خبر مدینې ته وورسېدی، وبقی خبیب وزید وعبدالله ابن طارق ﷺ، نو هذیل چې عاصم یې قتل کړی اراده یې وکړه چې سر یې خندي پرېکړي، نو خدای ﷻ غالبوزي پیدا کړې چې څوک به عاصم ته ورنژدې کېدی غالبوزو به یې په سترګو غوږونو او نورو ځایونو باندې نېښونه ورچګ کړه، نو آخر کفار د عاصم د سر له پرېکېدو بېزاره سوه نو دې ساتني ته حمی الدبر وايي. بیا خدای ﷻ یوه وریځ پیاد کړه او باران شروع سو او شیله د اوبو ډکه راغله او عاصم یې یوړی ولې چې عاصم ﷺ پخپل ژوند کې داسې قسم کړی و، چې نه به مشرک ته لاس ورورم او نه به مشرک ماته لاس راوړي نو خدای ﷻ په دې قسم کې دی حانث کړی، یعني د کافر د لاس وروړلو څخه یې وژغوری

او هغه پاته درې کسان په عهد او امان د کافرانو ورته راکښته سوه نو کافرانو ددوئ د کمانو تناوته خلاص کړه او ددوئ لاسونه یې په وتړل نو عبدالله وکافرانو ته وویل چې دا اول عذر چې تاسو له موږ سره کوی لاسونه مو ولې راتړلي دي زه نه درسره ځم او زه په دا نورو اوو پسې اقتداء کوم فجرروه وعالجوه نو کافرانو دی کش کړی او ډېر کوشش یې پر وکړی خو عبدالله ځان پر مځکه اچولی و، اخیر کافرو هغه قتل کړی

**درویش وایي**: چې دا خو الفاظ د بخاري وه، او مظهري ﷫ بل ډول حکایت د عبدالله له حاله کړی دی والله اعلم، او کفارو د هذیل، خبیب او زید بن دثنه ﷺ له ځانه سره بوتله مکې مکرمې ته لپاره د خرڅولو، ابن اسحاق مؤرخ د مغازي او ابن سعد وايي چې زید صفوان بن امیه (چې وروسته بیا مسلمان سوی دی) راتیوی چې د امیه بن خلف یعني د پلار په

خای کي یې مړ کړی، نو صفوان خپل مریی چي نسطاس یې نوم و (او دا هم وروسته مسلمان سوی دی) چي تنعیم ته یې بوزه او هورې یې قتل کړه. نو قریشو چي دا واورېده چي زید ۯن په تنعیم کي قتل کېږي، نو ډېر نفر هورې جمع سوه چي په دې جمله کي ابو سفیان هم و (چي دی هم بیا وروسته مسلمان سوی دی) نو ابو سفیان وزید ته وویل چي ستا دي قسم په خدای وي چي ستا په زړه کي دا خوښه ده چي ستا په خای کي محمد ﷺ وایي او غاړي یې پرې سوي وایي او ته پخپل کور کي وایې. نو زید ﷺ ورته وویل چي زما دا نه ده خوښه چي محمد ﷺ پخپل ځای کي اوس دی یو خوز په جګ سي چي دی په خوږ سي او زه کور ناست یم.

**درویش وایي:** چي دا دی محبت د اصحابو ﷺ د آنحضرت ﷺ سره اللهم ارزقنا حبک وحب حبیبک وحب من یحبک آمین، ابو سفیان وویل چي ما نه دی لیدلی هیڅ څوک چي دونده محبت دي له چا سره لري لکه محبت د اصحابو د محمد ﷺ له ده سره بیا نسطاس وروړاندې سو او زید یې قتل کړی.

**پوښتنه:** زید یې ولي وتنعیم ته د وژلو لپاره واستاوه؟

**ځواب:** قریشو د مکې قتل په حرم کي روا نه باله او تنعیم له حرمه څخه خارج دی، نو څکه څوک چي عمره کوي و تنعیم ته ځي او له هغه ځایه احرام د عمرې تړي او یا د جعراني څخه چي هغه هم له حرمه خارج دی، او خبیب ﷺ زامنو د حارث رانیوی چي په عوض کي یې د خپل پلار حارث چي خبیب ﷺ په بدر کي وژلی و په قصاص کړی، او خبیب ﷺ د حارث د زامنو په کور کي زولنې په پښو کي بندي و، نو دوی خپل قریبان سره راټول کړه چي د خبیب د قتل تماشه وکړي، نو د صبا ورځي د قتل پروګرام یې بسته کړی، خبیب چي په دې خبر سو نو د بعضو لوڼو څخه د حارث یې د سر د خریلو چاړه وغوښتل چي زېر ناف په وخریي، هغې ښځي چاړه ورکړه دا ښځه وایي چي زما فکر نه و چي زما یو کوچنی زوی خبیب ته ورغلی دی او خبیب هغه کوچنی پر ورانه کښېنولی و او چاړه یې په لاس کي وه، نو

ښځه وايي چې ما لوبه ښغاره وکړه په گمان ددې لکه چې خبيب زما زوئ قتل کوي، نو خبيب ﷺ وهغې ښځي ته وويل ته مه ببربره ستا زوئ نه وژنم ولې چې د اسلام په دين کي غدر نسته.

**فائده**: دا ښځه وايي چې قسم په خداى دى چې ما تر خبيب ښه بندي نه دى ليدلى، دا وايي چې قسم په خداى دى چې ما يوه ورځ دى وليدى چې د انگورو وانبکى يې تازه په لاس کي و، او انگور يې خوړله او دى په اوسپنو کي هم تړلى و، او په ښار کي د مکې هيڅ ميوه هم نه وه. نو دا وايي دا يو رزق د خداى له خوا ده ته مقرر و.

**درويش وايي**: چې کفار مکه دومره سنگدله وه چې سره ددغو واقعو يې ايمان نه راوړى او د خبيب ﷺ وقتل ته تيار سوه. راوي وايي چې زامنو د حارث خبيب ﷺ د حرم له مځکي څخه د حل وځکي ته وه ايستى لپاره د قتل نو دوئ چې دى ودار ته پورته کاوه نو خبيب ورته وويل چې ما پرېږدئ چې زه دوه رکعته نفل وکړم. نو دوئ هم اجازه ورکړه (نو د خبيب ﷺ څخه دا دوه رکعته لمونځ تر دې اوسه پوري په ميراث پاته دى چې څوک چې صبراً يعني ياحق ياناحق وژل کېږي دغه دوه رکعته نفل کوي) نو خبيب ﷺ بنو الحارث ته وويل چې که تاسي دا گمان نه کولى چې خبيب له مرگه ببربري ما به دا دوه رکعته لمونځ ډېر اورد کړى وايي او بيا خبيب دا ښرا د حارث وزامنو ته وکړه اللهم احصهم عدداً واقتلهم بدداً ولاتبق منه احداً. او بيا خبيب دا شعرونه وويل

| | |
|---|---|
| ولست ابالي حين اقتل مسلما | على شق كان لله مصرعى |
| وذالک في ذات الاله وان يشاء | يبارک في اوصال شلوممزع |

نو خبيب يې تخت ته د دار پورته کړى او ابو سروعة د حارث زوئ ورغلى په نېزه يې ووهي، نو خبيب ﷺ وويل اللهم بلغ سلامي رسولک. او محمد بن عمر بن سلمه د اسامة بن زيد څخه روايت کړى دى چې موږ د عليه السلام څخه واورېده چې وه يې ويل عليه السلام ورحمة الله وبركاته، او

علیه السلام وویل چي هذا جبرئیل یقروني من خبیب ﷺ السلام. نو چي آنحضرت ﷺ خبر د قتل او دار د خبیب ﷺ ورسېدی نو یې وویل چي څوک دی چي خبیب ﷺ له تختې څخه د دار راکښته کړي وله الجنة، فقال الزبیر ﷺ انا وصاحبي المقداد ﷺ بن الاسود. نو دوئ دواړه نوموړي صحابه د مدینې څخه رهي سوه، نو د شپې به یې مزل کاوه د ورځ به یو ځای پټ ود حتی چي تنعیم ته یې ځان ورساوه د شپې، او د خبیب ﷺ پر دار څلوېښتو کسانو پیره کوله چي د خبیب ﷺ مړی څوک مسلمان یونه سي، نو دا دوه کسان صحابه چي وروه رسېدل پیره داران بیده وه، نو خبیب یې راکښته کړی، او څلوېښت ورځي دده د قتل تېرې سوي وې او بدن مبارک یې لوند و، هیڅ تغیر یې نه و کړی، او خبیب ﷺ پر خپل تپ د نېزې لاس ایښی و، او لړ لړ وینه څڅېدې بهېدل اللون لون الدم والریح ریح المسک، نو زبیر ﷺ خبیب ﷺ پر آس د شا له خوا وتړی او دوئ را رهي سوله د مدینې پر خوا. یو ګړی وروسته کفار راوېښ سوه چي وه یې کتل خبیب نسته. نو قریش یې خبر کړه، اویا کسان پر آسانو پسي سپاره سوه، چي دا سپاره ورنږدې سوه، زبیر ﷺ خبیب له آسه وغورځاوه او مځکي دستي خبیب ونس ته تېر کړی خبیب ورک سو، نو ځکه په مسلمانانو کي خبیب ﷺ په بلیع الارض سره ملقب سو، او هغه دوه کسان سلامت ومدینې منورې ته ورسېدل او ماجرا قصه یې وعلیه الصلوة والسلام ته وکړه، او جبرائیل ﷺ د علیه الصلوة والسلام سره موجود و، جبرائیل ﷺ وویل یامحمد ان الملائکة لتباهي بهذین من اصحابک یعني الزبیر والمقداد بن الاسود فنزل فیها ومن الناس من یشتری الآیة وقد مر من قیل ناقلا من تفسیر الآلوسي.

**درویش وایي:** چي ددې قصې و بعضو معجزاتو ته د آنحضرت ﷺ او بعضو کراماتو ته د خبیب ﷺ دي مسلمانان غوږ ونسي او د کمزورد مسلمانانو د زړونو وسوسې به هم دفع سي ان شاء الله.

(۱) خبر د شهادت د عاصم او ملګرو په دغه ورځ صحابه ګرامو ﷺ رسول الله ﷺ ته په مدینه منوره کي ورساوه، وهذا معجزة الرسول ﷺ.

(۲) د هذیل قبیلې چي غوښته چي د عاصم ﷺ سر خندي پرې کړي خدای ﷻ دوی د غالبزو په لښکر خندي وساتی، دا د عاصم کرامت و او د علیه الصلوة والسلام معجزه وه لانه قد ثبت في کتب العقائد ان کرامة الولي معجزة للنبي الذي هذا الولي على دینه.

(۳) خدای ﷻ باران وه اورا وه چي شیله د اوبو ډکه راغله د عاصم ﷺ جسد مبارک یې یوړی الی حیث شاء الله تعالی او داهم د عاصم کرامت او د علیه السلام معجزه وه کمامر آنفاً.

**درویش وایي:** چي سبب د جسد مبارک د عاصم د اوبو وړلو هم موږ ذکر کړی فتذکر.

(۴) د حارث لور چي وایي ما یوه ورځ د خبیب په لاس کي د انګورو واښکی ولیدی چي ده انګور خوړله الی اخیر ماذکر من قبل، او دا هم کرامت د خبیب ﷺ و ومعجزة للنبي ﷺ کمامر آنفاً.

(۵) خبیب ﷺ چي دا وویل چي خدای ﷻ دي زما سلام وعلیه السلام ته ورسوي او هغه په واسطه د جبرائیل و علیه الصلوة والسلام ته ورسېدی وهذا ایضا کرامة الخبیب ﷺ ومعجزة للنبي ﷺ.

(۶) علیه الصلوة والسلام چي د خبیب ﷺ وسلام ته جواب ورکړی کمامر بیانه دا معجزه د علیه السلام ده.

(۷) زبیر بن العوام او مقداد بن الاسود رض چي خبیب ﷺ له داره راکښته کړی الی آخیر مامر سابقاً ففیه کرامة الخبیب ومعجزات لرسوله کما لایخفی.

(۸) زبیر چي د خبیب مړی له آسه وغورځاوه او مځکي خپل نس له یوړی کمامر آنفاً فهذا ایضا کرامة الخبیب ﷺ ومعجزة للنبي ﷺ.

**درویش وایي:** چي بعضي ضعیفه مسلمانانو ته شاید په زړه کي شیطان دا وسوسه ور واچوي چي خبیب ﷺ ته چي دی موثق بالحدید هم وو انګور

خو بـه يوې ملكـي راوړه، نـو دې ملكـي دا نـه سوه كـولای چـې دی لـه بلـدې
خلاص كړي او له مكې څخه يې وباسي د مدينې پر خوا؟
**ځواب**: كولای يې سوای لكن د خدای له خوا امر نه و ورته سوی.
**پوښتنه**: د رب جلا وعلا په دې كي څه حكمت و؟
**ځواب**: حكمت آلهي دا و چي د خبيب ﷺ ايمان او تصديق نور هم ټينګ
سي او دا بند او آئينده مرګ او شهادت ورته سپک سي ولي د مرګ سختۍ
خو يو ګړی وي او د شهادت رتبه عليا خو ابدي ده.
**پوښتنه**: عليـه الصلوة والسـلام زبيـر او مقـداد رض تـه اجـازه ورکـړه چـي د
خبيب مړی دي له داره كښته كړي او را يې وړي، دا كـار خـو د جبرائيل له
طاقته هم پوره و؟
**ځواب**: هو! لكن آمر الهي نه و په دې كي څه حكمت د خدای ﷻ و، او دا
چي په دې كار سره زبير او مقداد رض ته درجه عليا په جنت كي وركړي او
كرامة د خبيب ﷺ چي بليع الارض سو په خپلو سترګو ووينې تاچي نور به
يې ايمان قوي سي، قال الشاعر

بقدر الكبد تكتسب المعاني ومن طلب العلى سهر الليالي

يعني لكه زبير او مقداد چي ټوله شپه بيداره وه مزل يې كـاوه كمامر، او
يا د شپې د تهجد د لمانځه لپاره سرې خوب پرېږدي او د خدای په عبادت
كوي وي وامثال ذالک.

تروم العز ثم تنام ليلا يغوص البحر من طلب الآلي

**پوښتنه**: څه حكمت و چي د عاصم ﷺ د سر د پرېكېدو لپاره چي كـافران ورغله
خدای ﷻ هغه كافران د غالبزو په لښكر ده د سر له پرېكېدو څخه وتښتول، او
بيا جسد مبارک د عاصم شېلي د باران په اوبو سره الی ماشاء الله يو وړی؟
**ځواب**: يو حكمت خو دا و چي خدای پاک خپل قدرت او د عاصم كرامت
وكافرانو ته وښود، او بل حكمت دا و كمامر چي عاصم په خپل ژوند كي
دا قسم كړی و چي زه به مشرک نه مسه كوم او نه به مشرک زما جسد مسه

کړي، نو خدای ﷻ ده قسم پر ځای کړی.

**درویش وایي:** چي په قتل کي د عاصم او د زید او د خبیب ؓ چي بیان د هغو تېر سو ډېري معجزې او کرامتونه او بیان د محبت د اصحابو ؓ د آنحضرت ﷺ مندرج دي.

***د تعجب خبره:*** امام مظهري ؒ ددې آیت په شان نزول کي دوه متناقض بیان کړي دي، اول ده ویلي دي چي دا آیت په شان کي د سریة الرجیع نازل سوی دی، او د ابن اسحاق او ابن سعد یوه قصه یې رانقل کړې ده چي علیه السلام ته یو څو نفره د بنو لحیان له قبیلې څخه راغله او منافقانه ایمان یې راوړی، څو ورځي وروسته یې د علیه الصلوة والسلام څخه وغوښتل چي ته یو څوک راسره کړه چي زموږ قوم ته تبلیغ د اسلام وکړي، نو علیه الصلوة والسلام حضرت خبیب بن عدي الانصاري او مرثد الغنوي او خالد بن بکیر او عبدالله بن طارق او زید بن الدثنة او عاصم بن ثابت ؓ ورسره کړه او عاصم بن ثابت ؓ یې امیر وګرځاوه، او متصل ددغه سره مظهري حدیث د بخاري راوړی دی کمامر تفصیله، د تعجب ځای دادی چي په روایت کي د ابن اسحاق کمامر آنفاً شپږ کسه ورسره کړه هغو منافقانو چي دا کسان صحابه کرام ؓ د ځانه سره بوتله نو غدر یې ورسره وکړی او ټوله یې شهیدان کړه یا یې پر کفارو د مکې خرڅ کړه، او د بخاري په حدیث کي خو لس کسه ذکر سوي دي چي په هغو کي عاصم او خبیب او زید بن الدثنة ؓ هم ذکر سوي دي، او د بخاري د حدیث متصل بیان او د قتل د عاصم او د زید او د خبیب ؓ متصل بیان هم تاسو واورېدی. یو تناقض خو دادی چي په روایت کي د ابن اسحاق شپږ نفره ذکر سوي دي او د بخاري په روایت کي لس نفره ذکر سوي دي، او بل تناقض دادی چي په روایت کي د ابن اسحاق دا شپږ کسه په غدر سره بېول سوي وه، یعني منافقانو د علیه السلام سره غدر او چم وکړی، او د بخاري په رویت کي خو لسه کسه علیه الصلوة والسلام پخپل اختیار د جاسوسی لپاره استولي

وه، او بل تناقض دادی چي د سرية الرجيع موضوع بېله واقعه ده او د لسو کسانو استول د جاسوسۍ لپاره بېله او جلا واقعه ده، نو څرنګه مظهري رحمه الله دواړي واقعې سره متصل کړي دي، او دا يې هم نه دي ويلي دي چي ابن اسحاق داسي وايي او بخاري داسي وايي يعني ترديد يې نه دی کړی، او بل تناقض دادی چي عاصم او زيد او خبيب رضي الله عنهم خو داسي نه سي کېدای چي په دواړو واقعو کي دي شهيدان سوي وي، نو درويش چي والله اعلم بمراد المظهري رحمه الله في ضم الروايتين المذكورتين بدون الترديد بينهما.

## يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ادْخُلُوا فِي السِّلْمِ كَافَّةً

ددې آيت شان نزول مفسرينو رح داسي بيان کړی دی، چي يو څو نفره مسلمانان چي له يهودو څخه وه او په اسلام مشرفه سوي وه لکه عبدالله بن سلام واضرابه وعليه الصلوة والسلام ته راغله او داسي يې وويل چي موږ په يهوديت کي تعظيم د يوم السبت کاوه، نو موږ ته اجازه راکړئ چي په اسلام کي هم موږ ددې ورځي تعظيم کوو، او دا يې هم ورته وويل چي تورات خو هم کتاب الله دی، نو موږ ته اجازه راکړئ چي د تهجد په لمانځه کي موږ تورات وايو، او بل يې دا ورته وويل چي موږ د يهوديت په وخت کي د اوښ غوښي او شيدې نه خوړلې، نو پسله اسلام که موږ هغه نه خورو نو څه حرج دی، اخرجه ابن جرير عن عكرمة رضي الله عنه فنزلت هذه الآية.

**پوه سه:** چي "السلم" په کسره سره د سين او په فتحه سره انقياد او اطاعت ته وايي، نو ځکه دا لفظ په صلح او اسلام کي مستعملېږي.

**فائده:** كافة " يا حال دی له ضميره د "ادخلوا" يعني په اسلام کي د بل دين احکام مه ګډوئ لان تلك الاحكام منسوخة نسخها القران والاسلام، نو معنی داده چي حال کون ستاسي چي تول به په اسلام کي ياست او ستاسي سره به بل شی نه وي، او يا "كافة " حال ده د "سلم" څخه يعني حال کون د اسلام چي تول به وي يعني د اسلام له دين سره به د بل دين احکام نه وي والمآل واحد.

**سوال:** سلم" خو مذكر دى او "كافة" خو مؤنث دى لوجود تاء التانيث فيه بيضاوي ددې سوال په ځواب کي داسي ويلي دي لانها تؤنث كالحرب يعني لفظ د "سلم" مؤنث سماعي دى لکه مقابل د هغه چي حرب دى او بيضاوي بيا يو شعر د سلم او د حرب پر تانيث شايد هم راوړى دى، وتبع البيضاوي المظهري كما هو دينه، آلوسي او برسوي دا ځواب د بيضاوي رد کړى دى او دوئ وايي چي تاء د "كافة" وكذا قاطبة وعامة د تانيث لپاره نه ده بلکه لپاره د نقل د كلمه ده د صفيت څخه ومعنى ته د كل او جميعا.

**درويش وايي:** چي دا شان نزول رائيه د اكثرو مفسرانو ده، او بعض مفسرين رح وايي چي دا آيت په باره کي د منافقينو نازل سوى دى. نو معنا د آيت داده چي اى هغه کسانو چي په دين کي د اسلام ظاهرا او قولا داخل سوي ياست داخل سئ په دين کي د اسلام په ټوله معنا يعني ظاهرا او باطنا يعني نفاق پرېږدى، او بعض مفسرانو نور احتمالونه هم راوړي دي چي له مقام سره مناسبت نه لري.

وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ۚ إِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿٢٠٨﴾

او تاسي متابعت مه کوئ د ګامونو د شيطان ولي چي شيطان ستاسي دښمن او بين العداوت دى.

**يوه سه:** چي مطابعت د ګامونو د شيطان استعارةً مستعمل سوې ده او مراد له خطوات الشيطان څخه وسوسې دده دي مثلا اهل کتابو ته يې دا وسوسه په زړونو کي وراچوله چي تاسي خپل مال او عيال په ظاهري او قولي اسلام سره وساتئ ستاسي دين خو حق دى، وامثال ذالک من وساسه وخطراته حفظنا الله منها.

**يوه سه:** چي د جابر بن عبدالله څخه روايت دى چي يوه ورځ عمر بن الخطاب ﷺ و رسول الله ﷺ ته راغلى او ورته يې وويل چي موږ له يهوديانو څخه بعضي قصې اورو چي موږ ته خوند راکوي آيا ستاسو خوښه ده چي موږ

بعضي هغه خبري د يهوديانو نوشته كوو، نو رسول الله ﷺ ورته وويل "امتهو كون انتم كما تهو كتب اليهود والنصارى" آيا تاسي حيران په امورو كي ددين خپل ياست لكه چي يهود او نصارى په كارنو كي د دين خپل حيران وه يعني چي د يهودانو د دين وخبرو ته محتاجه يې ځان بلى لقد جئتكم بها بيضاء نقية، ماتاسي ته راتگ كړى دى په سپين پاک ملة سره لو كان موسى حيا لماء وسعه الا اتباعي، او كه موسى ژوندى وايي ده ته به طاقت او اجازت نه وايي بېله متابعته زما ولي چي دده دين به منسوخ وايي. رواه احمد

**درويش وايي**: چي دا حديث د هغه شان نزول تائيد كوي چي آيت مذكوره په شان كي د عبدالله بن سلام ؓ او دده د امثالو نازل سوى دى كمامر تفصيله

فَإِنْ زَلَلْتُمْ مِّنْ بَعْدِ مَا جَآءَتْكُمُ الْبَيِّنٰتُ فَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿٢٠٩﴾

او كه ستاسي پښې وښوېدلې يعني پر دين اسلام سم دم نه واست وروسته تر دې چي تاسي ته دلائل ښكاره راغله پر حقيقت د دين اسلام، نو په دې پوه سئ چي خداى ﷻ غالبه دى او له مخالفه د دين اسلام انتقام اخستلاى سي، او خداى ﷻ حكيم دى يعني عادل دى ناحقه انتقام له چا څخه نه اخلي، او بې فائدې كار هم نه كوي.

**پوه سه**: چي په دې آيت كي تهديد راجع دى و اهل ذلل ته له دخوله څخه په اسلام كي كافة، لكه يو پلار چي زوئ ته ووايي چي كه ته مخالفت وكړې زما له امره نو ته خو ماپېژني چي زه څومره صاحب استغنى يم او عذاب يم پر مخالف باندي دا كلام او خبره د پلار وزوئ ته ابلغه ده تر دې چي وزئ ته وايي چي كه تا زما مخالفت وكړى نو وهم دي مثلا، ولي هغه د مخه خبره د پلار د هر سخت انتقام احتمال لري كما لايخفى.

# هَلۡ يَنظُرُونَ

کلمه د هل استفهام انکاري دی یعنې انتظار نه لري اهل مکه چې ایمان نه راوړي مګر ودوئ ته.

# إِلَّآ أَن يَأۡتِيَهُمُ ٱللَّهُ

چې خدای ﷻ دوئ ته راسي یعني عذابه لان حقیقة الاتیان محال علی الله.

# فِي ظُلَلٖ مِّنَ ٱلۡغَمَامِ

**بوه سه**: چې ظلال جمع د ظلة ده وهي کل ما اظلک او غمام سپینې ورېځې ته وایي یعني چې په ظاهره نعمت معلومېږي او په معنا کې عذاب وي کما قال بعض الکفار حین رء ؤ العذاب في صورة الغمام، هذا عارض ممطرنا وما قال مجاهد رحمه الله وهو غیر السحاب ولم یکن الا لبني اسرائیل في التیه انتهی.

**درویش وایي**: چې دا تفسیر دلته مناسب نه دی ولې چې د تیه غمام خو د بني اسرائیلو لپاره په تیه کې نعمت او راحت و، او په دې آیت کې خو مراد ظلة العذاب ده.

# وَٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ وَقُضِيَ ٱلۡأَمۡرُۚ

او راسي ودوئ ته ملائکې د عذاب، او فیصله وسي د عذاب د کافرانو

# وَإِلَى ٱللَّهِ تُرۡجَعُ ٱلۡأُمُورُ ۝٢١٠

او خدای ﷻ ته راجع کېږي فیصله د کارو من الخیر والشر والثواب والعقاب وغیر ذالک.

**بوه سه**: چې بعض قراء دا لفظ د "ترجع" په زور د تاء وایي او مشتق یې له رجوع څخه بولي چې لازمي دی لکه دمخه چې مو یې ترجمه وکړه، او بعض قاریان یې په ضمه د تاء وایي او مشتق له رجع څخه یې بولي، نو یې معنا داده چې خدای ﷻ ته راجع کړه کېږي کارونه.

**فائده مهمه:** پوه سه چي علماء د اهل السنة والجماعة که یې مقدمین دي او که یې متاخرین دي پر دې عقیده دي چي خدای ﷻ له صفاتو څخه؛ اجسامو او له اعضاؤ څخه د جسم لکه ید، رجل، مخ وغیرها منزه دی، او هغه شیان چي پر امکان او حدوث دلالت کوي هم پاک دی، نو دوی په امثالو کي ددې آیت چي "یاتیهم الله" پکښې راغلي دی یعني راتګ چي د لوازمو څخه د جسمیت او د حدوث دی دوی لاري لري، یوه داده چي موږ به پر امثالو ددغه آیت ایمان لرو او تفویض د علم به یې وخدای ﷻ ته کوو، یعني نقول نؤمن بما اراد الله تعالی بها ونفوض علمها الی الله ﷻ. او د مزید بحث څخه به ځان ساتو، وهذا مذهب السلف ومنهم ابو حنیفه رحمه الله حیث قال في المتشابهات لایعلم تاویله الا الله بالوقف اللازم. وقال الکلبي رحمه الله هذا من المکتوم الذي لایفسر، وکان مکحول والزهري والاوزاعي ومالک وابن المبارک وسفیان ثوري وسفیان بن عیینه واحمد واسحاق رحمهم الله تعالی یقولون فیه وفي امثاله امروها کما جائت بلاکیف والسکوت عنه. ولیس لاحد ان یفسروها الا الله ورسوله. او بعض ائمة رح تاویل د متشابهاتو بما یناسب المقام روا بولي او دوی وقف پر الی الله نه کوي، بلکه والراسخون في العلم پر عطف کوي والی هذا ذهب الشافعي رحمه الله وغیره، والمسئلة مبسوطة في الکتب المفصلة.

## سَلْ بَنِىٓ إِسْرَآءِيلَ كَمْ ءَاتَيْنَٰهُم مِّنْ ءَايَةٍۭ بَيِّنَةٍ

او ته اې محمده پوښتنه وکړه له بني اسرائیلو څخه د مدینې.

**پوه سه:** چي مقصود ددې سوال څخه سر زنش د بني اسرائیلو دی یعني چي څومره آیات موږ درکړي وه تاسي ته، یعني ستاسي پلرو او نیکه ګانو ته.

**پوه سه:** چي "کم" خبریه دی یعني ډېر مو ورکړي وه، نو پر دې تقدیر لفظ د "کم" منصوب محلا مفعول ثاني دی د "اتینا" له معجزات ظاهره وو څخه

**پوه سه:** چي "من آیة بینة" ممیز د "کم" دی یعني دا آیات ستاسي د انبیاء

عليهم السلام كاليد البيضاء والعصاء وغيرهما من المعجزات التسع المذكورة فيما سبق، او يا مراد له آياتو څخه هغه آياتونه دي چي د دوئ د كتابو وه لكه تورات چي دلالت واضحه يې كاوه پر صدق د محمد ﷺ في دعوى النبوة.

**پوه سه**: چي بعض مفسرانو داسي احتمالات په بيان كي د اعراب ددې آيت راوړي دي چي تر قرآن يې محذوفات ډېر دي ولهذا اعرضنا عنها بالمرة.

**فائده**: كه كلمه د "كم" استفهاميه وي او استفهام لپاره د تقريع وي، نو دا كلمه يعني "كم" مانع دى له طلب څخه د "سل" د مفعول ثاني ولي چي ماقبل د استفهام عمل نه سي كولاى ولي چي صدارت د استفهام فوتېږي كما تقرر في النحو

## وَمَنْ يُّبَدِّلْ نِعْمَةَ اللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُ فَاِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿۲۱۱﴾

او څوك چي بدل كړي نعمت د خداى چي آيات او معجزات دي. ولي د آيات سبب د هدايت دي، او هدايت نعمت د خداى پاك دى او يا بدل كي كتاب الله يعني عمل نه په كوي، ويحتمل چي مراد له "نعمة الله" څخه دي هغه آيات وي د تورات چي پر صدق د عليه السلام يې دلالت كوى في دعوى النبوة يعني بالكفريه كما بدلوها يهود المدينة. وروسته تر دې چي دا آيات په هره معنا چي وي دوئ ته راغله او ورسېده او دوئ قدرت پر فهم د هغو درلودى يعني تبديل يې داسي وخت وكړى دوئ په پوه هم سوله او عذر د جهل يې هم مانع نه و، نو په تحقيق خداى ﷻ سخت عذاب وركونكى دى يعني سخت عذاب به دوئ ته وركړي في الدنيا والآخرة. ولي سخت ترينه گناه يې وكړه.

**پوه سه**: چي اضافت د شديد وعقاب ته اضافت دى د صفت و فاعل ته اى شديد عقابه.

# زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا

او ښائسته کړه سوی دی و هغه کسانو ته چي کفر کوي ژوند د دنیا یعني منازل عالیه والمطعومات الشهیة والملبوسات الفاخرة وغیرها من لذائذ الدنیا التي کانوا مصروفین فیها، او دوئ په سبب د هغو شیانو د ایمان او د طاعت وخوا ته نه کتل بلکه هغه یې پرې ایښي وه، او قوت شهوانیه ددوئ په زړونو کي محبت د هغو نعمو دنیا وو پیدا کړی وو.

**پوه سه**: چي مزین په وینا د زجاج رحمه الله شیطان دی چي دوئ ته په زړونو کي دا وسوسه ور اچولې وه چي بعث بعد الموت نسته او لذائذ هم دغه ددنیا لذائذ دي، نو دوئ یې حریص گرځولي وه پر دغو لذائذ دنیاویه وو معرضین عن الایمان والطاعة. او بعض مفسرین رح وایي چي مزین یې خدای جل جلاله دی ولي چي خالق د لذائذو دنیاویه خدای جل جلاله دی وبس، او خالق د قوی شهویه وو، په انسانانو کي که مسلمانان دي او که کافران کي هم خدای دی، ددې تفسیر وجه هم داده که لذائذ خدای جل جلاله نه وایي پیدا کړې او یا یې قوی شهویه په دوئ کي نه وایي پیدا کړې، نو ددوئ د تکلیف او ابتلاء به څه معنا وایي ولي چي غیر لذیذ شی خو منفور بالطبع د انسان دی، نو د غیر لذیذتیا څخه د نهي به څه ابتلاء وایي مثل الزناء واللواطة وغیرهما که فرضا دا شیان منفور بالطبع وایي، او چي قوی شهویه یې خدای جل جلاله په انسانانو کي نه وایي خلق کړي مثلا که په سړي کي شهوت د جماعو نه وي لکه عنین او د هغه له زنا څخه منع هیڅ معنا نه لري.

اما چونکه و زناء ته په سبب د قوة شهواني سړی راغب وي او زناء محبوبه هم ده لکه جماع د مابنې سره، او روژه مثلا چونکه ثقیله طبعا ده ولي چي د لذائذ څخه د قوة شهویة پرهېز پکښې سته کالاکل والشرب والجماع، نو اوس معنا د تکلیف الهي او د ابتلاء پیدا کېږي. یعني څوک دي چي د لذت د زنا تېر سي او نه یې وکړي په سبب د نهي د خدای جل جلاله له

خوا خخه، او څوک دی چي پر سختی. د روژې صبر وکړي سره د دې چي روژه مانع د لذائذو ده په سبب د امر الهي په روژه سره وعلی هذا فقس المعاصي الآخر المحبوبة طبعا والطاعات المنفورة طبعا.

**نتیجه**: مسلمان کامل هغه سړی دی چي خپل خواهشات طبعیه یې تابع د شریعت مطهره ګرځولي وي وفقنا الله وایاکم لهذا.

## وَيَسْخَرُونَ مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا

او سره د کفر دوی پسخند وهي په هغو کسانو چي دوی ایمان راوړی وي یعني فقراء المؤمنین عبدالله بن عباس ﷺ وایي مراد فقراء د مسلمانانو دي په مکه کي لکه عبدالله بن مسعود او عمار بن یاسر او صیهب او بلال او خبیب واضرابهم ﷺ، او دوی به ویله چي دغه کسان محمد ﷺ ختایستلي دي په جنت موهوم سره او د نعمتو څخه د دنیا چي په کسب او تجارت سره پیدا کېږي په فقر او مسکنت سره یې راضي کړي دي، او دغه مسلمانان چي به یو ځای تېرېدل کفارو د مکې به د پسخند په توګ ویله دادي جنتیان راغله، او مقاتل ﷺ وایي چي دا آیت په باره کي د منافقینو د مدینې یعني عبدالله بن ابي او دده نور ملګري نازل سوی دی چي دوی په ښوو نعمتو کي وه او په ضعیفانو د مسلمانانو به یې پسخند واهه، او دوی به خود په خود سره ویله چي وګورئ محمد وایي چي په دغو ضعیفانو سره به زه غالبه کېږم پر تولو یهودیانو وغیرهم باندي، وقیل غیر ذالک في شان النزول.

## وَالَّذِينَ اتَّقَوْا فَوْقَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۗ وَاللَّهُ يَرْزُقُ مَنْ يَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٢١٢﴾

او هغه کسان چي بېره د خدای ﷻ په زړونو کي لري او عبادت او فقر یې پر عصیان او غنی مختاره کړی وي، لوړ به وي تر مشرکانو او تر منافقانو

په ورځ د قیامت، ولي چي دغه مؤمنان په په اعلی علیین کي وي او دغه مستهزئین کافران به په اسفل سافلین کي وي نو فوقیت په معنا حقیقي دی یعني فوقیت مکاني، او یا به دغه مؤمنانو په لوړه منزله کي د کرامت وي عندالله او کافران به په کښته مرتبه کي د ذلت او حقارت وي، نو پر دې تقدیر فوقیت په معنا مجازي دی یعني رتبې، او خدای ﷻ رزق ورکوي وچاته چي اراده یې وسي یعني په دنیا او اخرت کي بېحسابه ډېر. ولي خدای ﷻ له فقره څخه نه بېربږي په انفاق سره لانه تعالی لانهایة لمقدوراته فهو تعالی یوسع علی من یشاء في الدنیا استدراجا لکه مذکور مستهزئین او قارون وامثالهم او پر بعض انسانانو توسع د رزق جوړوي کرامةً لکه اغنیاء متقین د مؤمنانو او یا لکه سلیمان ؑ.

**پوښتنه:** مراد له "الذین" څخه خو "الذین امنوا" مراد دي یعني فقراء المؤمنین نو څه حکمت الهي دی چي دوئ یې په جلا موصول او صله سره راوړه او که یې په ضمیر راوړي یعني وهم آه کافي به نه وایي؟

**ځواب:** کافي خو به وایي لکن په دې تعبیر کي خدای ﷻ اعلان په تقوی د دوئ وکړی چي یوه مرتبه علیا ده وروسته تر ایمان، او بل ځواب دادی په تعبیر مذکور کي تنبیه پر دې ده چي دغو فقراوُ له دنیا څخه قصدا او اختیارا ځانونه گوښه کړي دي ددې لپاره چي نه باید چي ددوئ وقرب الی الله ضرر نه سي حافظ شیرازي رحمه الله وایي

ازین رباط دو در چون ضرورت است رحیل
رواق وطاق معیشت چه سر بلند وچه پست

به بال وپر مرو از ره که تیر پر تابي
هوا گرفت زماني ولي بخاف نشست

بهست ونیست مرنجان ضمیر وخوش دل باش
که نیستي است سر انجام هر کمالي که هست

**حکایت:** روی عن عیسی ﷺ سافر ومعه یهودي او د عیسی ﷺ سره درې ټیکی ډوډی وې نو یهود ته یې ورکړې چې دا خوندي کړه چې بیا وروسته به یې خورو، یو ګړی وروسته یهودي په پټه د عیسی یوه ټیکی وخوړله، نو وخت چې د ډوډی خوړلو سو نو عیسی ﷺ یهودي ته وویل چې هغه درې ټیکی راوړه چې وه یې خورو یهودي دوې ټیکی راوړې عیسی ﷺ ورته وویل چې هغه دریمه ټیکی دي څه کړې، یهودي قسم ورته واخستی چې تر دغو دوو دي باله نه دي راکړي. نو یهودي په دوران کي د تګ د عیسی ﷺ ډېري عجائبې معجزې ولیدلي او عیسی ﷺ ده ته وویل چې د دریمي ټیکی صرف اقرار وکړه هغه اقرار نه کاوه، نو معجزهً ناګاه په لاره کي درې د سرو زرو خښتي پیدا سوې. یهودي ورته وویل چې دا خښتي وویشه، عیسی ﷺ ورته وویل چې دا یوه خو یې زما او دا بله یې ستا، او دریمه د هغه چا د چې ټیکی یې خوړلې وي یهودي ورته وویل چې دریمه ټیکی خو ما خوړلې ده، نو عیسی ﷺ ورته وویل چې لېري سه له ما څخه فقد شاهدت قدرة الله ای في معجزاتي او اقرار دي ونه کړی اوس چې ذهب دي ولیدل اقرار دي وکړی، نو عیسی ﷺ یهود له ځانه وشړی او درې سره خښتي زر یې ورپرېښول. نو عیسی ﷺ ځندي جلا سو او یهودي د خپل ښار پر خوا په خوشحالی او په خندا را راوان دی چې ناګاه په لاره کي درې کسه غله ورته ناست وه، او تلاشي چې یې ځندي وکړه خښتي بر آمد سوې غلو فورا یهودي مړ کړی چې صبا خلګ راخبر نه کړي، وروسته دې درو غلو یو نفر ددوئ واستوی چې له ښاره ډوډی راوړي هغه نفر چې ولاړی په ډوډی پسي، دا نورو دوو په خپل منځ کي مشوره سره وکړه چې ډوډی والا چې راغلی فوراً به یې مړ کړو او درې خښتي به موږ دوو ته راپاته سي، او ډوډی راوړونکی چې ښار ته و غلی د ځانه سره یې فکر ووهی چې ډوډی یعني غوړمې یا بل شی چې رانسي مضبوته زهر ورواچوه تاچي هغه ملګري یې وخوري مړه به سي خښتي به درې سره ماته راپاته سي، خیر هغه

دوړي، ملګرو ته راوړه په مجردا اوړو سره هغه دوو کسانو هغه دوړي والا قتل کړي او خښتي يې راوکښلې او سره وه يې ويل چې راسه چې دوړي په بيغمه زړه سره به خپل دوړي، وخورو او بيا به خښتي سره تقسيم کړو، دوړي چې يې وخوړله زهر يې په کلمو کې سره ولاړه او خاى پر خاى مړه سوه عيسى ﷺ چې صبا پر دغه لار تېرېدى که ګوري چې هغه دده ملګري يهودي او نور دري کسان مړه پراته دي او د سرو زرو خښتي خاى پر خاى پرتي دي، حيران پاته سو چې دا څرنګه موضوع پېښه سوې ده خو د خداى ﷻ له خوا څخه د جبرائيل ﷺ په واسطه په حال آګاه سو.

قال السعدي رحمه الله

چو منعم کند سفله را روزه گار — نهد بردل تنگ درویش بار

چو بام بلندش بود خود فرست — کند بول وخاشاک بربام پست کذافي روح البيان

وروى عن سهل بن سعد ﷺ ده ويـل چې يو سړى له اشرافو څخه و د عليه السلام په حضور کې تېر سو نو عليه الصلوة والسلام و يو سړي ته چې دلته ناست و داسې وويل ستا څه خيال دى ددغه سړي په باره کې چې تېر سو، هغه سړي ورته وويل چې دا خو د اشرافو څخه د خلګو دى، هذا والله حرى ان خطب يعني چاته مرکه د لور وکړي حتما يې په نکاح ورکوي او که د چا شفاعت وبل چاته وکړي هغه به يې شفاعت مني، نو عليه الصلوة والسلام ساکت سو او څ يې ونه کړى، وروسته بل سړى تېر سو، نو هغه سړي ته رسول الله ﷺ وويل ماراىک في هذا؟ هغه سړي ورته وويل يا رسول الله هذا رجل من فقراء المسلمين هذا حري ن خطب ان لاينکح وان شفع لان لايشفع وان قال لايسمع لقوله فقال رسول الله ﷺ هذا خير من ملئ الارض مثل هذا يعني الاول رواه

**كَانَ النَّاسُ أُمَّةً وَّاحِدَةً**

او وه خلګ يو امت يعني متفقين في الايمان واتباع الحق من وقت آدم تر نبوت د نوح عليهم السلام پورې او په منځ کې د آدم او د نوح لس قرنه

وه هر قرن یې اتیا کاله و، وهذا هو مذهب الاکثرین، نو بیا چې اختلاف په منځ کې د خلګو په کفر او شرک سره پیدا شو.

## فَبَعَثَ اللّٰهُ النَّبِيّٖنَ مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ

نو خدای ﷻ راواستول انبیاء علیهم السلام چې زیری کونکي وه اهل ایمان او طاعت لره په جنت سره او بیرونکي د اهل کفر او عصیان وه په دوزخ سره.

**پوه سه:** چې اولین له رسولانو څخه چې د مذکوري وظیفې لپاره خدای پاک را استولی وه نوح ﷺ و، ولې چې کفر او شرک خپل اوج ته رسېدلی و، او خدای پاک د دفع د فتنې د شرک لپاره نوح ﷺ ته نهه نیم سوه (۹۵۰) کاله عمر ورکړی ثم وثم الی مبعث سید المرسلین خاتم النبیین محمد ﷺ.

**فائده:** وروسته تر وفات د علیه الصلوة والسلام که څه هم اختلاف د ایمان او کفر باقي و لکن رب العزت پر آنحضرت ﷺ دروازه د نبوت وتړله، یعني دده په بعثت سره یې دا دروازه او دا وظیفه د دفع د شرک او کفر یې پر غاړه د صحابه کرامو ﷺ ورواچول خصوصا الخلفاء الراشدین المهدیین ﷺ ثم وثم علی زمة العلماء الدین الصالحین ولهذا ورد علماء امتي کانبیاء بني اسرائیل.

## وَاَنْزَلَ مَعَهُمُ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ

او نازل یې کړی له دوئ سره کتاب

**پوه سه:** چې ددې آیت معنا دانه ده چې هر نبي ته خدای ﷻ کتاب مستقل ورکړی دی، ولې چې په صحیح حدیث کې راغلي دي چې عدد د کتب الهیه وو یو سل او څلور (۱۰۴) دي، او عدد د انبیاء کرامو ﷺ یو لک څلورویشت زیات وکم دی، وانما قلنا زیات وکم لاختلاف الآحادیث المرویة في عدد الانبیاء، بلکه هر نبي ته یې یا کتاب مستقل ورکړی دی، او یا د مخکښې کتاب د احکامو په مبلغ وي، او یا د بعض آیتو او احکامو څخه توضیح او یا بعضې احکامو ته د سابق څخه څه ناڅه تغیر او تبدیل

کوي په وحي الهي، ولهذا قال الله تعالى معهم لاعليهم فتفكر في هذين اللفظين، او بيضاوي رحمه الله يو تفسير خو موافق د ماقلنا سره كړی دی. حيث قال متفقين على الحق فيما بين آدم و ادريس ونوح عليهم السلام وزاد لفظ د ادريس، او بل تفسير يې دا كړی متفقين على الحق بعد طوفان نوح عليه السلام، او بل تفسير يې دا كړی متفقين على الجهالة والكفر في زمن فطرة ادريس ونوح ع، لكن اخيري تفسير يې د منلو وړ نه دی ولې په هيڅ تاريخ كي او نه په هيڅ حديث كي دا راغلې ده چي په يو عصر كي د اعصارو ټوله انسانان د كثرة الارض دي متفق پر كفر وه او هيڅ مؤمن دي په نړۍ كي نه وو، وماقيل في الجواب ان القليل في حكم العدم بې ځايه جواب دی او د عقل صرف استعمال دی په مقابل كي د نص.

**فائده:** رسولان يعني چي صاحب د شريعت متجدد وي كه مستقل كتاب لري او كه نه درې سوه ديارلس (۳۱۳) دي او په علم اسم ذكر سوي نبيان په قرآن او حديثو كي اته ويشت (۲۸) نفره دي، او هغه تفسير چي مشهور دی د رسول چي رسول هغه سړی دی چي صاحب د كتاب متجدد وي منظور فيه دی ولې چي عدد د رسولانو كمامر درې سوه ديارلس دی، او كتب كمامر يو سل څلور (۱۰۴) دي نو څرنگه پر رسېږي، او فاضل خيالي رحمه الله چي دفع ددې سوال كړې ده هغه اوهن من بيت العنكبوت دی او هيڅ نقل شرعي او حديث نبوي ﷺ يې تائيد نه كوي.

**فائده:** د عقائدو په باب كي يحتمل ويمكن هيڅ مدخل نه لري، البته په عقلياتو كي مروج دي، فطالع الخيالي وحواشي الفاضل اللاهوري رحمه الله.

**فائده:** الف او لام دِ لفظ د الكتاب لپاره د جنس دی فيشمل جميع الكتب السماوية، او آلوسي د ابي بن كعب رضي الله عنه څخه روايت كړی دی كان الناس متفقين على التوحيد مقرين بالعبودية حين اخذ الله منهم العهد بقوله الست بربكم قالوا بلى واسناده الى ابي بن كعب رضي الله عنه فيه ضعف عند المحدثين، ونقل المظهري رحمه الله عن الحسن وقتادة كان الناس من وقت وفات آدم الى مبعث

نوح ﷺ امة واحدة على الكفر امثال البهائم فبعث نوحا وغيره من النبيين.

**درویش وايي:** چي دا توجيه لكه توجيه د بيضاوي ده، لكن بيضاوي ټوله متفق پر كفر وبلل په فطرت كي د نوح او د ادريس، او په تېر سوي آنفاً روايت كي متفقين پر كفر وګڼل پسله وفات څخه د آدم ﷺ تر مبعث نوح پوري، ويرد عليه مايرد على البيضاوي وكمامر عنقريب.

**سوال:** دا اوسنۍ توجيه خو منقوله وه د حسن بصري او له قتاده رحمهما الله څخه نو څرنګه دغه خبره مورد د سوال ګرځي؟

**ځواب:** مورد د سوال خو د تابعانو خبره نه ده بلكه مورد د سوال سند دی ددې خبري په منځ كي د مظهري رحمه الله او ددوئ دوو تابعانو تر منځ، او بعض مفسران رح له "ناس" څخه عرب مراد بولي كماقال الحافظ عماد الدين بن كثير رحمه الله چي عرب ټوله پر دين ابراهيمي حنفي وه تر هغه وخته پوري چي عمرو بن عامر الخزاعي د مكې والي وګرځېدی، نو هغه شرك وغيره منځ ته د عربو راوړی الى ان صاروا كلهم مشركين، لكن مظهري دا توجيه رد كړې ده، دی وايي چي له دې توجيه څخه اباء او منع كوئ صيغه د جمع يعنې، النبيين اذ لم يبعث في العرب غير محمد ﷺ كمايدل عليه قوله تعالى لينذر قوما ما انذر آبائهم.

**درویش وايي:** وايضا في هذا التوجيه تخصيص العام اى لفظ الناس بلا دليل.

لِيَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ فِيمَا اخْتَلَفُوا فِيهِ

تاچي حكم وكړي خدای ﷻ يا كتاب، يا نبي مبعوث، يعني په منځ كي د خلګو چي اختلاف من الحق والباطل، دا نبي يې مثلا فيصله وكړي.

وَمَا اخْتَلَفَ فِيهِ إِلَّا الَّذِينَ أُوتُوهُ مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَاتُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ

او اختلاف نه دی كړی په كتاب الله چي دمخه ذكر سو مګر نه هغو چي دا كتاب دوئ وركړه سوی و.

**پوه سه:** چي "الذين" موصول لپاره د عهد دی او مراد خندي يهود او نصاری دي، او دا اختلاف به وروسته تردې و چي دوی ته راغلي آیات واضحات او محکمات په تورات او انجيل چي هغه آيات امر بالمعروف وه او نهي کونکي د منکراتو وه، او په جمله کي د هغو آياتو هغه هم وه چي زیری ورکونکي وه په بعثت د محمد ﷺ او صفات کريمه او حليه مبارکه او مولد د هغه او مهجر د هغه تولو پکښي ذکر وه "ومن آيات التوراة بلسانه. يناجي قاموخ الى وتسمعون الآية. قوله بغياً اى حسداً وظلماً وحب الرياسة.

**پوه سه:** چي بغياً مفعول له لقوله وما اختلف فيه الا الذين آه، وما اختلفوا فيه الا من بعد الخ وما كان الاختلاف الا للبغي آه. هذا الاعراب ذكره البرسوي في روح البيان.

**فَهَدَى اللّٰهُ الَّذِينَ آمَنُوا لِمَا اخْتَلَفُوا فِيهِ مِنَ الْحَقِّ بِإِذْنِهِ ۗ وَاللّٰهُ يَهْدِي مَن يَشَاءُ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٢١٣﴾**

نو خدای ﷻ هدایت وکړی و هغو کسانو ته چي ايمان يې راوړی و، يعني امة محمد ﷺ هغه شی چي ددوی يعني د يهود او نصاری وو پکښي اختلاف وو، من الحق بيان د "ما" موصوله دی په اراده او مهرباني خپل

**پوه سه:** چي يو امر د قبلې و، چا ومشرق ته لمونځ کاوه او چا ومغرب ته او بعضو وبيت المقدس ته، نو خدای ﷻ ومونږ ته هدایت وکړی د توجه الى الكعبة المباركة، او داغه رنګه ددوی اختلاف و د روژې د نيولو په میاشت کي، نو امة محمديه ﷺ ته خدای ﷻ خدای هدايت وکړی وشهر رمضان ته او دغه رنګه ددوی اختلاف و په هغه ورځ کي چي د عبادت لپاره يې خاصه يې کړي يهوديانو د شنبې ورځ مختاره کړه، او نصاری وو د يکشنبې ورځ او خدای ﷻ مونږ ته د جمعې ورځ وټاکل، او داغه رنګه ددوی اختلاف و په ابراهيم ﷺ کي، يهوديانو به ويل چي ابراهيم ﷺ يهودي و، او نصاری وو

په ویل چي ابراهیم ﷺ نصراني و، نو مونږ ته خدای ﷻ په قرآن پاک کي وښوول چي ﴿ماکان ابراهیم یهودیا ولا نصرانیا ولکن کان مسلما وماکان من المشرکین﴾ او داغه رنګه ددوئ اختلاف په عیسی ﷺ کي و، یهودو به ویل چي ابن الزناء وو او نصاری وو ویل چي ابن الله و، مونږ ته خدای ﷻ وویل چي عیسی عبدالله ورسوله، او خدای ﷻ هدایت وچاته چي اراده یې سي ولاري سمي او حقي ته.

**فائده**: مظهري رحمه الله په باره کي د قبلې د لفظ د مغرب هم راوړی دی او هیڅ مفسر د مغرب لفظ نه دی ذکر کړی بلکه ټوله دروېش ته معلوم مفسران وایي نصاری وو ومشرق ته لمونځ کاوه، او یهودیانو وبیت المقدس ته. والله اعلم من این اخذ الامام المظهري مع علو کعبه لفظ المغرب.

# اَمۡ حَسِبۡتُمۡ

آیا ستاسي ګمان دی.

**پوه سه**: چي عمومي مفسران رح وایي چي لفظ د "ام" منقطعه دی ولي چي ام متصله خو همزه غواړي، او دلته نسته نو د "ام" منقطیه معنا بل دی، بل لپاره د اضراب دی له اختلاف څخه د یهودو او نصاری وو، او د همزه معنا انکار دی له حسبان څخه د مسلمانانو، او مقصود په دې آیت کي دلاور کول دي د مؤمنانو پر صبر او ثبات په وخت کي د جنګ د کفارو سره. لکه چي په شان نزول کي ددې آیت به راسي ،او فراء رحمه الله وایي چي میم زائد دی او معنا د آیت احسبتم او زجاج وایي چي معنا د آیت بل حسبتم ده.

**پوه سه**: چي بیضاوي رحمه الله وایي چي مخاطب په دې آیت سره نبي ﷺ او مؤمنان دي.

**سوال**: نسبت د حسبان وعلیه الصلوة والسلام ته څرنګه صحیح کېږي؟

**ځواب**: نسبت مذکوره پر طریقه د تغلیب دی کذا في حاشیة البیضاوي.

**پوه سه**: چي په شانزول کي ددې آیت اختلاف دی ډېر مفسرانن وایي چي

دا آيت په غزا كي د احزاب چي غزوة الخندق يې هم بولي چي تفصيل او بيان به يې په دې تفسير كي پخپل ځاى كي راسي ان شاء الله تعالى، چي په دې غزاء كي نبي ﷺ او اصحابو كرامو ﷺ ته ډېر غمونه او تكليفونه او سخت بېره له دښمنانو څخه او سخته لوږه او سخت يخ ورپېښ سو چي اجمالي بيان يې په دې آيت كي واوره ﴿وبلغت القلوب الحناجر وتظنون بالله الظنونا هنالك ابتلى المؤمنون وزلزلوا زلزالا شديدا﴾ لكن بالآخر خداى ﷻ فتح مبين وركړه بېله جنګه بلكه كافران او احزاب يې د شپې په باد په بدرنګ پسي واخستل كما سوف ياتي تفصيله ان شاء الله تعالى، او بعض مفسران وايي چي دا آيت په غزوه د احد كي نازل سوى دى او عطاء رحمه الله وايي چي نبي عليه الصلوة والسلام او صحابه كرام چي مديني منورې ته راغله، چونكه نه دوئ له ځان سره مالونه راوړي وه او نه يې كډې راوسنلې وې، او كورونه او مالونه يې په لاسونو كي د مشركينو د مكې پاته سوي وه، او له بلي خوا د يهودانو د مديني د سختي دښمنى سره مخامخ سوه، نو ژوند يې ډېر په تكليف وو، نو دا آيت نازل سو والله اعلم بشان كتابه.

﴿أَمْ حَسِبْتُمْ أَن تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَأْتِكُم مَّثَلُ الَّذِينَ خَلَوْا مِن قَبْلِكُم ۖ مَّسَّتْهُمُ الْبَأْسَاءُ وَالضَّرَّاءُ وَزُلْزِلُوا حَتَّىٰ يَقُولَ الرَّسُولُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ مَتَىٰ نَصْرُ اللَّهِ ۗ أَلَا إِنَّ نَصْرَ اللَّهِ قَرِيبٌ ۞﴾ ۲۱۴

چي تاسي به داخلېږئ وجنت ته چي دار الكرامة الهي دى او نه به وي راغلي وتاسي ته.

**پوه سه:** چي چي "لما" او لم في المعنى والعمل كي سره يو شى دي، لكن په لما كي د توقع او اميد سته چي په لم كي نسته يعني راتګ د مثل الذين متوقع دى.

**پوه سه:** چي ولما سره د مدخوله حال دى له ضميره څخه د تدخلوا قوله مثل يعني حال او صفت د هغو كسانو چي تاسي ته د مخه تېر سوي دي من

الانبياء عليهم السلام واممهم، چي هغسي احوال او شدائد پر تاسي امت محمدي تر اوسه نه دي راغلي كه څه توقع يې ستئ.

**يوه سه:** چي جمله د "مستهم" آه جمله مستانفه ده په استيناف بياني يعني جواب د سوال مقدر ده گويا سائل پوښتنه وكړه چي د هغو امم ماضيه حال نو څه و فاجيب چي وهغو ته رسېدلي وو باسا، يعني الخوف من اعداء الدين والفقرا اوضراء اى الامراض الشديدة. وزلزلوا او ښورول سوي وه دوئ په انواعو د شدائدو ليظهر ثباتهم في الدين.

**يوه سه:** چي كلمه د زلزلوا استعارةً دلته مستعمله ده اصلاً خو داده چي يو سړي يوه درخته او يا يو لرگى چي ده په مځكه كي ښخ كړى وي ښوره وي چي څومره په مځكه كي محكم دى حتى چي رسول ﷺ او هغه كسان چي دده سره يې ايمان راوړى وو د ډېر سختيو څخه بې زړونه تنگ سوه نو داسي په يې ويله متى نصرالله اى ياتي نصرالله يعني هغه نصر او كومك چي خداى ﷻ يې زموږ سره وعده كړې وه.

**يوه سه:** چي زمانه د بلايا او سختيو او امراض كه يې څه هم لنډوي لكن په نظر كي د مبتلى بها ډېره اوږده معلومېږي كماهو المجرب في ليالي المريض والصحيح وان كانت ليالي الصيف التي هي قصيرة جداً، نو خداى ﷻ ودوئ ته په دې زېري جواب وركړى.

آگاه او خبر اوسئ چي نصر او كومك د خداى ﷻ نژدې دى فان كل ماسياتي قريب والبعيد حقيقة هو الامر الماضي. حاصل الآية ان الفوز بالدرجات العلى والقرب الآلهي منوط بترك ماتشتهي انفسكم ومكابدة الشدائد والآثام، كماقيل براحتي نه رسيد آنكه زحمتي نه كشيد.

وقيل. بقدر الكد تكتسب المعاني. وقال عليه الصلوة والسلام حفت الجنة بالمكاره وحفت النار بالشهوات. د خباب بن الارت څخه روايت دى چي څه وخت چي موږ شكايت وكړى د شدائدو د كفارو له خوا وعليه الصلوة والسلام ته، نو ده وويل چي هغه كسان چي تر تاسي له مخه تېر

سوي دي له اسلامي امتونو څخه هغه په انواعو د بلاَیا مبتلاً وه د کفارو له خوا څخه فلایصرف ذالک عن دینهم حتی چي د یو مؤمن پر سر به کافرانو اراه ورکښول او دوې ټوټې به یې کړی ومایصرف عن دینه ولکنکم تعجلون

**درویش وایي:** چي دا حدیث په صحیح کتابو کي د حدیثو مطول و مختصار پکښي وکړی،

**درویش وایي:** چي یوه له سختو غزاو څخه د علیه الصلوة والسلام غزاء د خندق او احزاب وه کما حکی الله عن ذالک في القرآن.

يَسْـَٔلُوْنَكَ مَاذَا يُنْفِقُوْنَ ۗ قُلْ مَآ اَنْفَقْتُمْ مِّنْ خَيْرٍ فَلِلْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَابْنِ السَّبِيْلِ ؕ وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ ﴿٢١٥﴾

**پوه سه:** چي ددې آیت په شان نزول کي اختلاف سته. بیضاوي، روح المعاني، روح البیان، مظهري رحمهم الله تعالی دا قول وایي چي سائل ددې سوال عمر بن الجموع ﷺ و، چي دی شیخ فاني و او ذامال کثیر و. نو د علیه الصلوة والسلام څخه یې سوال وکړی، ما ننفق من اموالنا واین نضعها؟ یعني سوال یې د منفق او مصرف دواړو وکړی فنزل هذه الآیة. او اوس دا سوال وارد یږي چي سائل خو یو سړی و، نو یسئلونک په صیغه د جمع څرنګه ووېل سوه؟

**ځواب:** چونکه عمر بن الجموع ﷺ په مجلس کي د صحابه کرامو ﷺ دا سوال وکړی، نو ګویا ټوله صحابه ﷺ غوښتونکي د جواب وه، او بل جواب دادی چي عمر بن الجموع ﷺ صیغه د متکلم مع الغیر استعمال کړه حیث قال ما ننفق آه، نو سائل د ځانه سره نور مسلمانان په سوال کي ګډ کړه، نو ځکه خدای ﷻ په صیغه د جمع جواب ورکړی، او ابن جریر له ابن جریج څخه روایت کړی دی چي سئال المؤمنون عن ذالک، نو پر دې روایت جمعیة د یسئلونک آه و توجیه ته ضرورت نه لري کما لایخفی.

**پوه سه:** چي سکاکي او بعض مفسران رح هم وايي لکه مظهري چي دا جواب د خدای ﷻ پر طريقه د اسلوب حکيم دی، يعني دوی خو سوال د منفق مالي کړی و، او جواب يې په بيان د مصارفو ورکړه سو تنبيهاً على ان ملاحظة المصرف اهم دی او بيان ته د منفق مال صرف خدای ﷻ اشاره په لفظ د خير وکړه، ولي خير مطلق مال ته وايي. له هر جنس څخه چي وي لکن حلال، لکن سوال دا دی چي مظهري رحمه الله بلکه ټولو مفسرانو رح په سوال کي د عمر بن الجموع رضی الله عنه دا لفظ هم راوړی دی واين نفعها چي معنا يې سوال د مصرف دی، فلم يکون الجواب من قبيل الاسلوب الحکيم لان المصرف ايضاً مسؤل، او روح البيان هم طريقه د مظهري خپله کړې ده ولقد احسن البيضاوي رحمه الله حيث اورد اولاً مثل تفسير البرسوي رحمه الله والمظهري ثم اورد جواباً آخر اجمالاً، ونقل علامة بغداد رحمه الله في تفسيره روح المعاني حديث ابن عباس رضی الله عنه برواية ابي صالح رضی الله عنه (کان عمر بن الجموع رضی الله عنه شيخا کبيراً ذا مال کثير فقال يا رسول الله بماذا نتصدق وعلى من ننفق فنزلت او بيا علامه بغداد رحمه الله داسي ويلي دي، چي ظاهر الآية انه سئل اى عمر بن الجموع رضی الله عنه عن المنفق فاجاب ببيان المصرف صريحا لانه اهم فان اعتداد النفقة باعتبار المصرف واشار الى بيان المنفق اجمالا فان قوله تعالى "من خير" يتضمن کونه حلالا اذا لايسمى ماعداه خيرا وانما تعرض لذالک وليس في السوال مايقتضيه لان السؤال للتعلم لا للجدال وحق المعلم فيه انيکون کطبيب شفيق يتحرى مافيه الشفاء طلبه المريض ام لم يطلبه، ولما کان حاجة السائلين الى من ينفق عليه کحاجتهم الى ماينفق بين الامرين وهذا کمن به صفراء فاستناذن الطبيب في شرب العسل فقال اشربه مع الخل فالکلام اذا من اسلوب الحکيم

**درويش وايي:** چي پر دې تقدير کلام د آلوسي او برسوي او مظهري رح سره برابر سوه. قال البغدادي رحمه الله ويحتمل ان يکون في السوال ذکر المصرف ايضا کمايدل عليه حديث ابن عباس رضی الله عنه کمامر في بيان شانزول

الآية الا انه لم يذكره اى سوال المصرف في الآية الايجاز في النظم وتعويلا على الجواب يعني ان الجواب يدل على المصرف فيكون الآية جوابا لامرين مسول عنهما، والاقتصار في جواب المنفق على الاجمال يعبر بقوله من خير، من غير تعرض للتفصيل كما في بيان المصرف للاشارة الى كون الثاني اى المصرف اهم. قال البغدادي رحمه الله بعد اسطر ان الآية حينئذ يخرج من الجواب على اسلوب الحكيم.

**مسئله:** اکثره مفسران پر دې عقیده دي چي دا آيت په انفاق تطوعي کي نازل دی.

**درویش وايي:** چي عطاء رحمه الله له ابن عباس رضي الله عنه څخه دا هم نقل کړي دي چي يو سړی عليه الصلوة والسلام ته راغلی او ورته وه يې ويل چي زه يو دينار لرم څه په وکړم، عليه السلام ورته وويل انفقه على نفسک هغه سړي ورته وويل چي زه دوه دنياره لرم عليه السلام ورته وويل چي انفقها على اهلک، يعني پر څان او اهل، هغه سړي ورته وويل چي زه درې ديناره لرم عليه السلام ورته وويل انفقها على خادمک يعني مع نفسک واهلک هغه سړي ورته وويل چي زه څلور ديناره لرم، عليه السلام ورته وويل انفقها على والديک، يعني مع مامر هغه سړي ورته وويل چي پنځه ديناره لرم عليه السلام ورته وويل انفقها على قرابتک هغه سړي ورته وويل چي زه شپږ ديناره لرم عليه السلام ورته وويل انفقها في سبيل الله، فنزلت هذه الآية ﴿قل ما انفقتم الآية﴾ والله اعلم بصحة الرواية.

## كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ

او فرض سوی دی پر تاسي باندي جهاد له کفارو سره.

**پوه سه:** چي د جمهورو علماؤ مذهب دادی چي جهاد فرض کفايي دی مثل صلوة الجنازة ورد السلام، او که کفار بلادو ته د مسلمانانو داخل سوه بيا نو جهاد فرض عين دی كذا في التفاسير المعتبرة والكتب الفقهية

وعليه انعقد الاجماع واتفقة الائمة ان الجهاد واجب على كل اهل بلدان كفاية او علينا عند النضير العام وعند هجوم الكفار على بلاد الاسلام فان عجز اهل تلك البلدان او جبنوا وجب من يليهم الاقرب فلاقرب.

**مسئله:** که پر سړي جهاد فرض عين سو كما عند هجوم الكفار على بلاد المؤمنين نو د هيڅ چا اجازې ته ضرورت نسته حتى الوالدين او که جهاد په درجه کي د فرض کفايي و، نو هيڅ چا ته رواه نه دی چي ببله اجازې د مور او پلار جهاد ته ولاړ سي، بشرط انيكون والداه مؤمنين والا فلاحاجة الى الاجازة، دليل د اجازې د مور او پلار بالشرط المذكور هغه حديث نبوي ﷺ صحيح دی چي يو سړی وعليه الصلوة والسلام ته راغلی چي زه جهاد ته ځم عليه الصلوة والسلام ورته وويل احي والداک؟ قال نعم، نو عليه السلام ورته وويل ففيهما فجاهد يعني ددوئ په خدمت کولو کي د جهاد ثواب حاصل کړه او كما قال عليه السلام.

**مسئله:** که پر سړي پور باندي و او جهاد په درجه کي د فرض کفايي و، دا سړی به ببله اجازې د پور والا جهاد ته ځي، او حديث چي درويش د والدينو د اجازې په باره کي ذکر کړی، د هغه حديث روايت بخاري او مسلم او ابي داؤد او نسائي او د ابن ماجه رحمهم الله په متقاربو الفاظو سره کړی دی.

**فائده:** د ابن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي ما د عليه الصلوة والسلام څخه پوښتنه وکړه چي اي الاعمال افضل، قال الصلوة على ميقاتها اى على وقتها المستحب قلت ثم اي قال بر الوالدين، قلت ثم اي قال الجهاد في سبيل الله او ابن مسعود ﷺ وايي که ماطلب د زيادت د عليه الصلوة والسلام کړی وايي ده به ماته نور اعمال هم راښوولي وايي، رواه البخاري وغيره.

**درويش وايي:** چي په فضائلو کي د جهاد ډېر احاديث سته په کتب صحيحه وو کي فطالع تلك الكتب.

وَهُوَ كُرْهٌ لَّكُمْ

او دا قتال حال دادی چي پر تاسي شاق دی.

**پوه سه:** چې "کره" مصدر دی په معنا د کراهة دی او حمل یې پر قتال مبالغةً دی کما في زید عدل.

**فائده:** کراهة د قتال په سبب د نفرت د طبع انساني دی، ولې چې په قتال کې صرف المال سته او مشقت پر نفس انساني سته او خپل د روح محبوب په خطره کې اچول سته او دا معنا نه ده چې مسلمانان امر الهي د قتال ته په نظر د کراهة ګوري لانه کفر وکراهة الطبع لایوجب الذم بلکه سره د کراهة الطبع چې مسلمانان جهاد ته ولاړ سي لپاره د متابعت د امر الله په مسلمان کې حقیقي معنا د عبودیت پیدا کوي او کراهة الاعتقاد خو صفت د منافقانو و، والمؤمنون بمراحل عنهم.

## وَعَسَىٰٓ أَن تَكۡرَهُواْ شَيۡـٔٗا وَهُوَ خَيۡرٞ لَّكُمۡۖ

او شاید چې تاسي به یو شی مکروه بولئ یعني طبعاً او هغه شی به ستاسي لپاره خیر وي.

**پوه سه:** چې ټوله ما کلف به المؤمنون من الامور الشاقة، او د هغو له جملې څخه قتال مع الکفار دی او هغه شی یعني هر امر شاق چې مؤمن په مکلف وي چې په مانحن فیه قتال دی ستاسي لپاره به خیر وي، ولې چې په قتال مع الکفار کې یو له دوو ښوو شیانو څخه سته، اما الشهادة والجنة والظفر والغنیمة.

**پوه سه:** چې "عسی" په معنا د "لعل" دی چې نسبت یې وعبادو ته وسي معنا یې ترجي لازمي ده او چې نسبت یې وخدای ﷻ ته وسي معنا یې ترجیه متعدي ده.

## وَعَسَىٰٓ أَن تُحِبُّواْ شَيۡـٔٗا وَهُوَ شَرّٞ لَّكُمۡۗ

او ښایي چې یو شی به ستا طبعا خوښ وي، وهو جمیع الامور المستلذة المنهی عنها کالزناء والخمر وغیرهما، او په مانحن في قعود عن القتال الکفرة، او هغه شی یعني ټوله منهیات به ستاسي لپاره شر وي ولې سبب د

غضب الهي او د عذاب اخروي دی لکه قعود عن القتال، ولي فائده د غنیمت او د ثواب اخروي مو د لاسه وزي، او کافران به غالبه سي او سبب د ذلت ستاسي او د تخریب د دیار ستاسي به وګرځي.

**درویش وایي:** چي دا خبره اوس په تجربه رسېدلې ده چي د سنه (۱۴۲۰) ه ق یعني یو زر څلور سوه شل را هیسته تر اوسني سنه یعني (۱۴۲۶) پوري کفار متوجه دي و دول الاسلامیه وو ته چي متعدد دول اسلامیه یې د مسلمانانو له لاسه ویستل، او په بمباری د طیارو او د توپو د مسلمانانو وطنونه خراب او برباد کړه خلګ یې وترک الاوطان ته مجبوره کړه اللهم نصرا منصورا.

وَاللّٰهُ يَعۡلَمُ وَاَنۡتُمۡ لَا تَعۡلَمُوۡنَ ﴿٢١٦﴾

او خدای ﷻ ستاسي په خیر او شر خبر دی څکه مو په خیر سره امر کوي لکه جهاد مع الکفار فیما نحن في او له شره څخه مو منع کوي لکه قعود عن القتال په مانحن فیه کي.

**درویش وایي:** چي ذون المصري ﷫ وایي چي ضعف د دین او فساد د خلګو د شپږو شیانو څخه پیدا کېږي.

(۱) کمزوري د نیت په کارو کي د آخرت. یعني مسلمانان کارونه د آخرت په محبت او صدق نیت نه کوي.

(۲) د خلګو زړونه او بدنونه په شهواتو نفسیه وو کي ګرو دي.

(۳) پر خلګو طول الامل مع قرب الاجل غالب دی.

(۴) خلګو رضا د مخلوق پر رضا د خالق غوره کړې ده. یعني چي مخلوق په یو کار راضي کېږي هغه کار کوي که څه هم خالق ﷻ په ناراضه کېږي.

(۵) متابعت د اهوا نفسیه وو کوي او سنت نبوي ﷺ یې تر شا غورځولي وي.

(۶) لږ زلت او ګناه صغیره اولیاء الله او سلفو صالحینو دلیل د خپلو ګناه کبائرو لپاره ګرځولې وي، او ددوئ مناقب یې په خاورو کي دفن کړي وي سعدي قدس سره وایي

مبر طاعت نفس شهوت پرست — که هر ساعتش قبله دیگر است
کند مرد را نفس اماره خوار — اگر هوشمندي عزيزش مدار

**درويش وايي:** چي قتل د نفس اماره سبب د حيوة ابدي دی، کما قال قدس سره

اقتلوني اقتلوني ياثقات — ان في قتلي حياتا في حيات

ولنعم ماقيل

خنجر وشمشير شد ريحان من — مرگ من شد بزم ونرگسدان من

## يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيهِ

او صحابه کرام ﷺ له تاڅخه سوال کوي د شهر حرام په باره کي يعني د جنگ په باره کي.

**پوه سه:** شهر اسم جنس دی او مراد له شهر حرام څخه څلور مياشتي په کال کي دي يعني ذو القعدة، ذوالحجة، محرم، رجب.

**پوه سه:** چي "قتال فيه" بدل الاشتمال دی له "شهر الحرام" څخه يعني ددوئ صرف شهر الحرام مقصود نه و بلکه مقصود د سوال جنگ کول په دغو مياشتو کي، کما قالوا سلب زيد ثوبه.

**درويش وايي:** ددې آيت په شان نزول کي د مفسرانو اختلاف سته. آلوسي، علامة بغداد دا شان نزول په روايت د ابن اسحاق او ابن جرير او د ابن ابي حاتم او بيهقي من طريق زيد بن رومان عن عروة ﷺ رواړی دی، او مظهري رحمه الله په روايت د ابن جرير او ابن ابي حاتم او طبراني او ابن سعد او بيهقي عن جندب بن عبد الله ﷺ ددې آيت د شان نزول بيان کړی دی لکن په بعض ځايو کي دواړه سره متفق سي، او په بعض ځايو کي يې د اسمان او مځکي فرق دی کما يظهر من مطالعة التفسيرين المذکورين لکن درويش وايي چي روايت د روح البيان ډېر په زړه پوري دی ولي چي د قيل وقيل څخه خلاص دی، برسوي رحمه الله وايي چي عليه الصلوة والسلام

عبدالله بن جحش ﷺ چي د علیه الصلوة والسلام د عمه زوی و په جمادي الآخر کي د بدر تر غزاء دوې میاشتي دمخه، او د هجرت څخه (۱۷) میاشتي تېري سوي وې، او اته نفره یې ورسره کړه له مهاجرینو څخه چي نومان یې داوه (۱) سعد بن ابي وقاص ﷺ چي د بني زهره له قومه څخه و (۲) عکاشه بن محض الاسدي ﷺ (۳) عتبه بن غزوان السلمي ﷺ (۴) ابو حذیفه بن ربیعه ﷺ (۵) سهیل بن بیضاء ﷺ (۶) عامر بن ربیعه ﷺ (۷) واقد بن عبدالله ﷺ (۸) خالد بن بکیر ﷺ، او علیه الصلوة والسلام وامیر ته چي عبدالله بن جحش ﷺ و یو مکتوب په لاس ورکړی او ورته وه یې ویل څه پر نامه د خدای ﷻ او مکتوب مه ګوره حتی چي دوې ورځي مزل مو وکړی چي یو ځای مو واړول بیا مکتوب وګوره او ملګرو ته دي د مکتوب مضمون ښکاره کړه، او بیا هغه کار وکړه چي ته ما په مکتوب کي امر کړی یې، او مه مجبوره کوه هیڅ څوک له ملګرو څخه چي ستا سره به همراهي کوي، عبدالله سره له ملګرو دوې ورځي مزل وکړی. نو یې مکتوب خلاص کړی په مکتوب کي دغسي نوشته وه بسم الله الرحمن الرحیم. اما بعد: فسر علی برکة الله بمن تبعک من اصحابک حتی تنزل بطن نخلة وترصد عبر قریش لعلک ان تاتینا منها بخیر. نو عبدالله بن جحش ﷺ چي مکتوب مطالعه کړی، وه یې ویل سمعا وطاعةً او بیا یې وملګرو ته وویل چي د خط مضمون خو دغه دی مګر علیه الصلوة والسلام زه نهي کړی یم چي کوم ملګري به زه پر تګ له خانه سره نه مجبوره کوم، نو څکه چي څوک له شهادت سره محبت لري زما سره دي ولاړ سي، او که څوک تګ مکروه بولي یعني زړه یې نه غواړي هغه دي بېرته مدینې ته ولاړ سي. نو اصحابو او ملګرو هم په سمعاً وطاعةً ملګري دده مختاره کړه، نو خیر را رهي سوه ولم یتخلف منهم احد حتی یو ځای ته د حجاز ورسېدله چي نجران یې باله نو په دغه ځای کي د سعد بن وقاص او عتبه بن غزوان اوښ ورک سو چي دوئ دوه په نوبت پر سپرېدل. نو دغه دوه کسه په طلب کي د اوښ تر شا

پاته سوه ومضى بقية اصحابه حتى نزلوا ببطن نخلة چي په منځ کي د مکې او د طائف واقع و، نو دوئ دالته وه چي قافله د قريشو پر راغله چي وځکي او نور تجارتي شيان چي په طائف کي يې رانيولي وه او مکې ته يې وړل چي په هغه قافله کي عمرو بن الحضرمي او حکم بن کيسان مولى د هشام بن مغيره او دده ورور نوفل بن عبدالله و، نو قافلې والا وو چي اصحاب د عليه السلام وليدل ډېر وارخطا سوه او دا ورځ اوله ورځ د رجب وه چي له اشهر الحرم څخه ده او د اصحابو دا خيال و چي دا ورځ آخيره ورځ د جمادي الآخير ده نو اصحابو ﷺ مشوره سره وکړه چي که ننه شپه موږ دوئ پرېږدو خو حرم مکي ته دخلېږي، نو بيا خو زموږ جنګ له دوئ سره ناجائز دی، او اخير اتفاق پر دې وسو چي هم دا ننه شپه به بريد پر کوو، نو يې جنګ شروع کړی، او واقد بن عبدالله السهمي ﷺ عمرو بن الحضرمي کافر په غشي وويشتی او مړ يې کړی، تاريخ وايي چي دا اول قتيل و د مشرکانو چي په لاس د مسلمانانو قتل سو. او دا هم اول قتيل و په زمانه کي د هجرت، او اصحابو ﷺ حکم بن کيسان او عثمان بن عبدالله ژوندي ونيول، او دا دوه کسه اول اسيران وه په اسلام کي او نوفل پر آس وتښتېدی تر يو ځای مسلمانانو منډي پسي وکړې خو نوفل ځان خلاص کړی. نو مسلمانانو ټوله قافله او دوه بنديان له ځانه سره بوتله او مدينې ته ورسېدل او عليه الصلوة والسلام ته يې تسليم کړه، نو قريشو د مکې های هوئ شروع کړی چي محمد هتک د شهر الحرام وکړی يعنون رجب. او دا هغه مياشت وه چي هر خائف به په امن کي ژوند کاوه او دا هغه مياشت وه چي خلګو به په دې مياشته کي بېخوف او خطرې سفرونه کول د تجارت لپاره او قريشو دا هم وويل چي دده ﷺ اصحابو په دې مياشت کي وينې وه بهولې، او لوټ ماري د قافلې يې هم وکړه، او قريشو د مکې به هغو مسلمانانو ته چي په مکه کي پاته وه پېغورونه ورکول چي ستاسي نبي داسي ناوړه کار وکړی، يعني استحلال د شهر حرام يې وکړی، او دا خبري

وعلیه السلام ته ورسېدلې، نو عبدالله بن جحش او ملګرو ته یې وویل چي ما کله تاسي امر کړي واست چي تاسي په شهر حرام کي جنګ وکړئ، نو علیه الصلوة والسلام د قافلې راوړي مالونه او دا دوه بندیان تر امر الهي پوري معطل کړه او غانمینو ته یې هیڅ شی ورنه کړی. او دا موضوع پر عبدالله بن جحش او ملګرو دده ډېره سخته تمامه سوه، او ددوئ دا خیال سو موږ د اسلامي هلاکت سره مخامخ سوو، نو عبدالله بن جحش وعلیه السلام ته وویل چي موږ چي ابن الحضرمي قتل کړی دابله شپه موږ د رجب میاشت ولیدله، نو موږ نه پوهېږو چي ابن الحضرمي موږ په رجب کي قتل کړی دی یا په جماد الاخیر کي، نو پر دې موضوع د خلګ تر منځ د مسلمانانو او کافرانو ډېر بحثونه کېدل، فانز الله تعالی هذه الآیة، نو علیه السلام دقافلې له اموالو څخه خمس د بیت المال واخستی او داهم اول خمس و په اسلام کي چي بیت المال ته تحویل سو، او باقي څلور حصې یې په غانمینو ووېشلې او داهم اول غنیمت و په اسلام کي، او کفارو د مکې د بندیانو په باره کي فدیه راواستوله، نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي ستاسي د دوو بندیانو کار موقوف دی تر څو چي سعد او عتبه راځي او که هغه دوه را نه غله نو موږ ستاسي دوه بندیان در وژنو. نو حکم بن کیسان چي بندي و هغه خو اسلام راوړی او په مدینه منوره کي د علیه الصلوة والسلام سره پاته سوه فقتل ببیر معونة شهیداً، او عثمان بن عبدالله په اداء کولو سره د فدیې مکې ته ولاړی او کافر مړ سو، او هر چه نوفل چي د اصحاب السریة څخه په تېښته تللی و هغه په غزاء کي د خندق کوشش وکړی او آس یې پېښې بنورولې چي تر خندق د مسلمانانو وخواته ورتېر سي او جنګ وکړي او خپل شجاعت وکافرانوته وښیي، نو آس چي یې کله له خندقه غورځېدی آس یې وخندق ته ولېدی چي هم دی مړ سو او هم یې آس، نو مشرکانو د علیه الصلوة والسلام څخه غوښتنه وکړه چي دا زموږ مړی په فدیه موږ ته په لاس راکړئ، نو علیه الصلوة والسلام ورته

وويل چي يو يې سي يعني ببله فديې فانه خبيث خبيث الجيفة والفدية.

**درویش وايي:** داوه تمامه قصه د شان نزول د آيت مذكوره.

نو حاصل د آيت دادی چي صحابه کرام ستا څخه پوښتنه کوي د شهر حرام چي په اوسنۍ قصه کي شهر رجب وه يعني د جنګ له کارونو څخه سوال کوي

**قُلْ قِتَالٌ فِيهِ كَبِيرٌ**

نو ته ورته ووايي چي قتال په شهر حرام کي خو ګناه کبيره ده.

**پوه سه:** چي قتال مبتداء ده او كبير يې خبر دی.

**سوال:** قتال خو نکره ده نو ابتدائيت يې څرنګه صحيح دی؟

**ځواب:** هو! لکن فيه صفت د قتال دی او د نکره موصوفي ابتدائيه صحيح كماتقرر في النحو، قال البرسوي رحمه الله في روح البيان ان الاكثر اى العلماء على ان هذه الآية منسوخة بقوله تعالى ﴿فاقتلوا المشركين حيث وجدتموهم﴾ وقال المظهري رحمه الله ايضا ان اكثر العلماء على ان هذه الآية منسوخة بالآية المذكورة.

**پوه سه:** چي لفظ د حيث چي واقع په آيت کي دی هلته ناسخه کېدای سي چي لپاره که د زمانې سي، نو د آيت معنا داده چي تاسي وژنئ: کافران په هره زمانه کي چي وي يعني که اشهر الحرم وي او که نوري مياشتي وي. نو ناسخ كېدای سي، كمال الدين ابن الهمام رحمه الله په فتح القدير کي وايي هذا اى النسخ بناء على التجوز بلفظ حيث في الزمان ولاشک انه كثير الاستعمال آه اى لفظ د حيث ډېر استعماليږي په زمانه کي يعني مجاز متعارف دی.

**درویش وايي:** چي مظهري رحمه الله چي عادت يې دادی چي ډېر خلاف المذهب خبري کوي پر ابن الهمام رحمه الله په دغو الفاظو رد کړی دی، قلت لفظ حيث للمكان حقيقة واستعماله للزمان تجوزا لادليل عليه آه، او ابن الهمام رحمه الله پر نسخ د حرمت دليل په عوماتو سره د آياتو او احاديثو ويلی دی نحو قوله تعالى ﴿قاتلوا المشركين كافة﴾ وقوله عليه الصلوة والسلام

﴿امرت ان اقاتل الناس حتى يقولوا لا اله الا الله﴾ مظهري دا دليل هم رد کړی دی فطالع تفسیره، او مظهري پر خلاف د اکثر العماء رح حرمت د قتال په اشهر الحرم کې باقي بولي او منسوخ يې نه بولي، ګویا امام مظهري رحمه الله دعوه د اجتهاد کوي، او قول د اکثر العلماء نه مني او هر څو دلائل چې چا پر منسوخيت د حرمة القتال في الاشهر الحرم راوړی دی هغه ټوله مظهري رد کړی فطالع تفسیره.

**درویش وايي:** چې امام همام فخر الدين رازي رحمه الله په تفسير کبير کې وايي لکه چې بيضاوي وويل "الذي عندي ان الآية (يعني قوله تعالى قتال فيه كبير) لاتدل على حرمة القتال مطلقا في الشهر الحرام لان القتال فيها نكرة في حيز مثبت فلا تعم فلاحاجة حينئذ الى القول بالنسخ. انتهى قول الامام.

**درویش وايي:** چې دا قول د فخر الدين رحمه الله هم مردود په نېز د مظهري دی.

**درویش وايي:** چې ولله در علامة بغداد رحمه الله في تفسيره روح المعاني دی وايي والاكثرون على ان هذا الحكم يعني قتال فيه كبير منسوخ په دې قول د خدای ﷻ دی ﴿فاذا انسلخ الاشهر الحرم فاقتلوا المشركين حيث وجدتموهم﴾ فان المراد بالاشهر الحرم في هذه الآية اشهر معينة (يعني هغه اشهر حرم چې عليه السلام ددوئ سره قرارداد کړی و چې په اشهر حرم کې ددغه کال به موږ جنګ نه سره کوو) بدليل قوله تعالى ﴿فسيحوا في الارض اربعة اشهر﴾ وليس المراد الاشهر الحرم من كل سنة فالتفيد بها يفيد ان قتلهم بعد انسلاخها مامور به في جميع الازمنة قال الآلوسي رحمه الله بعد ذالک وفيه نسخ الخاص (يعني قوله تعالى قتال فيه كبير) بالعام (يعني قوله تعالى فاقتلوا المشركين حيث وجدتموهم) وساداتنا الحنفية يقولون به. ای بنسخ الخاص بالعام خلافا للشافعية رحمهم الله.

**درویش وايي:** چې د دلائلو د مذهبينو او جوابونه د هغو په اصول الفقه کې مطالعه کړي ان شئتم.

**درویش وایي:** چي چونکه زه نه مجتهد یم او نه د اجتهاد دعوه کوم، نو ځکه زما مختاره مذهب د اکثر العلماء دی چي تول مفسرین يې مذهب العلماء بولي یعني چي دا آیت ﴿قل قتال فیه کبیر﴾ منسوخ دی په هغه آیت چي ذکر يې مکرر تېر سو.

قال الشاعر

ومن مذهب حب الدیار لاهلها وللناس فیما یعشقون مذاهب

**بیت**

این قصه پایان نه دارد پیش رو دامن تفسیر محکم گیرو د رپیش رو

﴿وَصَدٌّ عَنْ سَبِيلِ اللّٰهِ وَكُفْرٌۢ بِهٖ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۗ وَاِخْرَاجُ اَهْلِهٖ مِنْهُ اَكْبَرُ عِنْدَ اللّٰهِ ۚ وَالْفِتْنَةُ اَكْبَرُ مِنَ الْقَتْلِ ۗ﴾

او مخ اړول له لاري ښخه د خدای ﷻ چي اسلام او طاعات دي، او کفر په خدای سره یعني الشرک، والمسجد الحرام بحذف المضاف یعني صد المسجد الحرام بمعنی منع المسجد الحرام عن دخول المؤمنین فیه کمافي عام الحدیبیة او ایستل د اهل د مسجد حرام چي نبي ﷺ او اصحاب کرام دي یعني پر دوی په ظلم کولو سره دوی وهجرت ته مجبوره کول که څه هم مکې والو مشرکانو دوی ته نه ویل چي ووزئ له مسجد حرام ښخه، ډېر غټه ګناه ده په نېز د خدای ﷻ تر فعل د سریة د عبدالله بن جحش چي کافر يې په شهر حرام کي مړ کړی، ولي چي د کفارو د مکې مذکوره کارونه عمداً او ازروي عناد وه او فعل د سریه خو خطاً وو کمامر في شان النزول، او فتنة یعني شرک د اهل مکې سخت دی تر قتل د حضرمي، نو اهل مکه ولي پېغور و مسلمانانو ته ورکوي په قتل د حضرمي.

**پوښتنه:** خدای ﷻ مسلمانان اهل د مسجد حرام وبلل او سره ددې چي دوئ خو خارج المسجد الحرام وه په مدینه منوره کي، او کفار يې اهل د

مسجد الحرام نه بلل او سره ددې چي دوئ خو په وخت د نزول الآية په مسجد حرام کي وه؟

**ځواب**: مسلمانان که څه هم په خارج المسجد الحرام کي وه لکن حق د مسجد الحرام چي توحيد الهي دی دوئ پر ځای کړی و، او يا يې مسلمانان اهل ويلل په اعتبار د مائول اليه کمافي فتح المکة، او کفار مکه که څه هم په مکه کي وه لکن حق د مکې چي يې نه و پر ځای کړی نو ګويا اهل يې نه دي، او يا په اعتبار ددې چي په عاقبة الامر کي اهليت د مکې له دوئ څخه به واخستل سي کمافي فتح المکة المکرمة.

**فائده**: اکبر عندالله " خبر دی د امور معدوده و، ای هذه الاشياء الاربعة اکبر اثما وعقوبةً من قتل المسلمين لابن الحضرمي في الشهر الحرام وان کان عمدا لان القتل يحل بحال والکفر لايحل مع ان المسلمين لم يکونوا عامدين لهتک حرمة الشهر الحرام بل مخطئين في الاجتهاد کمامر سابقاً

**فائده**: دا آيت چي نازل سو نو عبدالله بن انيس ﷺ ومسلمانانو ته د مکې خط نوشته کړی چي که چېري کفار مکه وتاسي ته پېغور د ابن حضرمي درکوي په شهر حرام کي، نو تاسي پېغور ورکوئ په شرک سره او په اخراج سره د رسول الله ﷺ او صحابه وو ﷺ من مکة ومنع المسلمين عن زيارة البيت الشريف في عام الحديبية.

**وَلَا يَزَالُونَ يُقَاتِلُونَكُمْ حَتَّىٰ يَرُدُّوكُمْ عَن دِينِكُمْ إِنِ اسْتَطَاعُوا**

او همېشه کفار مکه له تاسي سره جنګ کوي تر هغو پوري چي تاسي له دين اسلام څخه رد کړي يعني کفر ته.

**پوه سه**: چي په دې آيت کي اشاره ودوام ته د عداوت د دوئ ده که ددوئ له طاقته پوره سي.

**پوه سه**: چي لفظ د ان لپاره د استيعاد د کفارو د استطاعت دی.

# وَمَنْ يَّرْتَدِدْ مِنْكُمْ عَنْ دِيْنِهٖ فَيَمُتْ وَهُوَ كَافِرٌ فَاُولٰٓئِكَ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ

او چي څوک مرتد سي له تاسي څخه يعني د مسلمانانو څخه له خپله دينه يعني اسلام څخه، يعني هر نوع كفر كه مشرک سي او يا يهود او نصارى سي، نو دى مړ سي په داسي حال كي چي كافر وي نو دغه كسان دي چي اعمال صالحه يې ټوله باطل سوه، يعني كه فرائض وي او كه نوافل وي نعوذ بالله من الارتداد بالقلب والعمل.

**پوه سه**: چي امام شافعي رحمه الله په دغه آيت سره دليل وايي چي عمل د مرتد چي پر كفر مړ نه سي نه لغوه كېږي يعني كه بيرته مسلمان سي اعمال صالحه يې پر ځاى دي مثلاً، دى وايي كه چا حج وكړى او وروسته مرتد سو او بيا بيرته مسلمان سو، نو پر هغه مسلمان د حج راگرځول نه دى واجب، حتى كه يو سړي د ماپښين لمونځ وكړي او بيا مرتد سو نعوذ بالله من ذالک او وخت د ماپښين هم باقي و، او دى بيرته مسلمان سو د ماپښين د لمانځه راگرځول نسته باندي، دا دليل امام شافعي رحمه الله په مفهوم د صفت وكړى يعني وهو كافر، او امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله ومفهوم ته د صفت اعتبار نه وركوي او استدلال په هغه آيت وايي ﴿ومن يكفر بالايمان فقد حبط عمله﴾ والمطلق لايحمل على المقيد عند الحنفية، نو د حج قضاء پر واجب ده وكذالک قضاء الصلوة المذكورة.

# فِى الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۚ وَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ۝

يعني پر اسلام سابق د مرتد محفوظ والى د قتل دده او د وينو دده او د اموالو دده باطل سو نو قتل يې روا دى ولايجب على الامام مهلت وركول ومرتد ته تر درو ورځو پوري لكنه يستحب ذالک، او امام شافعي رحمه الله وايي چي دري ورځي مهلت وركول واجب دى او دا آيت پر ده حجت دى

زموږ له خوا او په آخرت کي يې هم عمل لغوه سو، يعني ثواب د عمل يې
نسته او هم دغه مرتدان چي پر کفر مړه سي اصحاب النار دي، او هم دوئ
به په اور کي به همېشه وي لکه نور اصلي کافران.
**پوه سه:** چي آيات سابقه چي نازل سو نو اصحاب السرية وويل يا رسول الله ﷺ
هل نؤجر في السفر المذكور وهل يكون سفرنا هذا غزوةً فانزل الله تعالى.
***جمله معترضه وحكاية غريبة:*** حسن محمد بن السراج رحمه الله وايي چي ما
له جنيد بغدادي رحمه الله څخه واورېدل چي ما ابليس په خوب کي وليدی چي
لغ پغ و، ما ورته وويل چي له خلگو نه شرمېږې، ابليس راته وويل: که دا
خلگ او انسانان وايي نو ما به په دو ئ سات نه تېروی لکه کوچنيان چي په
گين سات تېروي، نو ما ورته وويل چي انسانان نو څېري دي، ده راته وويل
چي يو څو کسان دي چي په مسجد شونيزي کي دي زما بدن دوئ راويلي
کړی دی، او زما زړه يې را سوی دی، هر وخت چي زه ددوئ د اغوا لپاره
ورسم دوئ اشاره وخدای ﷻ ته وکړي يعني ذکر د خدای ﷻ شروع کړي، نو
قريب وي چي زه دي په نور د ذکر د دوئ وسوځم، جنيد وايي چي راوېښ
سوم نو مسجد شونېزي ته ور روان سوم چي دا کسان ووينم نو به خوب
امتحان هم راته حاصل سي، نو هنوز شپه وه چي مسجد شونيزي ته
ورداخل سوم، درې کسه ناست او سرونه يې په کالو کي پېچلي وه، نو دوئ
چي احساس د سړي د راتگ وکړی په دوئ کي يوه سر لغ کړی او ماته يې
وويل يا ابا القاسم تاته چي چا يو څه وويل ته د هغه خبره اوري او قبولوې
يې انظر ايها التالي لصفائهم بنور ذكر الله حيث انكشف الله لهم ما رئ
جنيد رحمه الله من المنام وقول ابليس له في حق هولاء، وفي المثنوي

بود گبري در زمان بايزيد — گفت اورا يک مسلمان سعيد
که چه باشد گرتو ايمان اوري — تا بيابي صد نجات وسروري
گفت اين اسلام اگر باشد اي مريد — انکه دارد شيخ عالم بايزيد
مؤمن ايمان اويم در نهان — گرچه مهرم هست محکم برزبان

باز ایمان گرخود ایمان شماست — نی بدان میلستم نی مشتها ست
انکه صد میلش سوی ایمان بود — چون شما را دید زان فاتر شود
زانکه نامش دیدو ومعینش نی — چون بیابان را مفازه گفتمي

**درویش وایي**: چي حکایت غریبه او جمله معترضه پای ته ورسیده. اوس وواره هغه آیت چي شان نزول یې درویش ذکر کړی.

**إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَاجَرُوا وَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أُولَٰئِكَ يَرْجُونَ رَحْمَتَ اللَّهِ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٢١٨﴾**

په تحقیق هغه کسان چي ایمان یې راوړی وي او هغه کسان چي هجرت له مکې څخه ومدینې ته کړی وي، او هغه کسان چي جهاد یې کړی وي په لاره کي د خدای ﷻ نو دغه کسان امید لري ورحمت ته د خدای ﷻ یعني ثواب ته او خدای ﷻ بخښونکی د عمل خطا دی لکه سریه چي قتل د ابن الحضرمي په شهر حرام کي د رجب وکړی، او او خدای ﷻ مهربان دی چي دوئ ته به ثواب ددغي غزاء ورکړي.

**فائده**: موصول یعني والذین هاجروا آه یې تکرار کړی یعني تر اول موصول لاندي یې داخل نه کړی لپاره د اظهار د عظمت د هجرت او جهاد.

**فائده**: خدای ﷻ یرجون وویل چي معنا یې امید او طمع ده، له دې سببه چي عمل صالح پر خدای ﷻ ثواب واجب نه گرځوي بلکه ثواب ورکول یې فضل دی، نو به څوک یقین نه کوي چي ماته زما د عمل صالح ثواب خدای ﷻ راکوي لان الخاتمة مستورة والعبرة بالخواتم.

**فائده**: د "الذین آمنوا" معنا داده چي دوئ ثبات او دوام پر ایمان وکړي او مرتد نه سي ولي اهل سریه خو مؤمنان وه.

**حکایت**: متعلقة بمغفرة الله تعالی، تاریخ وایي چي یوه ورځ ابو عمر البیکندي رحمه الله چي لوی عالم او صالح سړی و، په یوه کوڅه کي تېرېدی او

اهل د هغې محلې یو ځوان تینګ کړی و چې ددې محلې څخه به وزې چې ته مفسد یې، او یوه سپین سرې ښځه وه هغې ژړل او خلګو ویل چې دا ښځه ددغه ځوان مور ده، نو د ابو عمر پر دغې سپین سرې ښځې باندې زړه وسو، خلګو ته یې وویل چې دا ځوان دا پلا ماته راوبخښئ که بیا هغه معتاد فساد وکړی بیا نو ستاسې اختیار هر څه چې په کوئ، خلګو د ابو عمر شفاعت قبول کړی او ځوان یې خوشې کړی، یو څو ورځې وروسته بیا ابو عمر په هغه کوڅه کې تېرېدی د ځوان له کوره یې ده د مور ژړا واورېدل، نو ده دا خیال سو لکه چې هغه ځوان بیا هغه کار معتاد کړی دی او خلګو له محلې فراره کړی دی، نو دروازه د کور یې ورو ټکول سپین سري ته یې وویل چې ولې ژاړې؟ هغې ورته وویل چې څه وخت چې زما د زوی زکندن سو نو ماته یې وصیت وکړی چې د محلې خلګ به زما په مرګ نه خبروې ولې چې ما دوئ ډېر زهیر کړي دي، او شاید چې زما جنازې ته به نه سي را، او ښراوي به هم کوي، او یوه ګوتمی یې راکړه چې په هغې کې بسم الله الرحمن الرحیم نوشته وه، نو یې وویل چې دغه ګتمی زما سره دفن کړه او موري زما شفاعت وخدای ﷻ ته وکړه او طلب د مغفرت هم زما لپاره وکړه لان الله غفور رحیم، خیر سپین سري ورته وویل چې ما له بله څایه خپلوان راوغوښتل محلې والا مې نه کړه خبر او زوی مې ښخ کړی او وروسته مې خلګ رخصت کړه، ما ورته ویل چې زه زوي ته یو ګړی دعا د مغفرت کوم او طلب د شفاعت یې کوم، وروسته د قبر د سر له خوا نعره وسوه انصرفي یا اماه فلقد قدمت علی رب کریم فغفرني.

ولنعم ماقیل

ببها نمي بخشد وببها نه مي بخشد، اللهم اغفرلي ذنوبي کلها کبائر وصغائر بمثل بهانة الشاب المذکور.

**حکایت**: یو سیاح عارف بالله د سیاحت په دوران کې د جمعې په ورځ یوه جامع مسجد ته ورغلی د جمعې د لمانځه لپاره په هغه جامع مسجد کې یو

عالم وعظ کاوه چې پر سامعینو یې ډېر تاثیر کاوه او زړونه د خلګو یې بېرولـه او تر سترګو د سامعانو بـه اوښکې توېـدلې، او په کمـال توجه بـه سامعانو ددغه امام واعظ او خطیب صائب اورېدلې، او عارف سیاح ته یې هم ډېر خوند ورکړی او د زړه نورانیت یې هم اوج ته د کمـال ورسېدی، خیر عارف سیاح تر څو چې دی په ښار کې ود جمعې لمانځه ته به هغه جامع مسجد ته ورتلی او ورځ پله ورځ به یې مینه او محبت د خطیب واعظ سره زیاتېدی، اخر الامر عارف سیاح خپل سیاحت تـه دوام ورکړی او لـه هغه ښاره ولاړی بلې خواته، یو کـال تېـر سو چې عـارف سیاح بیـا د هغـه واعظ وښار ته راغلی، او په مینه او محبت جامع مسجد تـه ولاړی هغـه خطیب او واعظ خو کما کان وعظ او تبلیغ کاوه لکن هیڅ تاثیر یې پر خلګو نـه کاوه او نه یې د چا ژړا واورېدل او نه یې د چا توجه ولیدل. پخپله سیاح عارف ته هم د تېر کـال جذبه او نورانیت قلبي نه سو حاصل خیر د جمعې لمونځ خو یې وکړی لکن د ځانه سره یې دا فکر وکړی چې دا خطیب واعظ په یوه ګناه کبیره اخته سوی دی، نو وروسته تر لمانځه یې د واعظ خطیب د کور پوښتنـه وکـړه پـه داسې حال کې چې واعظ خطیب پـه جامع مسجد کې د خلګو سره پـه ملاقـات اختـه و، کـور د خطیب یـو چا وروه ښووی نـو عارف سیاح د کور دروازه وروټکول د کور له خوا د ښځې ږغ سو چې څوک دې په کار دی سیاح ورتـه وویـل چې ته د خطیب صاحب څه یې؟ ښځې ورتـه وویـل چې زه یې مـاینه یم نو سیاح ورتـه وویـل چې ستا دې پـه خدای ﷻ قسم وي ماتـه د تېر کـال وروستـه خطیب پـه یـوه کبیـره ګناه اختـه سوی معلومېږي دغیس ده که نه؟ ښځې ورتـه وویـل چې که زه حقیقة الحـال درتـه ووایم تـه بـه وخطیب یعنې زما ومېړه ته ووایې او ما به په غم اختـه کـړې. سیاح سوګند ورسره وکړی چې زه به ستا مېړه پـه تا نـه خبروم، نو ښځې پـه مختصـره توګه ورتـه وویـل چې خطیـب اوس د ماخستـن د لمانځـه وروستـه راسـي د شرابو

بوتل څښي په داسي حال بوتل ومخ ته کښېږدي يو ګړی فکر وهي او وروسته وايي خدايه ته غفور او رحيم يې، نو بوتل پر سر پورته کړي او شراب وڅښي، عارف سياح ورته ووېل چي يو کار وکړه لپاره د خدای ﷻ چي څه وخت چي ستا مېړه شراب پر سر پورته کوي او دا وايي چي خدايه ته غفور او رحيم يې، ته فوراً ورته ووايه چي خدای ﷻ خو غضبان هم دی سياح ورته ووېل چي زه سبا ورځ راسم ته به د خپل مېړه کشف الحال راته وکړې، خير ماښام چي حسب المعتاد د خطيب د شرابو څښلو وخت راغلی او بوتل يې ومخ ته کښېښوی او دا يې ووېل چي خدايه غفور او رحيم يې، ښځي فوراً ورته ووېل چي خدای ﷻ خو غضبان هم دی خطيب چي دا واورېدل بوتل يې له مخکي وواهه شراب يې توی کړه، او ماينې ته يې ووېل چي د کومه وخته چي زه په شرابو اخته سوی يم شيطان زما په زړه او خوله د غفور او رحيم نوم را اچولی دی د غضبان نوم يې مطلقا راڅخه هېر کړی دی. او خای پر خای يې د ښځي د مخه له شراب څښلو څخه توبه وکښل، دا بله ورځ چي سياح د خطيب کور ته ورغلی ماينې د خطيب وراء الحجاب د خطيب ټوله ماجرى ورته بيان کړه، نو دا بله د جمعې ورځ چي سياح د جمعې لمانځه ته ورغلی خطيب يې از سر نو پر پخواني يعني د تېر کال پر ډول وليدی لان من تاب تاب الله عليه، وان التائب من الذنب کمن لا ذنب له حديث صحيح

## يَسۡـَٔلُونَكَ

او صحابه ﷺ سوال کوي له تا څخه اې محمد ﷺ.

**پوه سه**: چي له ابن عباس ﷺ څخه روايت صحيح داسي راغلی دی چي مانه دی ليدلی يو قوم چي خير دي وه تر اصحابو ﷺ د رسول الله ﷺ ولي چي دوئ پوښتنه نه ده کړې له عليه الصلوة والسلام څخه مګر په ديارلس مسئلو کي چي ټولي يې په قرآن مبارک کي خای پر خای ذکر سوي دي چي دغو مسئلو خوابونه ودوئ او و ټولو مسلمانانو ته فائده سوه.

# عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ

د شرابو په باره کي او د قمار په باره کي.

**پوه سه:** چي چونکه "حل" وحرمت او گناه وطاعت لـه عوارضو څخه د افعال د مکلف دی اذ لا اثم ولا ثواب في ذوات الاشياء او خمر او میسر خو ذوات دي، فلابد من حذف مضاف ای تعاطي الخمر والميسر يعني څښل د شرابو او کول د قمار و لفظ التعاطي شامل لها.

**پوه سه:** چي د "تعاطي" معنا عامه ده نو شرب الخمر او بيع وشراء او جوړولوته د شرابو هم شامله ده، نو د تعاطي معنا تصرف دی په شي کي پر خلاف د امر د شرعي شريفي.

**فائده:** د خمر لفظ مصدر دی لـه خمره ای ستره شراب چي خمر بولي لـه دي سببه چي عقل پټوي او ادراک انساني سلبوي، حتی چي يو سړي چي شراب يې څښلي وه او د سکر چاپه پر راغلې وه، بولو نيولی و، نو بولي يې کولې او لاسونه يې ورته نيولي وه لکه سړی چي اودس تازه کوي او خپلي بولي به يې پر مخ واچولې او داسي به يې ويل الحمد لله الذي جعل الاسلام نورا والماء طهوراً يعني سلب عنه الفرق بين الماء الطهور والبول الجنس

**پوه سه:** چي ماهيت د خمر په نبز د حنيفيه رحمهم الله هغه نبټبخلي اوبه دي د انگورو چي په منگي يا بـل ظرف کي واچول سي او په مرور د څو ورځو پخپله وه ايشېږي او ځک د منگي پر خوله را توی سي او اوبه خټه سي

**مسئله:** دغه شراب نجاست غليظه دي او يو څاڅکی که څه هم سکر نه راولي حرام دی لکه پوره بوتل چي سکر راولي، وقياس الخمر في الزمان الحاضر المسکر المسمی به (هيروئين) نو ددي هيروئينو جوړول او خرڅول هم حرام دي او د تجارت روپۍ يې مرداري دي.

**پوه سه:** چي ميسر مصدر ميمي دی يقال يسرته اذا قمرته. او مشتق د يسر دی چي معنا يې آساني ده ولي چي په قمار کي خو چي وه يې گټهي روپۍ به

اساني سره لاس ته ورځي بېله مشقته، او يا مشتق له يسار څخه دی چي معنا يې غناء ده ولي چي قمار سلب د غنی د سړي راولي يعني چي بايلي، او په قمار کي ټول اقسام د قمار داخل دي. که سپي سره جنګوي په قمار: يا کرکان جنګوي په قمار، يا اسپ دواني سره کوي په قمار، او يا زرکي سره جنګوي په قمار يا هګی. سره جنګوي په قمار، او يا شطرنج يا قطار چي نرد يې بولي سره کوي وعلی هذا سائر انواع القمار يعني هغه چي ګټل د روپو او بايلل د روپو پکښې وي، او هغه شی چي قمار وګټل سي هغه مردار دی.

## قُلْ فِيهِمَآ إِثْمٌ كَبِيرٌ وَمَنَٰفِعُ لِلنَّاسِ

ته ورته ووايه چي په شرابو کي او په قمار کي لويه ګناه سته او منافع د خلګو هم پکښې سته، اما الخمر فالاثم الکبير فيها انها مسلبة للعقول التي هي قطب الدين والدنيا وعلى العقول مدار القرب الى الله مع كون كل واحد من الخمر والميسر متلفة للاموال، او د شرابو منافع هضم د خوړلو دي او د قوة باه يعني د جماعو طاقت زياتوي، او کوم څوک چي غم جن وي غم يې سپکوي او بې زړه سړی دلاوره کوي، او رنګ د مخ او بدن صافوي، او منافع د قمار ګټل د روپو په اساني سره، او د عربو د جاهليت په اصطلاح چي څو کسانو به په شراکت اوښ رانيوی او ذبح به يې کړی غوښي به يې کوتي کوتي کړې او بيا به يې قمار پر وکړی هر چا چي به څه غوښي وګټلې هغه به يې فقراء او مساکينو ته ورکولې، واقدي ﷺ وايي چي داسي ګاهي پېښه سوه چي يو سړي په قمار کي سل اوښان وګټل او ټول يې پر محتاجانو وويشل لپاره د نامه او رياء.

## وَإِثْمُهُمَآ أَكْبَرُ مِن نَّفْعِهِمَا

او ګناه د شرابو د څښلو او د قمار د کولو لويه ده تر نفع د دوی، اما اثم الخمر فهو ايقاع البغض والعداوة والقتال والضرب بالنعال بادنى كلام

وقت السکر کما سیناتي، او له ذکره څخه د خدای ﷻ او له لمانځه څخه چي معراج المؤمنین دی سرې پاسي، او هوښیار سړی بېعقل کوي حتی چي شارب الخمر حین ماسکر په پخپلو بولو او غلو او في بازی کوي، کمامر عنقریب واما اثم المیسر، دادی چي هر سړی چي په قمار مال بایللي باره سوختي سي د هغه بل سړي پر ادنیٰ خبره جنګ کوي، او نعوذبالله من ذالک وخدای ﷻ ته ښکنځل کوي، او نور د کفر الفاظ یې تر خوله وزي

**فائده**: علامه برسوي ﷫ وایي چي مفسرین رح وایي چي په خمرو کي څلور آیته نازل سوي دي، اول ایت نزل بمکة ﴿ومن ثمرات النخیل والاعناب تتخذون منه سکرا﴾ یعني خمرا ورزقا حسنا ای بالتجارة فیه. نو مسلمانانو څښل وهي حلال لهم یومئذ، ثم ان عمر ومعاذا ونفرا من الصحابة ﷺ په مدینه منوره کي پوښتنه وکړه له علیه الصلوة والسلام څخه او دوئ وویل چي موږ ته فتوی راکړه په حق کي د خمرو فانها مذهبة للعقل فنزلت ﴿ویسئلونک عن الخمر والمیسر الآیة﴾ نو بعضو صحابه وو وڅښل او وه یې ویل چي موږ منفعت پر اخلو او ګناه چي په خمرو کي سته هغه به نه کوو، او بعضو صحابه وو بالکلیة پرېښوول، وقالوا لاحاجة لنا فیما في اثم کبیر، وروسته عبدالرحمن بن عوف یوه مهماني جوړه کړې وه چي په هغه مهماني کي ګڼ شمېر صحابه ﷺ دعوت کړي وه نو وروسته تر ډوډۍ خوړلو یې شراب نوشي هم وکړه، او چي نشه سوله د ماښام په لمانځه کي یې یو صحابي دمخه کړی هغه په لمانځه کي د قرآئت الفاتحة وروسته داسي قرائت ووایه ﴿قل یا ایها اعبد ما تعبدون﴾ الی اخیر السورة یعني په حذف د لا، نو دا آیت نازل سو ﴿لاتقربوا الصلوة وانتم سکاری﴾ نو ددې آیت په نازلېدو سره شاربین د خمرو ډېر لږ سوه بلکه بعض صحابه وو یکلخته پرېښول او دوئ به وویله چي په شي کي خیر نسته چي زموږ او د لمانځه تر منځ حائل ګرځي او هغه خلګو چي څښل به یې هغو هم د لمونځو په نژدې وخت کي نه سوای څښلای، بلکه د ماخستن تر لمانځه وروسته به

يې خښل چې د سهار تر لمانځه پورې به يې نشه او سکر ختم کېدی، او يا به يې د سهار تر لمانځه وروسته څښل چې تر ماپښينه به يې نشه ولاړه.
وروسته بيا عتبان بن مالک ﷺ يوه مېلمستيا جوړه کړې وه او څو کسه د صحابه کرامو ﷺ يې په هغه کې دعوت کړي وه، چې په مېلمنو کې سعد بن ابي وقاص هم و او د اوښ د سر غوښې يې وربانديې کړي وې، نو ډوډی چې يې وخوړله شراب نوشي شروع سوه حتی چې حالت د نشې او سکر پر راغلی باره فخر بالآباء والاجداد شروع سو او غزلې او اشعار هم شروع سوه، نو سعد ﷺ يوه قصيده وويل چې په هغه کې ذم او هجو د انصارو وه او فخر د خپل قوم و، نو يو انصاري چې په حال کې د سکر و د اوښ ګرغښې يې راواخستی او سعد ﷺ يې پر دا سر په وواهه او سر يې سخت مات سو، نو سعد رسول الله ﷺ ته ورغلی او شکايت د انصاري يې ورته وکړی، او عمر ﷺ په مجلس کې د شکايت د آنحضرت ﷺ په حضور کې موجود و، نو عمر وويل اللهم بين لنا في الخمر بيانا شافيا" نو دا آيت چې په سورت مائده کې دی ﴿انما الخمر والميسر الى قوله فهل انتم منتهون﴾ فقال عمر ﷺ انتهينا يارب.

**فائده:** د شرابو قطعي حرمت په دريم کال د هجرت نازل سو، تر غزوة الاحزاب يو څو ورځې وروسته.

**فائده:** قفال ﷫ چې حکمت الهي په تدريج او کرار کرار حرامولو کې د شرابو دا و چې عربو د شرابو سره ډېر الفت درلودی او ډېرې منافع تجارتي يې هم پکښې درلودې، نو که خدای ﷻ يو دم يکلخته حرام کړي وايي نو پر مسلمانانو به ډېره سخته پرېوتلې وايي، نو خدای ﷻ رفقابهم دا تدريج استعمال کړی.

**درويش وايي:** چې په تداوي بالخمر وغيره کې من المحرمات کې اختلاف شهير دی وفي کتب الفقه مذکور دي لکن دا خبره ضروري ده که تداوي بالمحرم متيقن يا مظنون وه خو روا ده لقول تعالى ﴿الا ما اضطررتم اليه﴾ وقال في موضع آخر ﴿فمن اضطر غير باغ﴾ يعني على مضطر آخر

ولاعاد (سد الرمق) فلااثم عليه﴾ فمن غص بلقمة ولم يجد غير الخمر جازله ان يسقيها للتيقن بالخلاص من هذا الغص بالخمر عند ابي حنيفه والشافعي و احمدرح

**مسئله:** هل يجوز التداوي بالخمر فقال ابو حنيفة ومالک واحمد رح لايجوز وبه قال الشافعي رحمه الله في اصح قوليه اكذا في المظهري جزء سيقول ص (۲۷۱) ونقل المظهري عن صاحب الهداية في تلك الصفحة انه كره شرب دردي الخمر لان فيه اجزاء الخمر آه.

**درویش وايي:** چي په مانقل عن صاحب الهداية في التجنيس لو رعف فكتب الفاتحة بالدم على جبهته وانفه جاز للاستشفاء وبالبول ايضا ان علم فيه شفاء لاباس به انتهى، وكذا مانقل عن ابو بكر الاسكاف رحمه الله في جواز شيئا من القرآن بالدم ورعاف وكذالک بالبول ان كان فيه شعاء ففيها نظر.

**درویش وايي:** چي دا دواړه له منقول او معقوله څخه خلاف دي لان الدم نجس وكذا البول خصوصا بول الآدمي وكتابة القرآن او شيئا منه بالانجاس ان لم يكن كفرا لمكان الاختلاف فلايخلو عن كونه كبيرة، وقول صاحب الهداية رحمه الله ان علم فيه سفاء آه من قبيل قولهم ان كان زيد حمارا فهو ناهق لان العلم وان كان يعم المظنون، لكن في كتابة الفاتحة وغيرها من القرآن بالدم والبول لي فيه ظن الشفاء فضلا عن العلم به ولعل هذا الاستشفاء نقله بعض اهل التعاويز من اليهود ويدل على حرمة كتابة القرآن من الفاتحة وغيرها مافي الحاوي القدسي ان سال الدم عن انف انسان ولايقطع حتى يخشى عليه الموت وقد علم انه لو كتت الفاتحة او سورة الاخلاص بذالك الدم على جبهته ينقطع لايرخص له فيه وماقيل انه يرخص فيه كمارخص في شرب الخمر للعطشان واكل الميتة في حال المخمصة على مانص به القرآن آه قياس مع الفارق لان الشرب الخمر في حال العطش الذي خاف منه الموت حالة الاضطرار والخلاص منه بشرب الخمر متيقن، وكذا اكل الميتة في حال المخمصة الخلاص من المخمصة متيقن، كيف يقاس عليها تلك

الكتابة بالدم والبول للقرآن لان الشفاء بها لامتيقن ولا مظنون بل موهوم بل كذب بحت، ومن اجل امثال قول الفقهاء اجترء اهل التعاويز على كتابة الفاتحة وغيرها بدم الخفاش وغيره والى الله المشتكى.

**درويش وايي:** چي دغه اقوال د فقهاؤ رح زما گران دوست مدرس العلوم العقلية والنقلية ماهر علم الفقة المولوي محمد اسمعيل الحاج القندهاري ماته را استولي وه چي د قرآن په يو مناسب ځای کي د تفسير ايوبي يې درج کړه او خپله عقيده يې په دې باب کي ښکاره کړه.

**درويش وايي:** چي ما دغه اقوال چي مطالعه کول "قف شعري على جسدي" هم دا وه د درويش عقيده په دغو دوو مسئلو کي والله المستعان وان شئت غاية التحقيق في امثال هذه المسائل فطالع التفسير المظهري من جزء سيقول في تفسير قوله تعالى ويسئلونک عن الخمر الى اخير الآية، ونقل كل مافيه من المسائل يضيق عنه نطاق هذه التفسير.

روى ان جبرائيل عليه السلام و آنحضرت ﷺ ته وويل ان الله تعالى شكر لجعفر الطيار رضی الله عنه څلور خويه چي په ده کي ستة او دی په جاهليت کي هم پر دغو خويو وو، او په اسلام کي هم پر هغو خويو دی، نو نبي عليه السلام د جعفر رضی الله عنه د هغو څلورو خويو پوښتنه وکړه، نو جعفر رضی الله عنه ورته وويل که خدای جل جلاله ته نه وايي خبر کړی مابه هغه خويونه تاته نه وايي ويلي يعني لخوف الرياء. يو خوی زما دادی چي مانه په جاهليت کي او نه په اسلام کي شراب څښلي دي ولي چي شراب مزيل د عقل دي، او زه د عقل وقوت او زيادت ته ډير محتاجه يم، او بل ما د بت عبادت نه دی کړی، ولي چي زه په دې پوهېږم چي بت ماته نفع نه سي رسولای او نه دفع د ضرر راڅخه کولای سي، او ما هيڅ وخت زناء نه ده کړې لغيرتي على اهلي، او ما درواغ هيڅ کله نه دي ويلي لاني رئيته دنائة.

وَيَسْـَٔلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَ ۖ قُلِ الْعَفْوَ

او صحابه له تاڅخه پوښتنه کوي چي مونږ څه شی خاته ورکوو.

**پوه سه**: چي بعض مفسران رح وايي دا سوال د جنس د منفق دی يعني خلگو ته ډوډی. ورکوو يا نقدي روپۍ ورکوو وغيره، او بعض وايي چي دا سوال له مقدار څخه د منفق دی يعني څومره اندازه شی ورکوو. ولي هغه آيت چي نازل سو ﴿قل ماانفقتم من خير آه﴾ نو عمر بن الجموع ﷺ وويل چي په څه اندازه مال خلگو ته ورکوو او يا له کومه جنسه د مال يې ورکوو، نو خدای ﷻ وعليه السلام ته وويل چي ته ورته ووايه چي هغه شی نفقه کوئ چي تاسي ته آسانه وي يعني از روئ جنس او از روئ مقدار چي هغه مال دی چي زائد تر ده او دده تر عيال وي.

**پوه سه**: چي د اعراب له لاري بعض قراء لفظ د عفو منصوب وايي والتقدير انفقوا العفو، او بعض قراء يې مرفوع وايي والتقدير الذي ينفقونه هوالعفو

**پوه سه**: چي صحابه کسب المال کاوه نو په قدر د نفقې به يې ساتی او بالابود به يې خيراتوی بحكم هذه الآية.

او بعض مفسران وايي چي دا آيت په باره کي د زکوة دی يعني نصاب د مال د زکوة به فاضل وي تر حاجت اصلي د صاحب المال کالدين والمسکن واثاث البيت والخادم وفرس الركوب الى غير مابين في کتب الفقه او اکثر مفسران رح پر دې دي چي د سائلانو غرض سوال د نفقه نافلې و، نو پر دې تقدير حاصل د جواب دادی چي افضل د صدقه نافلې دادی چي عن ظهر غني وي، وذهب اليه مجاهد دليل يې دادی که ظهر غني نه وي نو دا سړی به وروسته په پخپله وسوال ته مجبوره وي ويکون کلا على الناس، او عمر بن دينار وايي چي نه به سړی اسراف کوي او نه به ډېر تېنگوالی کوي قال الله تعالى ﴿والذين اذا انفقوا لم يسرفوا ولم يقتروا﴾ الآية او د ابو هريره ﷺ څخه روايت دی ﴿قال قال رسول الله ﷺ خير الصدقة ماكان عن ظهر غنى وابدء بمن تعول﴾ رواه البخاري وابو داؤد والنسائي کذا في المظهري.

**درویش وایي**: چي تصدق په ټوله مال او يا په بعض مال يعني الفاضل عن الحاجة يختلف باختلاف المتصدقين ويدل ماروی عن عمر بن الخطاب ﷺ

چې موږ علیه الصلوة والسلام امر کړو په تصدق سره یعني نفلي دی وایي چې زه په دغه وخت کې صاحب د مال وم نو زما په زړه کې دا وه چې که چېرې تایو وخت سبقت پر ابو بکر په تصدق کې کاوه نن ورځ به یې کوم، نو کور ته ولاړم نو تولو اموال مې نیمی کړه، نیمی مې کور پرېښول او نیمی مې علیه الصلوة والسلام ته راوړه، چونکه علیه السلام زما راوړي اموال ډېر ولیدل نو یې ماته داسې وویل ما ابقیت لأهلک یا عمر. فقلت نصف مالي یا رسول الله ﷺ، وروسته ابوبکر هم ډېر مختلف نوع اموال راوړه، نو هغه ته علیه الصلوة والسلام وویل ما ابقیت لاهلک، قال ابوبکر ﷺ الله ورسوله، عمر ﷺ وایي چې زه به همېشه ستا سره سیالي نه کوم ای ابوبکر ﷺ، روایت دی چې په دغه وخت کې علیه الصلوة والسلام داسې وویل ما بینکما مابین کلامکما، نو حاصل دادی که سړي داسې وي چې تولو مال خیرات کې او بیا پر خلګو سوال کوي او صبر پر فقر نه سي کولای نو هغه تصدق په تولو مال نه دی روا، او که سړي پر فاقه کشي صبر کولایي سوایي او له حقوق الناس څخه دده پر ذمه یو شی نه و، یعني الدین ونفقة العیال والخادم، نو هغه ته تصدق په تولو مال روا دی وذالک لان حقوق الناس فریضة والتصدق بکل المال نافلة والعمل الفرض اولی من النفل کما لایخفی. ولهذا قال سید الصابرین رسول رب العلمین ﷺ علی ماروی عن ابي هریرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ لوکان لي مثل احد ذهبا لسرني ان لایمر علي ثلاث لیال وعندي منه شیئ الاشیئ ارصده لدین، رواه البخاري

**درویش وایي:** چې رسول کریم ﷺ پر ابو بکر ﷺ باندې راوړل د تولو مال رد نه کړه ولې چې صبر او ثبات پر فاقه کښي باندې دده او د اهل بیت دده ﷺ ورته معلومېده. لکن په روایت کې د جابر ﷺ راغلي دي چې یو سړی وعلیه الصلوة والسلام ته یو هګی. مانندہ شی د سرو زرو راوړی چې ده ته په بعض مغازي یا غنائم کې په لاس ورغلی و. فقال خذها مني صدقة فوالله لقد اصبحت ما املک غیرها فاعرض عنه رسول الله ﷺ فاتاه من

الجانب الایمن فقال مثله فاعرض عنه ثم جاء من الجانب الایسر فقال رسول الله ﷺ هاتها (یعني رایې کړه) او په غضب یې ورته وویل، نو علیه السلام هغه بیضه خندي واخستل او هغه سړی یې په وویشتی نو خندي خطا سوه او که پر مبنتې وايي نو هغه سړی به یې تپي کړی وایي، وروسته رسول الله ﷺ وویل ﴿یجیئ احدکم بماله کله یتصدق به ویجلس یتکفف الناس انما الصدقة عن ظهر غنی خذها فلاحاجة لي فیها﴾

**درویش وایي**: چي دا روایت د روح البیان دی، او مظهري په نورو الفاظو سره روایت کړی دی، او تر روایت د روح البیان ډېر مختصر دی او په بعضو الفاظو کي ورسره موافق دی لکن حاصل د دواړو روایتونو یو دی نو شاید یوه به روایت باللفظ کړی وي او بل به روایت بالمعنی کړی وي، یعني حاصل د روایت به یې بیان کړی وي، لکن دومره تفاوت په روایت بالمعنی په احادیثو مبارکه وو کي نادر دی، والله اعلم بالصواب.

حسین الکاشفي رحمه الله په تفسیر حسني کي وايي:

مایه توفیق کرم کردن است — گنج یقین ترک درم کردن است
زاد ره مرگ زنان دادنست — زندگي عشق زجان دادن است

یعني سخاوت العوام بذل المال وسخاوة الخواص بذل الارواح، وقلیل ماهم

﴿كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُوْنَ ۝٢١٩ فِى الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ﴾

او هم دغسې بیانوي خدای ﷻ وتاسي ته آیات لپاره ددې چي تاسي فکر ووهئ په دنیا او اخرت کي.

**پوه سه**: چي بیضاوي وايي ای مثل مابین یعني في الآیة السابقة چي عفوه مال صدقه کول بهتر دی تر تکلیف کولو په صدقه کي او یا تولو هغه احکام چي دمخه تېر سوه.

**الاعراب**: کاف په معنا د مثل دی او محل یې نصب دی ولي چي صفت د مصدر محذوف دی، ای تبینا مثل ذالک التبیین یبین الله آه.

**سوال:** په علم النحو کې وايي که مخاطب په اسم اشاره سره يو نفر وي نو ذالک بالافراد للکاف بې وايي، او که مخاطب دوه کسان وه نو ذالکما به بې وايي په تثنيه سره، او که يې مخاطب جمع وه ذالکم بې وايي او په دې آيت کې مخاطبين ټوله انسانان دي نو ولې کاف مفرد ذکر سو؟

**ځواب:** ددې سوال په ځواب کې بيضاوي او روح البيان او روح المعاني داسې وايي چې افراد د علامه د خطاب په اعتبار د تاويل د مخاطبين دی په قبيل سره چې لفظا مفرد دی او معنا جمع دی، نو خدای ﷻ وايي چې بايد او شايد تاسې به د عقل سليم څخه کار واخلئ په دلائلو او احکامو کې د خدای ﷻ په دنيايي امورو کې او په اخروي امورو کې. نو هغه شی مختاره کړی چې تاسې ته انفع او اصلح وي، او پرهيز وکړ وکړئ له هغو کارو څخه چې ياخالص ضرر وي لکه شرک او زنا وغيرهما او يا ضرر تر نفع ډېروي کما في الخمر والميسر کمامر.

**تبصره:** د ابن مسعود ﷺ څخه روايت دی چې رسول کريم ﷺ پر بوريا پربوتی چې د بوريا تارو يې پر بغل مبارک تاثير کړی و. نو موږ ورته وويل چې موږ به تاته يو پوست فراش اوارووو. نو عليه الصلوة والسلام راته وويل مالي وللدنيا ما انا والدنيا الا کراکب استظل تحت شجرة ثم راح وترکها. رواه احمد والترمذي وابن ماجه.

**درويش وايي:** که څوک تفصيل د عيش او ژوند د عليه الصلوة والسلام غواړي نو شمائل د ترمذي دې تر پايه پورې په غور سره مطالعه کړي. وايضا کتب الاحاديث المبارکة مملوة في مواضع ببيان عيش حيواته ﷺ الى يوم وفاته ﷺ.

وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ الْيَتٰمٰى ۖ قُلْ اِصْلَاحٌ لَّهُمْ خَيْرٌ ۖ وَاِنْ تُخَالِطُوْهُمْ فَاِخْوَانُكُمْ ۚ

او صحابه ﷺ له تا څخه سوال کوي په باره کې د يتيمانو چې موږ جلا ډوډی ورکوو او که له خانه سره ډوډی د يتيمانو ګډه کړو ته ورته ووايه چې

هره خوا چې د یتیمانو خیر وي هغه ښه کار دی وه یې کړئ نو که په جلا والي کې ددوئ خیر وو، نو کوزه او خواړه ورجلا کړئ، او که تاسي دوړی ددوئ د خپلې ډوډۍ یعني په دغه ګډون کې ددوئ خې وینئ، نو خو دوئ ستاسي وروڼه دي یعني په دین کې او په نسب کې نو وروڼه خو یو له بله سره کومک کوي او یو د بل مال په وجه د اصلاح خوري.

**پوه سه:** چې شان نزول ددې آیت مفسرینو رح په ګډه داسي بیان کړی دی په روایت د ابن عباس ﷺ چې دا روایت ابو داؤد، نسائي او حاکم راوړی دی اومحدیثنو صحیح هم ګڼلی دی چې څه وخت چې دا آیت نازل سو ﴿ولاتقربوا مال الیتیم الا بالتي هي احسن﴾ او بیا دا آیت هم نازل سو ﴿ان الذین یاکلون اموال الیتامی ظلما﴾ الی آخیرها، نو مسلمانان د عصر نبوي کارونو د یتیمانو ډېر د جرح سره مخامخ کړه حتی چې د چا په کور کې به یتیم و، د هغه کوزه وکاسه و ډوډۍ به یې تبوله ورجلا کړه، نو ګاهي ګاهي چې په له یتیم څخه ډوډۍ زیاتي سوه نو چا بـه نـه خوړلـه هغه طعام بـه اخیر فاسد سو، نو عبدالله بن روحه ﷺ وعلیه الصلوة والسلام ته وویل یا رسول الله ﷺ مونږ تبوله مسلمانان خو دومره خوني نه لرو چې یتیم ته جلا خونه ورکړو وهکذا الطعام والشراب. فنزلت هذه الآیة.

**فائده:** دا آیت په باره کې د هغو یتیمانو دی چې خپل موروثي باغ او مځکه لري وغیره نقود لري، او که چېري یتیم داسي وو چې خپل مراثي هیڅ شی یې نه درلودی او د کور خاوند اکا وغیره مفت په خپله ډوډۍ ساتی په هغه یتیم کې خو د نهي د مخالطت في الطعام والشراب سوال نه پیدا کېږي نو څکه ابن عباس ﷺ په تفسیر کې ددې آیت داسي وایي مخالطت دادی چې د یتیم د باغ مېوه خوري او دده د غوا وغیره شیدې خوري او دده په کاسه کې ډوډۍ خوري او د یتیم د باغ مېوه خوري وهکذا الطعام والقصعة.

**پوښتنه:** که یتیم موروثي باغ او مځکه وغیره درلوده او دده اکا مثلا مسکین و، نو که یې دده باغ او مځکه روزلای د بل چا د مزدورۍ څخه

وتی، نو دا سړی به څه کوي؟

**ځواب:** ددې حکم خدای پاک په قرآن کریم کې داسي بیان کړی دی ﴿ومن کان غنیا فلیستعفف ومن کان فقیراً فلیاکل بالمعروف﴾ یعني که څوک غني وي د یتیم له باغه دې مثلا خوراک نه کوي یعني مزدوري دې نه ځندي اخلي بلکه مفت صلةً للقرابة دې باغ وغیره وروزي، او که څوک یعني مربي الیتیم مسکین وی نو له مال څخه د یتیم دې خوراک کوي او مزدوري دې ځندي اخلي په هغه طریقه چې په خلګو کې رواج وي.

**مسئله:** پر اکل د مال یتیم عند فقر المربي ومخالطة الیتیم في الاکل والشرب، قیاس ده مسئله د شراکت د اندیوالانو مثلا یو څوکسه په سفر یا بوې مبلې ته تله او اندازه د روپو یې بالسویه سره واچول، نو دا اندیوالان یو ډېره ډوډی او لږ ډوډی خوري، او یا یو مریض وي ډوډی ته یې اشتهاء نه کېږي الی غیر ذالک، نو په دې شراکت کې کوم حرج نسته بلکه په طریق اولی حرج نسته ولې دا ملګري خو احرار بالغین دي.

وَاللّٰهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ

او خدای ﷻ خبر دی په هغه چا چې مال د یتیم د خپله ماله سره ګډوي پر طریقه د فساد یعني د یتیم مال په ناحقه وخوري او په هغه سړي چې مخالفت یې لپاره د اصلاح الیتیم وي، له حسن بصري رحمه الله څخه چې به چا پوښتنه وکړه په باره کې د مال الیتیم، ده مبارک به دغه آیت ورته تلاوت کړی ﴿والله یعلم المفسد من المصلح﴾ د حسن بصري رحمه الله مطلب داو، چې د عالم وپوښتني ته څه ضرورت نسته ته وخپل زړه ته رجوع وکړه چې ستا په اکل د مال د یتیم څه غرض دی.

وَلَوْ شَاءَ اللّٰهُ لَاَعْنَتَكُمْ ۚ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۲۰﴾

او که د خدای ﷻ اراده وایی نو تاسي به یې په عنت یعني مشقت کې اچولي وایی یعني مخالطة د یتیمانو به یې تاسي ته نه مباح کولای، لکن

خدای ﷻ ستاسي تخفیف وکړی چي مخالطة د یتیمانو یې وتاسي ته روا کړی چي پر وجه د اصلاح وي رحمة علیکم او په تحقیق خدای ﷻ غالب دی یعني هرڅه چي یې مشیت وي هغه کار کولای سي. او حکیم دی یعني هر کار د خدای ﷻ د حکمت او فائدې څخه خالي نه دی.

**پوه سه:** چي مفعول د "شاء" محذوف دی چي جواب دلالت پر کوي یعني لوشاء الله اعناتکم.

**پوه سه:** چي په حدیث صحیح کي راغلي دي علیه الصلوة والسلام وایي ﴿انا وکافل الیتیم کهاتین في الجنة﴾

**پوه سه:** چي مراد په دې حدیث کي د کافل الیتیم څخه هغه سړی دی چي په مصالحو کي د یتیم اخته وي، سواء کان من مال نفسه او من مال الیتیم سواء کان الیتیم قریبا له او اجنبیاً. او په حدیث کي راغلي دي چي خدای ﷻ وموسیٰ ؑ ته وویل چي گذاره کوه له یتیم سره لکه مهربانه پلار، او له کونډیانو سره همکاري کوه لکه مهربانه میړه، او اوسه مسافر لره لکه مهربانه ورور، خدای ﷻ وایي زه به ستاسره داسي سم، او علیه السلام په هاتینو سره اشاره د منځ د گوتي وسبابه ته وکړه.

**پوه سه:** چي مراد له معیت څخه د علیه السلام د کافل الیتیم معیت مکاني مراد دی، نه معیت د مرتبې او درجې، حافظ شیرازي وایي

تیمار غریبان سبب ذکر جمیلست　　　جانا مگر دین قاعده درشهر تمایست

قال السعدي شیرازي

چوبیني یتمي سرافگنده پیش　　　مده بوسه بر روی فرزند خویش
الا تا نگیرد که عرش عظیم　　　بلرزد همي چون بگیرد یتیم

وفي الحدیث النبوي ﷺ من وضع یده علی راس یتیم ترحما علیه کانت له بکل شعرة تمر علیها یده حسنة. قالوا المخالطة والترحم علی الایتام من مساوات الاخلاق لسادات الانام وفیه فوائد کثیرة جلب رحمة الله وتکثیر الرزق ورقة القلب الی غیر ذالک من الفوائد.

**مسئله:** يتيم كه د چا سره وي بايد داسي ادب او تعليم ورته كوي لكه
خپل زوئ ته چي ادب او تعليم كوي.

**درويش وايي:** چي طبائع د انسانانو مختلفو دي. بعض انسانان په لطف
او نرمي سره ادب زدكوي، او بعض انسانان په تريو تندي او د خولې په
سختو الفاظو سره ادب زدكوي او بعض انسانان په ضرب وكوب سره ادب
زدكوي، نو په هره نوع چي ادب د يتيم مربي لازم وه باله په هغه قسم سره
په ادب وركوي، او خداى ﷻ له مربي څخه د يتيم د تربية التعليم پوښتنه
كوي ولهذا قال رسول الله ﷺ كلكم راع وكلكم مسئول عن رعيته آه بخاري

وَلَا تَنكِحُوا الْمُشْرِكَٰتِ حَتَّىٰ يُؤْمِنَّ ۚ
وَلَأَمَةٌ مُّؤْمِنَةٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكَةٍ وَلَوْ أَعْجَبَتْكُمْ

او تاسي مه نكاح كوئ مشركات ښځي تر هغو چي دوئ ايمان راوړي، او
په تحقيق مينځه چي مؤمنه وي ښه ده د نكاح كولو لپاره تر مشركي ښځي
يعني كه څه هم حره وي، كه څه هم دې مشركي ښځي په تعجب كي اچولي
ياست تاسي، يعني په اعتبار د ښائيست.

**پوه سه:** چي شان نزول ددې آيت دا و چي عليه الصلوة والسلام مرثد
الغنوي ﷺ مكې ته واستوى چي له مكې څخه بعض مسلمانان چي په مكه
كي پاته دي په پټه له مكې څخه راوباسه. نو يوه ښځه چي نوم يې عناق و
چي مرثد غنوي له هغې سره عشق درلودى ورته راغله او د خلوت د زنا
دعوت يې وركړى، يعني لكه د جاهليت په زمانه كي، نو مرثد ﷺ ورته
وويل چي اسلام زما مانع دى د خلوت د جاهليت، نو هغې ورته وويل چي
ته ما نه په نكاح كوې، مرثد ورته وويل چي په نكاح كوم خو دي. لكن په
دې باره كي زه د عليه الصلوة والسلام سره مشوره كوم، نو مرثد چي دا
موضوع وعليه الصلوة والسلام ته پېش كړه نو دا آيت نازل سو.

**پوه سه**: چي مظهري تبعا للبيضاوي تفسير د "امة" په مطلق ښځې سره کړی دی او داسي يې ويلي دي چي انسانان ټوله عبادالله دي يعني نر يې او اماء الله يعني ښځي يې، او روح البيان تفسير د "امة" په مينځه سره کړی دی حيث قال مع مابها من خساسة الرق، او تفسير روح المعاني په سلسله طويل بحث يې دا ويلي دي والحق ان الامة بمعنى الرقيقة کما هو المتبادر آه، او بيا د مخه سوالونه چي ده روازي وه د هغو يې جوابونه ورکړي دي فارجع الى تفسير روح المعاني.

**درويش وايي**: چي زما په عقيده رائيه د روح البيان او روح المعاني ډيره په زړه پوري ده.

**الاعراب**: کلمه د واو په ولو کي لپاره د حال ده د حاليت معنا يې داده چي دا کلمه معطوف پر يو محذوف ده چي هغه حال دی، والتقدير خير من مشرکة على کل حال ولو في هذه الحالة اى حالة الاعجاب آه، او بيضاوي ﷫ تبعا للزمخشري صاحب الکشاف داسي وايي و الواو للحال ولو بمعنى ان او "ان" لپاره د مجرد فرض دی د شرط نه دی ځکه جزاء ته ضرورت نه لري، والتقدير مفروضا اعجابها لکم بالحسن والشمائل آه، او په تفسير کواشي کي وايي چي لو په معنا د ان شرطي دی والجواب مقدم والمعنى وان کانت المشرکة تعجبکم وتحبونها فان الامة المومنة خير لکم او تفيسر روح المعاني هم رايه د کواشي مختاره کړې ده حيث قال جواب لشرط محذوف دل عليه الجملة السابقة، او امام جرمي ﷫ وايي چي دا واو عاطفه دی او معطوف عليه مقدر دی اى لو لم تعجبکم ولو اعجبتکم

**پوه سه**: چي نکاح د کتابياتو ښځو يعني يهودية او نصرانية روا ده لقوله تعالى ﴿والمحصنت من الذين اوتوا الکتاب من قبلکم﴾ الآية.

**پوښتنه**: يهوديان خو عزير ابن الله بولي او نصارى عيسى ﷺ ابن الله بولي نو دوئ مشرکان نه دي؟

**ځواب**: مراد په آیت کي، معنا متعارفه د مشرک ده چي یا د بت عبادت کوي یا د ملکو یا د ستورو وغیره یهود او نصاری خو داغسي نه دي، حاصل دا چي حکمي مشرک نه دي پکښي داخل.

**درویش وايي**: فلاحاجة الی ماقال المظهري وهذه الآیة منسوخة في حق الکتابیات آه لانها غیر داخلة في المشرکات کمامر.

**فائده**: له ابن عباس ﷺ څخه ابن مالک روایت کړی دی چي یوه مینځه د عبدالله بن رواحة ﷺ چي په رنګ توره وه، نو یوه ورځ عبدالله ابن رواحه ته درد ورغلی او مینځه یې پر مخ په چپلاخه ووهل وروسته دی پښېمانه سو نو علیه الصلوة والسلام ته یې موضوع د وهلو د خپلي مینځي بیان کړه، نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي په مینځه کي دي څه خویونه سته، عبدالله ورته وویل هي تشهد ان لا اله الا الله وانک رسول الله. وتصوم رمضان، وتحسن الوضوء، وتصلی، فقال علیه السلام هذه مؤمنة، نو عبدالله ابن رواحه ﷺ ورته وویل چي زه دا مینځه ازادوم، او بیا یې په نکاح کوم، او داغسي یې هم وکړه، نو بعض مسلمانانو ده ته پیغور ورکړی او دا یې ورته وویله چي تاځرنګه مینځه په نکاح کوله، او دوئ یوه حره مشرکه ښځه وده ته پېش کړه، فانزل الله هذه الآیة.

**مسئله**: درویش وايي که څه هم نکاح د کتابیاتو روا ده لکن لاخیر فیه لان اختلاف الدین یذهب ببعض لوازم الزوجیة کما لایخفی.

**مسئله**: یوه ښځه چي تقوی داره وي او اخلاق حسنه لري که څه هم فقیره وي او په رنګ بدرنګه وي بهتره ده تر فاسقه ښځي که څه هم مسلمانه وي او غني هم وي او ښائسته هم وي، وبهذه المسئلة تاکد المسئلة السابقة لما روی عن ابي هریره قال قال رسول الله ﷺ تنکح المرئة لاربع لمالها، یعني چي غني وي "ولحسبها" یعني چي د لوړي کورنی وي "ولجمالها" یعني چي ښائسته وي "ولدینها" یعني چي دین داره او تقوی داره وي "فاظفر بذات

الدین" نو ته ېرې پیدا کړه پر دین داره ښځه "تربت یداک" بخاري مسلم،
وعن عبدالله بن عمرو ﷺ خير متاع الدنيا المرئة الصالحة رواه مسلم

**درویش وايي:** چي بعض مفسرانو رح تفسیر د "ربنا آتنا في الدنیا حسنةً"
په صالح ماینه سره کړی دی ونسب ذالک الی علي ﷺ.

**فائده:** د ښځو خصوصاً د اخري زماني له فتنو څخه دي سړی خان نه
بېغمه کوي، په تجربه ماته ثابته سوې ده چي د ېر عاقل خلګ بلکه ملایان
ښځي يې داسي غلوي چي سړی ورته حيران سي، اول تګي د ښځو داده چي
ځان پر جنیاتو واچوي او سر شکوي او ځان په غاښوي او خپلي غوښي
پرېکوي، د نر دا موضوع وزړه ته ولوېږي او پر زيارتو او تعويذ ګرانو يې
روان کړې وي، دا خپل د سیل غرض لري او یا یوه دسیسه وزناء ته جوړوي
د بعض ځوانانو سره، او په دې کي عاقل کسان فکر ولي نه وهي چي په نرو
کي يو قصد پيرانان نسته او په ښځه کي شل قصده پيري والا سته. او
ښځه چي پيرانان ونسي دا نوري چي ورته ناستي وي ورته وايي چي تاسي
څوک یاست او څه شی غواړئ پیراني ښځي سترګي پټمي نيولي وي او ورته
ګوره وي، العياذ بالله من مكائد النساء في هذا الزمان.

## وَلَا تَنْكِحُوا

او په نکاح مه ورکوئ، مفعول محذوف دی ای امرئة مسلمة او مخاطب
اولیاء د ښځي دي، يا حاکمان د دولت اسلامي دي.

## الْمُشْرِكِينَ حَتّٰى يُؤْمِنُوْا ط

ومشرکانو ته تر داسي چي ایمان رانه وړي.

**پوه سه:** چي دلته مراد له شرک څخه عام دی، که مشرک ظاهري وي
کما مر مثاله او که مشرک حکمي وي لکه اهل کتاب يهود او نصارئ، نو
مسئله داده چي نکاح ده مسلماني ښځي که حره وي او که مينځه ومطلق
کافر ته روا نه ده باجماع الامة.

# وَلَعَبْدٌ مُّؤْمِنٌ خَيْرٌ مِّنْ مُّشْرِكٍ وَّلَوْ اَعْجَبَكُمْ

پوهسه: چي په دې آيت کي هم د عبد په ترجمه کي هم هغه مخکني اختلاف د مفسرانو سته، او اعراب د "ولو اعجبكم" پر سابق منوال او طريقه دی فتذکر.

ترجمه: هر آئينه مريي چي مسلمان وي ښه دی تر مشرک چي حر هم وي که څه هم په تعجب کي اچولي ياست مشرک يعني په سبب د جاه وجلال او کثرة المال او ډېر جمال د هغه مشرک.

# اُولٰٓئِكَ يَدْعُوْنَ اِلَى النَّارِ

او دغه مشرکين او مشرکات تاسي بولي و اور ته يعني موجباتو ته د اور من الکفر و المعاصي، او صحبت او دوستي په نفسونو کي د انسانانو تاثير کوي، حتی ورد المرء علی دين خليله وجليسه.

# وَاللّٰهُ يَدْعُوْٓا اِلَى الْجَنَّةِ وَالْمَغْفِرَةِ بِاِذْنِهٖ

او خدای ﷻ دعوت ورکوي يعني بولو خلگو ته د جنت او مغفرت يعني واسبابو ته د جنت او مغفرت من الايمان والاعمال الصالحة نو د خدای ﷻ د دوستانو سره بايد مسلمان تزويج او تزوج وکړي.

# وَيُبَيِّنُ اٰيٰتِهٖ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۲۲۱﴾

او دا بلنه د خدای ﷻ وجنت او مغفرت ته په اراده او قضاء د خدای ﷻ ده او خدای ﷻ بيانوي خپل آيات او احکام وخلگو ته ددې لپاره چي دوی پند اخلي او عقائد او احکام الهيه پر ځان جاري او قبول کړي.

فائده: په لا تنکحوا کي کلمه د تاء مضمومه له بابه څخه د افعال ده ای الا نکاح.

فائده: په والله يدعوا کي مضاف محذوف دی ای اولياء الله من المؤمنين والمؤمنات په دې سبب چي مخاطب په دې آيت کي مؤمنين او مؤمنات دي.

فائده: الف په پای کي د يدعوا تابع د رسم د مصحف عثماني دی ولي

چي الف ساکنه لیکل په قانون صرفي کي په اخیر کي د جمع کوي او یدعوا په دې ځای کي مفرد دی ضمیر یې راجع و الله ته دی که څه هم مضاف محذوف دی کمامر ای اولیاء الله.

**تنبیه**: په دې آیت کي نهي د مواصلت او پیوند او محبت قلبي له کافرانو سره په هر نوع کافر چي وي، البته لپاره د تجارت یا د بلي فائدې دنیاوي رابطه له کفارو سره لفظي روا ده.

**فائده**: روح البیان له محیط څخه نقل کړی دی چي که یو مسلمان یوه چاغه ښائسته نصرانیه مثلاً ښځه ولیدل، او په زړه کي یې دا تمنا پیدا سوه چي کاشکي زه نصراني وایي نو دغه نصرانیه ښځه به مي په نکاح کړې وایی، یکفر في الحال، او دا تمنا دده له حماقت څخه ده ولي چي چاغي ښائستي ښځي په مسلمانانو کي هم سته، او دا تمنا دده د زړه خیانت ښکاره کوي، قال الله عزوجل ﴿الخبیثات للخبیثین، والطیبات للطیبین﴾

**بیت**

همه مرغان کنند باجنس پرواز — کبوتر باکبوتر باز بآباز

# وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ الْمَحِيضِ قُلْ هُوَ أَذًى فَاعْتَزِلُوا النِّسَآءَ فِي الْمَحِيضِ

**یوه سه**: چي بخاري، ترمذي او مسلم د انس بن مالک رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي دیهودیانو مسلک دا و چي ښځه به یې حائضه سوله په یوه کاسه کي به یې ډوډۍ نه ورسره خوړله، او نه به د حائضې په خونه کي بیدېدل، نو اصحابو رضي الله عنهم د نبي ﷺ چي ناموري یې ابو الدحداح رضي الله عنه و، پوښتنه وکړه چي موږ ته د حائضې په باره کي څه هدایت دی، نو دا آیت نازل سو.

**فائده**: بیضاوي، روح البیان، روح المعاني او مظهري رح وایي چي خدای جل جلاله یسئلونک درې واره بېله واو عاطفه ذکر کړی او درې واره سره د واو ذکر کړه حکمت یې دادی چي اول درې سواله په اوقات متفرقه کي وه،

او اخیر دري سوالونه په یوه وخت کي وه.

**سوال**: په عطف کي خو اجتماع د جملو غواړي په نفس الامر کي مع وجود الجامع بینهما سواء کانت في وقت واحد اولا، او دغه رنګه دا سوال هم وارد بېږي چي واو عاطفه خو معیت في الوقت نه غواړي او دا خبره چي اتحاد الوقت یقتضی الغطف وعدم اتحاد الوقت یقتض ترک العطف ممالم یقل به احد من النحات.

**ځواب**: درویش وایي چي بعض شراح د بیضاوي په لفظ د قیل ددغو دوو سوالو جواب داسي ورکړی دی چي د بیضاوي مراد دادی چي اول دري سواله چونکه مبتداء وه من غیر تعلق بالآخر ولامقارنة في الوقت آخر لم یقصد الی جمعها یعني بحرف العطف بل اخبر الله عن کل واحد منها علی حدة بخلاف السوالات الاخر حیث کانت في وقت واحد عرفا فقصد الی جمعها بحرف العطف تنبیها علی اجتماعهما في الوقت.

**درویش وایي**: چي اجتماع د اخیرو دري سوالو په وخت کي کوم نقل شرعي دلیل نه لري من حدیث النبوي ﷺ او اقوال الصحابة ﷺ بل هو مجرد احتمال عقلي لایعبابه، درویش میګوید که علامه بغدادي در دفع این دو سوال بحث طویل براه اندرخته لکن هیڅ بدستش نیامده فارجع الی تفسیره روح المعاني، وبنده هیچ مدان میګوید که آوردن بعض سوالها بواو عاطفه وبعض آنها را بدون العطف نوعیت از تفنن کلام که شعبه از بلاغت بي نهایت قرآن عظیم الشان است، وتخصیص بعض بالواو وبعضها بدونها مرجح را ضرورت ندارد زیراکه اراده خداوندي در ترجیح کافي خواهد بود کماهو مذهب اهل الحق من المتکلمین.

**فائده**: د یهودیانو چار چلند د حائضاتو ښځو سره خو هغه و چي تاسي واورېدی چي دې ته افراط په حق کي د حائضاتو وایي، او نصاری وو د تفریط ښځه کار اخستی په حق کي د حائضاتو یعني جماع یې هم ورسره کولې په حال کي د حیض او په حیض یې باک نه کاوه. نو موږ امت

محمدیه ﷺ خدای ﷻ امر کړو په توسط بین افراط الیهود کمامر بین تفریط النصاری في حقهن، او توسط دادی چي جماعي په محل کي د حیض مه وسره کوئ نور په کور او خونه کي بلکه په یوه بستره کي ورسره بد بړئ او مچه وغیره ځندي اخلئ، او په ځېګر پوري یې نسي او تفخیذ یې هم روا دی، والاولی ان لایفعل التفخیذ لئلا یقع في الجماع.

**فائده**: زجاج وایي چي محیض مصدر میمي دی کالمجیئ والمبیت او اصل معنا یې سېلان ده.

**درویش وایي**: چي دا مذهب مختاره د الوسي دی په روح المعاني کي او د برسوي په روح البیان کي او د بیضاوي پخپل تفسیر کي او د مظهري دی نو مراد ځندي بهېدل د خیرو د رحم دي یعني وینې.

**پوه سه**: چي د سوال په الفاظو کي څه هم ابهام سته چي مراد د سائلانو مخالطة د ښځو سره دی په حال کي د حیض لکن مراد ځندي حیض او جماع ده، او د امام المفسرین عبدالله بن عباس ﷺ څخه منقوله ده چي محیض مکان الدم دی ای الفرج، او هم دا مذهب او تفسیر مختاره د امام کبیر فخر الدین الرازي ﷫ في التفسیر الکبیر دی لکن پر دې تقدیر حذف د مضاف ته ضرورت سته په دې قول د خدای ﷻ ﴿قل هو اذی﴾ ای موضع اذی، لان الضمیر هو راجع الی المحیض وهو الفرج والاذی بمعنی النجاسة والفرج لیس بنجاسة بل محل النجاسة، والامام الرازي اعترف بهذا الحذف حیث قال ای مواضع المحیض وعلی تقدیر المصدریة لایحتاج الی هذا الحذف لان سیلان الدم نجاسة.

**پوه سه**: چي له محیض ثاني څخه په آیت کي یعني فاعتزلوا النساء في المحیض معنی د محل د ظهور الحیض ده وهو الفرج نو یا محیض ثاني ظرف مکان دی او یا مضاف محذوف دی، وهذا اولی لان المعرفة اذا اعیدت یکون الثاني عین الاول.

**ترجمه**: او صحابه کرام سوال کوي له تا څخه د ويني بهېدلو د ښځو يعني في وقت الحيض چي مور ئې څرنګه وکړو، ته ورته ووايه چي دا حيض مستقذر او منفور طبعا او مکروه شی دی، نو تاسي ګوښه والی له ښځو څخه يعني له جماع څخه ددوئ په دې مستقذر حالت کي او يا په محل کي د حيض چي فرج دی عند الامام الرازي رحمه الله کما مر آنفاً.

**پوه سه**: چي مراد له اعتزال څخه ترک الوطي دی اجماعا، ولهذا قال رسول الله ﷺ حين نزلت هذا الآية اصنعوا کل شی الا النکاح الی الوطي. رواه البخاري ومسلم عن حديث انس رضي الله عنه.

**مسئله**: که د سړي په غېږ کي ماينه حائضه ناسته وي او هغه سړی قرآن مبارک وايي روا دی، يعني حائض د سماع القرآن څخه ممنوع نه ده کذالک روت عائشة رضي الله عنها عن النبي ﷺ متفق عليه ﴿وعن عائشة رضي الله عنها قالت قال لي رسول الله ﷺ ناوليني الخمرة ای المصلی من المسجد فقلت اني حائض فقال ان حيضک ليست في يدک﴾ رواه مسلم.

**درويش وايي**: چي ددې حديث څخه دا معلومه سوه چي حائض ته دخول د مسجد ناجائز دی او په لاس له مسجد څخه يو شي را اخيستل روا دی.

**پوښتنه**: که سړی پر لمانځه ولاړ وي او څنګ ته يې ماينه پرته وه او هغه حائضه وه او د پټو او يا بل کالي يوه حصه يې پر حائض واقع وه لمونځ ددغه سړي صحيح دی؟

**ځواب**: هو! لمونځ يې صحيح دی کما جاء ذالک بعينه في حديث ميمونة رضي الله عنها قالت ﴿کان رسول الله ﷺ يصلی تعنی صلوة التهجد في مرط بعضه علي وبعضه عليه﴾ رواه البخاري ومسلم.

**پوښتنه**: د حائضي ښځي سره په يوه شړۍ يا توس يا تلتک کي پروته رواده که نه؟

**ځواب**: روا ده کما جاء في حديث ام سلمة رضي الله عنها الذي رواه البخاري.

**درويش وايي**: وعلی هذا فقس المسائل الاخر من هذا الجنس.

# وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ حَتَّىٰ يَطْهُرْنَ

او تاسي مه نژدې کېږئ وحائضاتو ته يعني جماع مه ورسره کوئ ترهغو پورې چې دوئ پاکې ږي له حيض څخه.

**پوه سه:** چې دا بيان دی د غايت او نهايت د حکم سابق يعني فاعتزلوا النساء في المحيض آه، او په عين حال کې تاکيد د حکم هم دی. يعني په اعتبار د لفظ د ولاتقربوهن.

**فائده:** قرائت د عاصم په روايت د ابي بکر او حمزه او کسائي په تشديد د طاء او هاء دی ای يتطهرن، او نور قاريان په سکون د طاء او په ضمه د هاء مخففا وايي، او د دواړو قرائتو معنا يوه ده په نيز د مالک، شافعي او احمد رح نو دوئ معنا داسي کوي حتی يغتسلن، نو ددوئ په مذهب وطي د حائض چي وينه يې قطع سي دمخه تر حيض نه دي روا مطلقا که پر اقله مده قطع سي او که پر اکثره مده، او امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله وايي معنا د قرائت د تخفيف داده چي صرف وينه قطع سي نو پر دې قرائت د امام اعظم رحمه الله په نيز وطي د حائض سره روا دي چي وينه يې قطع سي من قبل الاغتسال ايضا، او معنا د قرائت د تشديد داده چي غسل وکړي نو يې وطي روا دي، نو قبل الاغتسال يې وطي نه دي روا، واليسر فيه ان ابا حنيفة رحمه الله يحمل قرائة التخفيف على ما انقطع الدم بعد عشرة ايام التي هي اکثر مدة الحيض، نو دغه ښځه له حيض څخه په نفس انقطاع الدم سره پاکه سوه د وطي لپاره لعدم احتمال عود الحيض او قرائت د تشديد امام اعظم رحمه الله پر هغه صورت حمل کوي چي تر لسو ورځو کم يې وينه ودرېږي لاحتمال عود الحيض، فلابد من تاکيد القطع بالاغتسال، لانها بعد القطع والاغتسال تجب عليها الصلوة فيجوز الوطي بالطريق الاولى.

**مسئله:** پر دې خو د څلورو امامانو اتفاق دی چي وطي په حال کي د حيض ناروا دي، نو که چا دغه وطي وکړې په حکم کي يې اختلاف دی، ابو

حنیفه او مالک ؒ وایي چي کفاره نسته باندي گناه کبیره ده توبه او استغفار باندي لازم دی وهو القول الجدید من الشافعي، او امام احمد ؒ وایي چي پر دغه سړي تصدق په یوه دینار سره لازم دی او که یې یو دینار نه درلودی بیا نصف دینار یې کفاره ده.

**فائده:** اهل السنة والجماعة پر دې خبره متفق دي چي حیض مانع د وجوب د لمانځه او د جواز د لمانځه دواړو دی، نو ځکه پر حائض قضاء د روژې واجبه ده.

**پوښتنه:** میړه ته روا ده چي تر پرتاگه لاندي بېله فرجه پر ورنو یا کناتو د حائض نفع واخلي، یعني شهوت پر ځای کړي او که نه؟

**ځواب:** امام احمد ؒ وایي روا ده، او دلیل یې هغه حدیث د انس ؓ ﴿اصنعوا کل شیئ الا الجماع وفي روایة الا النکاح﴾ تاسي له حائضې ماینې سره هر کار کوئ مگر نه نکاح یعني الجماع. او جمهور علماء وایي چي تحت الازار نفع نه ده پر روا، لحدیث معاذ بن جبل قلت یا رسول الله مایحل لي من امرئتي وهي حائض؟ قال: مافوق الازار والتعفف عن ذالک افضل القول الفیصل، که د سړي په ځان باور و چي جماع نه راځخه کېږي که زه تحت الازار نفع واخلم، نو هغه ته دا نفع اخستل روا دی لان المراد في الآیة الجماع فقط، او که یې په ځان باور نه و نو فترک ذالک النفع واجب، قال علیه الصلوة والسلام من رعی حول الحمی یوشک ان یقع فیه یعني د حائض فرج کرغ دی نو د کرغ پر شاوخوا دي نه گرځي.

فَإِذَا تَطَهَّرْنَ فَأْتُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ أَمَرَكُمُ اللَّهُ ۚ

نو چي پاکي سي حائضات بیا نو دوئ ته ورځئ یعني وطي ورسره کوئ له هغه ځای ځخه چي خدای ﷻ په امر کړي یاست یعني الفرج دون الدبر لانه اللواطة الصغری.

**یوه سه:** چي چونکه تو له قراء دلته تطهرن په تشدید د ها وایي نو دلته د

تطهر څخه پر هر مذهب مراد غسل دی، اما عند ائمة الثلاثة رح فظاهر لانهم لا يفرقون بين التشديد والتخفيف بل يوجبون الغسل على كل تقدير لحل الوطي، واما عند ابي حنيفة رحمه الله فالتشديد د محمول على ما اذا انقطع الدم لاقل من عشرة ايام والتفصيل قد مر.

إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ التَّوَّابِينَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِينَ ﴿٢٢٢﴾

په تحقيق خدای ﷻ خوښ لري توبه کونکي يعني له کفر او معاصيو څخه او خوښ لري خان پاکوونکي له مرداريو څخه لکه فيمانحن فيه وطي د حائض او يا وطي په دبره کي.

**پوه سه**: چي جماع له حائضي سره سبب د مرض د آتشک گرځي په ولد کي وبه ورد الخبر، وقاله الاطباء ايضا. او سبب د عقاب الهي دی په اخرت کي لما روى احمد والترمذي والنسائي عن ابي هريرة رضی الله عنه عن النبي ﷺ قال من اتى حائضا فقد كفر بما انزل على محمد ﷺ.

**درويش وايي**: چي دا حديث محمول دی پر زجر او غايت الترهيب وليس المراد حقيقة الكفر لما اخرجه الطبراني رحمه الله عن ابن عباس رضی الله عنه قال جاء رجل الى النبي ﷺ فقال يا رسول الله اني اصبت امرئتي وهي حائض فامره رسول الله ﷺ ان يعتق نسمةً اى عبداً، راوي وايي چي قيمت د مريي په دغه وخت کي يو دينار و، ولهذا ورد في الخبر الآخر التصدق بدينار يعني ان كان الوطي في اول الحيض والدم احمر وان كان الوطي في اخير الحيض والدم اصفر فيجب التصدق بنصف الدينار كما ورد به الآثار، وجه دلالت هذا الحديث على عدم ارادة الكفر في الحديث السابق ان الكفر ليس له كفارة بالاجماع

**پوه سه**: چي حرمت د وطي د دبري له خوا د ماينې په اشاره ددې آيت ثابت دی "من حيث امركم الله لان المامور به هو الفرج، او يا د دبري وطي قياس دي په حرمت کي پر وطي د حالة الحيض والجامع بينهما الاستقذار في كليهما بل في الدبر اشد.

**درویش وايي:** چي وطي د رجل له رجل سره د هغه حرمت په قطعي نصوص سره ثابت دی وانعقد علیه الاجماع ویدل علي تلک الحرمة ماورد من الآيات في مواضع شتى ان قوم لوط ﷺ هلكوا بتلك الفعلة اى مع كفرهم.

**بوه سه:** چي مظهري ﷫ وايي چي وطي مطلقاً مستقذر دي سواء كان في قبل الزوجة او دبرها او في دبر الرجل، ومن ثم يجب الغسل به. لكن ابيح الوطي في القبل لضرورة ابقاء النسل، او خدای ﷻ د جواز د وطي د قبل لره هم شرائط ايښي دي من عدم المحرمية، والنكاح، وبرائة الفرج من الحيض وغيرها ولاضرورة في الوطي في الدبر سواء كان مفعول رجلا او امرئة فبقى هذا الوطي على الحرمة الاصلية لفعلة الاستقذار. فاحفظ هذه القاعدة

**نِسَآؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنّٰى شِئْتُمْ**

**بوه سه:** چي په دې آيت کي حذف د مضاف سته اى موضع حرث لكم آه او دا آيت بناء پر تشبيه دی يعني ښځي خدای ﷻ مشابه کړي له کښت د ځمکو سره، او هغه نطفې د نرو چي په ارحامو کي د دوئ لوېږي مشابه يې له تخم سره کړې چي په ځمکه کي يې سړی پاشي لپاره د حاصل او غلې.

فالمعنى ستاسي ښځي يعني رحمونه ستاسي د ښځو ستاسي د نطفو ځای د کښت دی لپاره د اولاد ابقاءً للنسل نو تاسي ورځی وځای ته د کښت د دوئ چي فرج دی نه د دبري له خوا ولي چي دبره ځای د فرث او مرداري ده د کښت ځای نه ده، فيكون هذا كالبيان لقوله تعالى ﴿فاتوهن من حيث امركم الله﴾ او پر هر كيفيت چي ورځي كه په ولاړي وي كه پر اړخ وي كه د شا له خوا وي لكن په فرج کي.

**بوه سه:** چي كلمه د "انى" مشتركه ده په معنا د كيف هم راځي او په معنا د من اين هم راځي اما الثاني فكما في قوله تعالى في قصة مريم ام عيسى ﷺ حيث كان ياتيها ثمار الصيف في الشتاء وثمار الشتاء ياتيها في الصيف وهي صغيرة في تربية ذكرياء ﷺ زوج خالتها فسئالها

ذکریا ﷺ "انی" یاتي ای من این یاتي هذا الرزق فقالت من عند الله. او دا معنا په دې آیت کې مراد نه ده ولي چې مفاد یې عموم ومحل د وطي یعني دبر نه هم شامل دی او سره ددې چې محل د حرث خو یو دی یعني الفرج فهذه الکلمة ههنا لعموم کیفیات الفرج کما ذکرنا.

**پوښتنه**: حرمت د وطي د مایني په دبره کې آیا په اتفاقي خبره حرام دی او که څرنګه؟

**ځواب**: امام ابو حنیفه، امام احمد او جمهور د اهل سنتو رح خو یې حرام بولي، او د امام مالک رحمه الله څخه روایت دی چې اتیان د زوجې په دبره کې روا دی لکن اکثر اهل مذهب دده له دې خبرې څخه منکر دي چې دادې مذهب د مالک رحمه الله وي. قال المظهري رحمه الله والصحیح انه کان مذهبا فرجع عنه او رجع عنه اصحابه، او د امام شافعي رحمه الله څخه دوه قوله مروي دي. یو قول قدیم دی چې په هغه کې ده وطي د مایني په دبره کې حلال ګڼلی دی، او په قول جدید کې یې مرجوع الیه دادی چې حضرت الامام شافعي رحمه الله د جمهورو علماؤ سره موافقت کړی دی، په تحریم کې د وطي مذکور، والله اعلم

**درویش وایي**: چې امام مظهري رحمه الله په تحریم او تحلیل کې د اتیان د دبرې د مایني ډېر احادیث ضعیفه راوړي دي، او ډېر احادیث صحیحه یې هم راوړي دي تخمیناً څلور صفحې د خپل تفسیر یې په ډکې کړي دي من شاء التفصیل في هذه المسئلة فلیرجع الی تفسیره في تفسیر هذه الآیة والله الموفق. نو ځکه درویش پخپل تفسیر کې چې عوام او طالبان او امامان یې بلکه بعض خوانده ښځې یې مطالعه کوي دا احادیث د مظهري د پښتو ژباړې څخه صرف نظر کړه، ولي نباید عوام او امامان وغیرهم د خپل کم علمي په سبب په کنده کې د تحلیل د لواطت د ماینو واقع نه سي.

**درویش وایي**: چې روایت د تحلیل د لواطت د مایني ابن عبدالحکم له امام شافعي رحمه الله کړی دی، لکن امام ربیع چې شافعي المذهب دی وایي

كذب ابن عبد الحكم والله الذي لا اله الاهو قد نص الشافعي رحمه الله على تحريم تلك اللواطة في سننه وحكاه عنه جماعة منهم الماوردي رحمه الله في الحاوي وابو نصر بن الصباح في كتاب الشامل وغيرهم.

**درویش وایي:** که روایت د ابن الحکم صحیح هم سي فقد ذکرنا رجوع الشافعي رحمه الله عن ذالک نو اوس باید د ټولو عوامو او خواصو نرو او ښځو عقیده دا وي چي لواطت د ماینې سره حرام دی په اجماع د ائمة الاربعة رحمهم الله الذین هم اساطین دین المبین.

## وَقَدِّمُوا لِأَنفُسِكُمْ

او تاسي له مخه استوئ یعني اخرت ته لپاره د خپلو ځانو یعني اعمال صالحه چي سبب د بخښي وګرځي ستاسي.

**درویش وایي:** چي وجه د ربط ددې آیت د مانحن فیه سره داده چي سړی په وطي کي د ماینې دي فقط قضاء شهوت مقصود نه وي بلکه داسي منافع دي مقصود وي چي راجع ودین ته وي لیکون الوطي عبادة مقدمة لانفسکم مثلا په وطي کي دا غرض وي چي زه خپل فرج له زناء او لواطت څخه وساتم او خدای ﷻ به ولد صالح راکړي چي ماته به دعاء کوي او طلب د مغفرت د ګنهو به راته کوي، وفي حديث مسلم قال رسول الله ﷺ وفي بضع احدکم صدقة یعني په عضو مخصوص کي ستاسي خیرات سته قالوا ایاتي احدنا شهوته ویکون له فیها اجر، نو صحابه وو وویل چي یو زموږ به قضاء شهوت کوي او موږ لره به پر هغه اجر او ثواب هم وي، قال ارئیتم لو وضعها في حرام اکان علیه وزر قالوا نعم قال فکذالک اذا وضعها في حلال کان له اجر، نو علیه الصلوة والسلام ودوئ ته وویل چي تاسي خبر راکړئ که سړي شهوت خپل په حرام ځای کي ایښی وایي لکه زناء او لواطت آیا پر ده باندي به عذاب نه وای، صحابه وو ﷺ وویل چي هو! نو علیه الصلوة والسلام وویل چي داغه رنګه چي شهوت په حلال ځای کي

استعمال کړي نو ده لره ثواب سته، او په روایت د مسلم له ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي علیه الصلوة والسلام وویل چي انسان چي مړ سي یعني مسلمان عمل دده قطع کېږي، یعني لکه لمونځ، روژه، زکوة، وغیرها، مګر نه له دروېشانو څخه چي یا یې یوه صدقه جاریه پرې ایښې وي لکه مسجد، پل مهمان خانه، وقفي مځکه یا باغ او یا وقفي کتابونه، او علم ینتفع او یا علم پاته سي چي خلګ نفع څنې اخلي لکه تصنیف کړي کتابونه، او یا مدرس شاګردان او یا صالح عیال که نر وي او که ښځه وي چي ده ته دعاء کوي.

**دروېش وایي**: انما قال ﷺ یدعوله ترغیبا للولد علی دعاء الوالد والا فالوالد شریک في ثواب جمیع الاعمال الصالحة للولد، یدعوا ولایدعوا او مجاهد او عطاء ﷫ ددې آیت داسې ترجمه کوي چي تاسي دمخه تر جماع عمل د خیر کوئ لپاره د ځانو یعني بسم الله او دعاء کما ورد في الحدیث النبوي ﷺ بروایة البخاري عن ابن عباس ﷺ قال رسول الله ﷺ کله یو څوک ستاسي اراده وکړي چي ماینې ته ورسي یعني جماع ورسره وکړي نو له مخه تر جماعو دي وایي بسم الله اللهم جنبنا الشیطان وجنب الشیطان مارزقتنا فانه ان یقدر بینهما ولد في ذالک لم یضره الشیطان ابداً.

**دروېش وایي**: چي مراد په حدیث نبوي ﷺ والله اعلم ضرر خاص دی لکه ارتداد، دوام پر معاصیو کبیره وو لامطلق الضرر بالمعصیة فتامل حتی لاتقع في الشک في حدیث رسول الله ﷺ.

**وَقَدِّمُوا لِأَنفُسِكُمْ ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّكُم مُّلَاقُوهُ ۗ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ ﴿۲۲۳﴾**

او له خدای ﷻ څخه وېرېږئ، یعني معاصي مه کوئ خوفاً من الله ﷻ او په دې پوه سئ چي تاسي به د خدای ﷻ سره ملاقي کېږئ یعني به ورځ د

قيامت، يعني په هغه ورځ به تاسي ته جزاء د اعمالو دركول كيږي، كه خير وعمل ستاسي جزاء به په خير دركول كيږي يعني الجنة، او كه بد وه عملونه ستاسي جزاء به په بدو دركول كيږي يعني النار. او ته اې محمد ﷺ زيرى وكړه ومؤمنانوته په جنت او نعيم مقيم سره. وبروايت مسلم عن صهيب ﷺ قال قال رسول الله ﷺ چي تعجب دى وحال ته د مسلمان كه ده ته يوشى د خوشحالى پيداسي كالصحة في البدن والغنى بالمال والاولاد الصالح وغيرها نو دى د هغه نعمت الهي شكر وايي فكان خيرا له. وان اصابته ضراء يعني بعكس ماقلنا في تفسير السراء او دى پر هغه ضراء صبر وكړي كان خيرا له.

**بيت**

در آمان خانه ايمان بنشين وايمن باش گر آمان بايدت البته مرو ازين ماس

**وَلَا تَجْعَلُوا اللّٰهَ عُرْضَةً لِّاَيْمَانِكُمْ**

**شان نزول الآية:** مظهري له بغوي څخه او روح البيان او روح المعاني هم دغسي وايي چي بشير بن نعمان انصاري ﷺ خپله ماينه چي خور د عبدالله بن رواحه ﷺ وه طلاقه كړې وه. او د بشير زړه غوښتل چي بيرته د خپلې طلاقي سوي مايني سره نوې نكاح وكړي، او عبدالله بن رواحه ﷺ قسم اخستى و چي زه به د بشير كور ته نه ورځم او خبري به هم نه ورسره كوم، او د بشير او د خپلي خور تر منځ به صلح نه كوم. نو چا چي به د بشير د خبرو او دده د خور تر منځ خبره مطرح كړه، نو عبدالله به ورته ويل چي ما سخت قسم كړى دى چي زه به دا كار نه كوم. او ماته دا نه ده روا چي زه په قسم سره خان حانث كړم. فانزل الله هذه الآية. نو عبدالله بن رواحة ﷺ سمعاً وطاعةً لامره تعالى خپل ځان په قسم كي حانث كړى او هغه كار يې وكړى. او روح المعاني د ابن جرير ﷺ او هغه د ابن جريح ﷺ څخه داسي نقل كړى دى چي دا آيت په باره كي د حضرت ابوبكر صديق ﷺ نازل سوى دى،

څرنګه چي په موضوع کي د تهمت د زناء پر سيدنا عائشة رضي الله عنها مسطح بن اثاثه رضي الله عنه چي له فقراو څخه د مهاجرينو و او د ابو بکر رضي الله عنه د خاله زوی هم و شرکت کړی و يعني دا موضوع يې رشتيا بلله. نو څه وخت چي په برائت کي د عائشه رضي الله عنها د قرآن مجيد څو آيتونه نازل سوه، نو ابوبکر رضي الله عنه قسم واخستی چي زه به آئينده مسطح رضي الله عنه ته نفقه نه ورکوم لکه چي پخوا مي ورکوله، نو چي دا آيت نازل سو، نو ابوبکر رضي الله عنه سمعاً وطاعةً لله ﷻ خان په قسم کي حانث کړی، او نفقه د مسطح رضي الله عنه يې بيرته جاري کړه.

**درويش وايي**: چي دديې قصې پوره تفصيل او بيان به په خپل خای کي په تفسير ايوبي کي راسي ان شاء الله تعالى.

**فائده**: د درويش په خيال دا موجوده آيت فقط په شان کي د قسم د ابن رواحه رضي الله عنه نازل دی، او هغه شان نزول چي روح المعاني راوړی دی چي دا آيت په شان کي د ابوبکر رضي الله عنه نازل سوی دی په دې خای کي مناسب نه دی، ولي په قسم کي د ابوبکر رضي الله عنه چي مسطح د خاله زوی ته به نفقه نه ورکوی هغه په قصه کي د تهمت د عائشې رضي الله عنها په هغه آيت کي چي د هغه موضوع به راسي "ولا ياكل اولوا الفضل منكم والسعة الآية" په قرينه دديې چي په دې آيت کي "وتصلحوا بين الناس آه" راغلی دی صلح قسم خو ابن رواحه اخستی و چي زه به د بشير او د هغه د مطلقې مابينې صلح نه کوم، او په قصه کي د ابوبکر رضي الله عنه د قسم خو فقط دا وه چي زه به مسطح ته نفقه نه ورکوم د صلح بين الناس خو په هغه کي ګنجائش نسته. ولهذا اقتصر المحقق البيضاوي رحمه الله، او روح البيان، بغوي، مظهري او ګڼ شمير مفسرانو رحمهم الله تعالى فقط يوازي د ابن رواحه رضي الله عنه شان نزول راوړی دی او د درويش ذاتي رايه هم داده چي آيت مذکوره په شان کي د ابن رواحه رضي الله عنه د قسم نازل سوی دی والله اعلم بالصواب.

**ترجمه**: او تاسي مه ګرځوئ خدای ﷻ، په حذف د مضاف ای يمين الله عرضة، يعني مانع د نېکو کارو.

**فائده:** "عرضة فعلة" په معنا د مفعول يعني معروض ميان گړي په منځ کي خپل او د نېکو کارو "لايمانكم" جمع د يمين ده. او مراد له ايمانو څخه هغه کارونه دي چي سرې قسم خندي اخستي وي.

**پوه سه:** چي صاحب د روح البيان وايي چي "عرضة فعلة" په معنا د مفعول ده اى المعروض ثم جعل اسم لما يعرض دون الشيئ اى يجعل قدامه بحيث يكون حاجزا ومانعا عنه. والمعنى لاتجعلوا ذكر الله والحلف به مانعا لماحلفتم عليه من انواع الخير كالبر والاصلاح ههنا فان الحلف بالله لايمنع ذالک نو لفظ د ايمانو مجاز مرسل دى په معنا د محلوف عليها يعني افعال الخير.

## اَنۡ تَبَرُّوۡا وَتَتَّقُوۡا وَتُصۡلِحُوۡا بَيۡنَ النَّاسِ ؕ

چي تاسي كار د بر يعني يو نيک كار وكړئ، او يا تقوى داري وكړئ يعني د خداى ﷻ له بهري كار وكړئ، او يا اصلاح وكړئ په منځ كي د خلگو.

**پوه سه:** چي دا دري معطوفات بيان د "ايمانكم" دي چي په معنا د محلوف عليه و، كمامر.

**درويش وايي:** چي په موضوع كي د عبدالله بن رواحه رضی الله عنه بر دا و چي له بشير سره ده ښه كړي وايي او خندي ناراضه سوى نه وايي پر طلاق د خور دده لان الطلاق امر شرعي، او تقوى داوه چي عبدالله بن رواحه له بشير رضی الله عنه سره قطع د خبرو نه وايي كړي، او اصلاح بين الناس دا وه چي عبدالله بن رواحه د خپلي خور او د بشير رضی الله عنه اصلاح كړې وايي.

**اشاره:** په دې آيت كي دلالة دا معلومه سوه چي ډېر قسمونه اخستل مكروه دي، او ډېر قسم اخيستونكى پر خداى ﷻ دلاور دى، او صاحب البر او متقي او مصلح بين الناس نه دى.

**مسئله:** كه چا قسم واخستى چي زه فلانى ښه كار نه كوم فرضاً كان او واجباً او سنةً واجب ده پر هغه چي خپل قسم دې مانع د ښه كار كولو نه گرځوي بلكه ځان دي حانث كړي او ښه كار دي وكړي او كفارة اليمين دي

ورکړي، وفي مسلم عن ابي هريرةؓ ان رسول اللهﷺ قال من حلف بيمين فرئ غيرها غير منها فليكفر عن يمينه وليفعل الذي هو خير.

**مسئله**: که یو چا قسم واخستی پر یوه شي باندي او متصل د قسم سره ان شاء الله وویل بیا د حنث کفاره نسته باندي، وعلى هذا فقس الطلاق والعتاق، لكن الاتصال شرط في جميعها عند ابي حنيفةؒ.

وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٢٤﴾

او خدای ﷻ اوریدونکی دی ستاسي د اقوالو. او ښه خبر دی ستاسي په اعمالو او نیاتو.

وفي المثنوي

| | |
|---|---|
| از پی آن گفت حق خود را سمیع | تا به بندی لب گفتار شنیع |
| از پی آن گفت حق خود را بصیر | که بود دیدویت هر دم نذیر |
| از پی آن گفت حق خود را علیم | تانیفدیشی فسادی تو زبیم |

**مسئله**: في الشرعة دي ښوک وخپل مبیعې ته رواج نه ورکوي په قسم سره لا صادقا ولا كاذبا لانه ان كان كاذبا فقد جاء باليمين الغموس وهي من الكبائر وسيأتي تفسير اليمين الغموس ان شاء الله. او که صادقا وي فقد جعل الله عرضة لايمانه. او دا بد کار دی ولي چي دنیا یو خسیس شی ده باید چي ددې د حصول لپاره ذکر د خدای ﷻ د پاک نامه ذریعه ونه ګرځوي بېله ضرورته کما في مسئلة البينة على المدعي واليمين على من انكر كما جاء في الحديث المشهور القريب من التواتر. او که څه هم سړی په قسم کي صادق وي خو بیا هم د هر قسمونه دي نه اخلي ولي د قسم تعظیم يې له زړه ځخه وزي، نو نه ده بعيده چي باره به ايمان كاذبه هم اخلي، وفي الحديث قال رسول اللهﷺ ويل للتاجر من يلى والله، وفي الحديث النبويﷺ التجار هم الفجار، اصحابوؓ پوښتنه وکړه چي ولي فجار دي وقد احل الله البيع فقال صلعم لانهم يحلفون ويأثمون. يعني دوئ قسمونه اخلي

او ګناه کوي يعني په درواغو قسمونه اخلي ويتحدثون فيكذبون او خبري کوي او درواغ وايي.

**مسئله**: څوک دي داسې قسم نه اخلي چي زما دي قسم په خدای ﷻ وي چي خدای ﷻ به فلانی کار کوي، لكن اولياء الله المقربين رح له دې مسئلې څخه مستثنى دي لانه ورد في الحديث النبوي ﷺ رب اشعث اغبر لو اقسم على الله لابره او كما قال.

**حکايت**: ابو حفص رحمه الله چي يو د اولياء الله څخه و، يوه ورځ پر يوه لاره روان و چي يو کلي وال په مخه ورغلی لکه مدهوش غوندي و نو ابو حفص رحمه الله ورته وويل چي ولي داسې مدهوش مانند روان يې؟ هغه ورته وويل چي خر مي ورک دی ولا املک غيره، نو ابو حفص رحمه الله ودرېدی او خدای ﷻ ته يې په دغو الفاظو خطاب وکړی چي زما دي ستا په عزت قسم وي که زه يو ګام واخلم چي ته اې ربه ددې صحرائي خر وده ته رد نه کړې فظهر الحمار في الوقت، كذا في شرح المشارق ولنعم ماقيل.

| | | |
|---|---|---|
| | گفته او گفته الله بود | گرچه از حلقوم عبدالله بود |
| وايضا قيل: | اولياء راهست قدرت ازاله | تير برجسته بگر داند زراه |
| وايضا قيل: | بر فلک بر تر بود اسرار او | شيئا لله شيئا کار او |

**درویش وايي**: چي دا يو کرامت د رب ﷻ دی چي خپلو دوستانو ته يې ور کوي، وامثال هذه كثيرة شهيرة.

**درویش وايي**: که څه هم الفاظ د حديث مروي سابقا يعني فليكفر عن يمينه وليفعل الذي هو خير ددې تقاضی کوي چي کفاره تر حنث دمخه ورکوي، لكن مذهب د حنفيان رحمهم الله دادی چي کفاره تر حنث دمخه نه ده روا بلکه يو وار به ځان حانثوي او بيا به کفاره ورکوي.

**سوال**: نو مذهب حنفي رحمه الله له حديثه مخالف نه سو؟

**ځواب**: یا نه دی مخالف ولي چي واو عاطفه چي په حدیث نبوي ﷺ کي راغلی دی لپاره د تراخي نه دي بلکه لپاره د مطلق جمع دی کما تقرر في النحو نعم قدم الکفارة في لفظ الحدیث اهتماماً بشانها.

## لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللَّهُ بِاللَّغْوِ فِي أَيْمَانِكُمْ

او نه نسي خدای ﷻ تاسي په لغوه سره په قسمو کي ستاسي.

**پوه سه**: چي مراد له مواخذي ځخه مواخذه اخروي ده په نېز د اکثرو مفسرینو رح یعني عذاب الهي، او مواخذه دنیاوي عبارت دی له کفارې ځخه کما سیئاتي بیانها ان شاء الله تعالی.

**فائده**: لغوه په لغت کي هغه بې اعتباره خبره یا کار دی (قاموس) د امام شافعي، شعبي او عکرمه مذهب دادی چي یمین لغوه هغه قسم دی چي پر خوله د سړي بېله قصده جاري وي. نحو قول الرجل لا والله وبلی والله سواء کان في الاخبار اوالانشاءت او الخبر الماضي او المستقبل. قال المظهري المؤید لمذهب غیر الاحناف ویظن انه مجتهد في الآحادیث (وهذا هو المناسب للمعنی اللغوی) نو په داسي قسم کي نه گناه شته که په اخبارو کي و، او که په انشاوً کي او ځان یې حانث کړی کفاره هم نشته بانديٍ عند الشافعي رحمه الله ، نو د شافعي په نېز یمین دوه قسمه دی. لغوه او منعقده، او د امام اعظم رحمه الله په نېز یمین لغوه په قسمو کي هغه دی چي عقد او قصد د زړه نه وي ورسره کقول الرجل والله انه فعل کذا او یفعل کذا ویظن انه صادق فیه ولیس کذالک ففي هذا القسم من الیمین لا اثم ولا کفارة. واما ام حلف علی الامر الماضي کاذبا یعني یعلم انه لیس کک فهو الیمین الغموس ولا کفارة فیه ولکنه کبیرة یغمس صاحبها في الاثم في الدنیا وفي النار في الآخرة، نو د حنفیانو په نېز یمین درې قسمه دی. لغوه، غموس وقد بینا معنا هما، ومنعقدة کما سیئاتي.

**پوه سه**: چي یمین غموس په وروستنه آیت کي داخل دی، یعني قوله تعالی

# وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا كَسَبَتْ قُلُوْبُكُمْ

لکن تاسي نسي په هغه قسم سره چي ستاسو زړونو یې قسب کړی وي نو که په کسب د زړه یعني په قصد د زړه کي پر ماضي کار قسم اخستی و کاذبا فهو اليمين الغموس، او که په قصد د زړه یې پر مستقبل کار قسم واخستی فهو اليمين المنعقدة وفيه عند الحنث المعصية والكفارة.

**درویش وایي**: چي بیانو مظهري خپله مجتهدانه رویه مختاره کړې ده او احادیث داله پر مذهب حنفي یې ټوله ضعیف کړي دي، په قول د اصحاب الجرح والتعديل فطالع تفسيره، والله در صاحب روح البيان، وصاحب المدارك وغيرهما حيث يبينون مذهبهم والمذهب الآخر، ايضاً ولايبينون الدلائل بالنفي والاثبات والجرح والتعديل لان دليل المقلد قول مجتهده لاظنه اى المقلد ولاظن مجتهده كذا في المسلم الثبوت للمحب البهاري رحمه الله

# وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ ﴿۲۲۵﴾

او خدای ﷻ بخښونکی دی د کبائرو ګنهو بتوبة وبغير توبة ان شاء الله، او حلیم دی چي وعاصي ته مهلت د توبې ورکوي او ژر یې په ګناه نه نسي

**فائده**: پوه سه چي قسم به یا په ذات د خدای ﷻ وي مثل ان يقول والذي خلقني او یا والذي نفسي بيده، او یا به په اسماؤ د خدای ﷻ وي نحو والرحمن والرحيم وغير ذالک، او یا به یو صفت د خدای ﷻ وي نحو بعزة وقدرته وجلاله الى غير ذالک.

**مسئله**: که چا په غیر ددې درو قسمو قسم واخستی لکه عوام الناس چي وایي چي زما دې په بیت الله شریفه قسم وي، او یا زمادې په نبي ﷺ قسم وي او یا دې زما پخپل پلار قسم وي، او یا عوام د پښتنو وایي چي زما دې په پیران پیر صاحب قسم وي، او یا زما دې په شاه آغا قسم وي، او یا زما دې په خرقه مبارکه قسم وي، نو دا د ایمانو قسم نه دی او په مخالفت سره

يې نه ګناه سته او نه کفاره بلکه دداسې قسمو اخستل مکروه دي، او امام شافعي رحمه الله وايي چې زه ېرېږم چې داسې قسمونه به معصيت وي يعني ګناه کبيره بلکه درويش وايي چې ېره د کفر پکښې سته لما ورد في الحديث النبوي ﷺ من حلف بغير الله فقد اشرک بالله.

**پوښتنه**: ددې حديث تاويل چې علماء داسې کوي من حلف بغير الله معتقدا تعظيم ذالک الغير فقد اشرک المحلوف به مع الله في التعظيم المختص به تعالى؟

**ځواب**: درويش خو هم حکم په شرک سره نه دی کړی بلکه وه يې ويل چې زه ېرېږم او دا ظاهره خبره ده چې په بعض مذکوره قسمو کې خو عوام تعظيم د غير الله يې مقصود دی، ولهذا امام علي رازي رحمه الله وايي چې که دا نه وايي چې عوام په ورته قسمو مبتلا او په پوهېږي نه لقلت انه الشرک لانه لايمين الا بالله اى باقسامه الثلاثة المذکورة.

**مسئله**: سړی دې داسې قسم نه اخلي که ما فلانی کار کړی وي نو زه به له اسلامه بېزاره يم لانه ان کان صادقا لن يرجع الى الاسلام سالماً وان کان کاذبا خيف عليه الکفر، ولهذا ورد في الحديث النبوي ﷺ الصحيح من حلف بملة بغير الاسلام کاذبا فهو کما کان.

**درويش وايي**: چې له ظاهره څخه د حديث مذکور داسې فهمېږي که يو مسلمان داسې ووايي که ما فلانی کار وکړی نو زه به يهودي يم او هغه کار يې وکړی نو يهودي سو، حضرت الامام الشافعي رحمه الله دغه حديث پر ظاهر حمل کوي يعني دغه سړی کافر سو، او حنفيه رحمهم الله وايي چې کافر نه دی البته ګناه کبيره ده، نو دوئ دا حديث محمول پر تهديد او زجر بولي له دې قسمه قسمو څخه.

**مسئله**: که يې پر ماضي کار دغسې قسم واخستی مثلا وه يې ويل که به ما فلانی کار کړي وي زه يې کافر يا يهودي. او هغه کار يې هم کړی و، نو

په حنفیانو رح کي اختلاف خو سته یعني بعض حنفیه رح وایي چي کافر سو یا یهودي سو، لکن صحیح داده چي ددغه سړي دا عقیده وه چي دا خو صرف قسم دی نو نه کافر کېږي، او که دده عقیده داوه چي په ورته قسم سره سړی کافر کېږي، نو کافر سو لانه رضی بالکفر والرضی بالکفر کفر عند الائمة. وهذا محمل الحدیث المذکور عند اکثر المحدثین والفقهاء رح

**مسئله**: په فتاوی بزازیه کي وایي والفتوی علی انه یمین یلزم علیه الکفارة فتامل فیه جداً.

## لِلَّذِينَ يُؤْلُونَ مِن نِّسَآئِهِمْ تَرَبُّصُ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ

او هغه کسانو لره چي قسم واخلي له جماع څخه د مایینو خپلو، انتظار سته د څلورو میاشتو.

**پوه سه**: چي قتاده رضی الله عنه وایي چي "ایلاء" طلاق و په جاهلیت کي. والصحیح ماقال ابن المسیب رضی الله عنه چي ایلاء ظلم و د سړي پر مایني باندي یعني چي د سړي به ماینه نه وه خوښه او دا به یې هم غیرت نه منل چي دی یې طلاقه کړي او بل مېړه وکړي، نو به یې ایلاء ورسره وکړه په داسي الفاظو چي والله لا اقربک ابداً، نو دا ښځه بېچاره مظلومه به نه کونډه وه چي بل مېړه یې کړی وایي او نه مړوښې وه ولې چي مېړه وطي نه ورسره کولې. نو اسلام چي د عدالت پر بنسټ ولاړ و دا ظلم یې له منځه یوړی، او فقط پر څلورو میاشتو یې محصور وګرځاوه.

**پوه سه**: چي د اعراب له لاري "تربص" مبتداء ده او للذین آه یې خبر دی، او اضافت تربص و ظرف زمان ته یعني اربعة اشهر ته مجاز دی یعني ظرف یې جاري مجری المفعول به ګرځولی دی، نحو سیرة یوم ای سیرة شخص في یوم. والمعنی چي په دې څلورو میاشتو کي د مېړه ته مطالبه د رجوع سته او نه مطالبه د طلاق.

**پوه سه:** چي د ایلاء شرعي صورت دادی چي مېړه ومابینې ته ووایي والله لا اقربک اربعة اشهر، او یا بالا تر څلورو میاشتو. او یا داسي ورته ووایي لا اقربک بدون التقیید بالشهور، او ایلاء لغوي داده چي له جماعو څخه د مابینې قسم واخلي کم تر څلورو میاشتو، نو دی مولي نه دی بلکه حالف دی، نو که ده جماعي په کم کي د مده مذکوره ورسره وکړې نو پر ده باندي کفارة الیمین لازمه ده، او که یې هغه مذکوره مدت پوره کړی بېله وطي نو هیڅ نسته باندي.

**فائده:** ایلاء شرعي لره دوه حکمه دي، یو حکم الحنث دی، او بل حکم البر دی، د حنث حکم وجوب د کفارې دی کي یې وطي ورسره وکړې په مده کي د ایلاء ان کان یمین بالله، او که یې قسم په عتاق او په نذر مسمی سره کړی و، نو هغه جزاء پر واقع کېږي یعني العتق والنذر، او د بر معنا داده چي دی خپل قسم سر ته ورسوي یعني څلور میاشتي بېله جماعو پر تېري سي، نو مابینه یې په طلاق بائن سره طلاقه سوه، وهذا اذا كانت الزوجة حرة وان کانت امة فایلائها الشرعي بشهرین.

فَإِنْ فَآءُو فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٢٢٦﴾

او که دوئ یعني ایلاء کونکو رجوع وکړه یعني له قسمه د ترک الجماع د څلور میاشتي یعني په دننه کي د څلورو میاشتو وطي ورسره وکړې، نو خدای ﷻ غفور دی یعني هغه گناه چي مېړه په ایلاء سره مابینه ازاره کړې وه وروبخښي، او مهربانه دی.

**پوه سه:** چي مظهري په دې آیت کي یو وار بیا تائید د مذهب د امام مالک، امام احمد او د امام شافعي رحمهم الله کړی دی او دا آیت یې پر مذهب ددغو حضراتو حمل کړی دی، او د امام اعظم رحمه الله مذهب یې پر قرائت شاذه د ابن مسعود رضي الله عنه حمل کړی دی چي په هغه کي داسي راغلي دي: فان فاوا فيهن او بیا یې په ډېره جگر خوني سره دا آیت پر قرائة

متواتره موافق د امام اعظم ابو حنفیه رحمه الله د مذهب سره کړی دی. زه ودې ته حیران یم چي ولي امام مظهري رحمه الله په اول کي د تفسیر د آیت مذکوره دغه خبره چي په آخیر کي یې کړې ده نه کوله لکه چي صاحب د روح البیان کړې ده. یعني اجمالا بدون الاشارة الی السوال والجواب. او زما په فکر ددوئ قول ته بیضاوي شافعي المذهب کتلي دي ولذالک قال الشافعي لا ایلاء الا في اکثر من اربعة اشهر انتهی ولله در صاحب روح المعاني رحمه الله حیث آتی في تفسیر الآیة المذکورة بتحقیق انیق واثبت مذهب الحنفیة بتدقیق عجیب فطالع تفسیره في هذا المقام وطالع تفسیر المظهري ایضا من هذا المقام یتبین لک الحال.

وَإِنْ عَزَمُوا الطَّلَاقَ فَإِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٢٧﴾

**درویش وایي:** چي ترجمه د آیت پر مذهب د سید الآئمة ابو حنیفه رحمه الله داسي ده که چېري داسې چي ایلاء یې کړې ده عزم او ټېنګ قصد ولري پر وقوع د طلاق یعني پر ترک د رجوع ومایني ته همېشه توب وکړي حتی چي څلور میاشتي تېري سي طلاق واقع کېږي بېله د تطلیق دده، نو په تحقیق خدای رحمه الله اورېدونکی دی دده د ایلاء او خبر دی دده په نیت چي دا څلور میاشتي ولي رجوع نه کوله، او د امام مالک، امام شافعي او امام احمد رحمهم الله په نېز یې ترجمه داسي ده چي که دغه مولي رجوع پسله تېرېدو څخه د څلورو میاشتو ونه کړه او قصد یې د طلاق په زړه کي و او طلاقه یې کړه په خوله، نو خدای جل جلاله آه. والدلیل علی مذهب الحنفیة علی مافي المظهري والفتح انه لو لم یقع الطلاق بمضی اربعة اشهر لجاز له ایضاً بعد الاشهر فلایکون الفیئ بقوله فیهن علی قرائة ابن مسعود رضي الله عنه معنی کما لایخفی او که مونږ ووایو چي دته رجوع وروسته تر اشهر اربعه نه ده روا بلکه پر ده تطلیق لازم دی حتماً یلزم خرق الاجماع المرکب من اقوال الائمة الاربعة اذ لم یقل به احد.

# وَالْمُطَلَّقٰتُ

**درویش وایي:** چي علامه بغداد مرجع اهل العراق ومفتي بغداد العلامة ابي الفضل شهاب الدین السید محمود الآلوسي البغدادي المتوفی في سنه (۲۷۰) رحمه الباري پخپل تفسیر روح المعاني کي وایي چي له مطلقات څخه مراد دادی چي دوئ به حر وي، او ذوات الاقراء یعني ذوات الحیض به وي او وطي به هم ورسره سوي وي، او حوامل به هم نه وي لما قد بین في الآیات والاخبار ای الاحادیث النبویه ﷺ ولي چي د مینځي عده د طلاق په هغه حدیث سره ثابته ده ﴿طلاق الامة تطلیقتان وعدتها حیضتان﴾ رواه الترمذي و ابو داؤد وابن ماجه والدارمي من حدیث عائشة ؓ، وایضا اجمع الامة علی ذالک. او پر غیر مدخول بها خو عده نسته لقوله تعالی في سورة الاحزاب ﴿یا ایها الذین آمنوا اذا نکحتم المؤمنات ثم طلقتموهن من قبل ان تمسوهن فما لکم علیهن من عدة﴾ اود حواملو ښځو عدت خو وضع الحمل ده لقوله تعالی ﴿واولات الاحمال اجلهن ان یضعن حملهن﴾ او عده د هغو مطلقاتو چي حیض یې نه وي یا په سبب د صغر سن اویا په سبب د کبر سن د هغو عده په درو میاشتو سره ده کما سیئاتي في القرآن ای قوله تعالی ﴿واللاتي یئسن من المحیض ان ارتبتم فعدتهن ثلاثة اشهر﴾ وروسته علامه بغدادي ؒ وایي چي الف ولام په "المطلقات" کي لپاره د استغراق نه دی لانه متعذر لما بین فتحمل علی الجنس کما قال الفقهاء في قوله الحالف لا اتزوج النساء. او حمل پر جنس یې په سبب د حکم آتي دی یعني یتربصن آه ثم قال وهذا مذهب ساداتنا الحنفیة لان الکلام المستقل الغیر الموصول ناسخ للعام والنسخ انما یصح اذا ثبت عموم الحکم السابق ولا عموم ههنا کما مر آنفا. وقال الشافعیة ؒ ان المطلقات عام یعني ان اللام للاستغراق وقد خص البعض بکلام مستقل غیر موصول فهو نسخ، انتهی کلامه الشریف وقد

قال المظهري رحمه الله هذا اللفظ عام ثم وثم الى ان قال ونسخ حکم هذه الآیة في ذوات الاحمال ثم قال وفي غير المدخول بها وذكر المظهري في نسخ ذوات الاحمال وفي المدخول بها الآيتين المذكورتين.

**درویش وایي**: چې اوس نو تاسو غور وکړئ چې کوم یو ددې دوو امامانو یعني علامه بغدادي رحمه الله او مظهري رحمه الله څخه صحیح حنفي المذهب دی او کوم یو په واقع کي شافعي المذهب دی پر درویش صرف نقل د عبارت د دغو دوو تفسیرو و هغه مي وکړی والله اعلم بالصواب في كل باب.

## يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ

دوئ به انتظار کوي یعني د بل مېړه پخپلو ځانو سره که بیې څه هم ومېړه او جماعو ته خواهش کېږي، لکن بیا هم مراعات د حکم د شرعي انور دي وکړي.

**پوه سه**: چي "يتربص" که څه هم لفظا جمله خبریه ده لکن دلته په معنا د امر ده یعني انتظار به کوي حتماً والسر في التعبير بالاخبار هو التاكيد في الامر كمابين في علم المعاني.

**سوال**: بعض نحات وایي چي انشاء خبر نه سي واقع کېدای بیله تاویله مثلا زید اضربه، تاویل به یې داسي کوي مقول في حقه اضربه نو یتربصن چي په معنا د امر سي نو تاویل ته ضرورت نه لري که څرنګه؟

**ځواب**: قول د نحاتو په هغه انشاء کي دی چي لفظا ومعنی انشاء وي کما في المثال المذكور، او دلته خو یتربصن لفظا خبریه ده البته کنایة یې معنا امر دی فلا يحتاج الى التاويل عند الكل، او بعض مفسران چي په مذکوره دقیقه نه دی خبر هغه په ځواب کي د سوال مذکور داسي وایي چي مجموع والمطلقات یتربصن جمله اسمیه خبریه ده او په معنا د انشاء ده ای ليتربصن المطلقات فلا يكون للانشاء خبرا.

## ثَلٰثَةَ قُرُوْءٍ ط

درې حیضه یعني په دغه مده کي دا مطلقه به بل مېړه نه کوي.

**پوه سه**: چي لفظ د "قروء" په اجماع د اهل لغت مشترک لفظي دی په منځ کي د دوو ضدو یعني الحیض والطهر، نو امام شافعي او امام مالک وايي چي مراد له "قرء" څخه په دې آیت کي طهر دی وهو المروي عن عائشة ﷺ وابن عمر وزید ابن ثابت رض، او ابو حنیفه او احمد رح وايي چي مراد له "قرء" څخه حیض دی په ډېرو دلائلو چي په کتابو د فقهي حنفي او د اصول الفقه کي مذکور دي.

**الاول**: ان لفظ د ثلاثة لفظ خاص دی په عدد معین پوري، او درې نه پوره کېږي مګر په حیضو کي، ولي چي طلاق سني خو هغه دی چي په طهر کي به وي، نو چي سړی بعض ورځي د طهر د مابنې يې تېري سوې طلاقه يې کړه، نو دغه باقي ورځي د طهر ددې په عده که اعتبار ونه لري دا خو خلاف الاجماع ده، او هيڅ چا هم قول نه دی په کړی، او که يې حساب کړي نو خو دوه طهره او بعض د طهر سوه درې نه سوه پوره.

**سوال**: ممکنه ده چي دغه دوه طهره او بعض ته د طهر دي مجازاً ثلاثة اطهار وویل سي؟

**ځواب**: که دا ممکنه وي نو په هغه آیت کي ﴿فعدتهن ثلاثة اشهر﴾ دوې میاشتي پوره او د دریمي بعض چي تېر سي باید د مطلقې عده پوره سي ولم یقل به احد.

**پوښتنه**: په هغه آیت کي ﴿الحج اشهر معلومات﴾ دوې میاشتي او لس ورځي لفظ د اشهر چي جمع دی نه دی ویل سوی؟

**ځواب**: هو! ویل سوی دی لکن په هغه آیت کي خو لفظ د ثلاثة نه دی راغلی نو په هغه کي خو مجاز روا دی، او د عده په باره کي خدای ﷻ داسي نه دي ویلي فعدتهن قروء بلکه ثلاثة قروء يې ویلي دي، نو دا آیت نص په درو کي مجاز نه دی پکښي روا.

**سوال**: مذکوره پوښتنه خو په هغه طلاق کي کېدای سي چي سړی مابنې ته چي بعض ورځي د حیض يې تېري سوې وي طلاق ورکړي آیا دغه باقي

ورځي د حيض که يې په عده کي حساب سي نو خو دريٍ حيضه پوره نه سوه بلکه حيضان وبعض ثالث سوه او که يې نه کي حساب بلکه درې حيضه مستقل غوښت غواړي بيا خو عده تر درې حيضه بالا سوه؟

**ځواب:** طلاق في الحيض خو طلاق بدعي دی بالاتفاق او خدای ﷻ خو بيان د طلاق سني کوي، فلاباس بالاعتداد بذالک البعض من الحيض من العدة.

**والثاني:** په حديث صحيح کي راغلي دي «طلاق الامة تطليقتان وعدتها حيضتان» او سره ددې چي د امت اجماع ده چي د حرې او مينځې صرف په عدد کي د عدې فرق دی، په نفس عده کي يې فرق نسته، نو دا معلومه سوه چي عده د حرې ښځي درې حيضه دي.

**والثالث:** مشروعيت د عدې خو لپاره ددې دی چي دا معلومه سي چي ښځه خو حامله نه ده چي دې ته په فقه کي برائة الرحم وايي، او دا معلومات خو په حيض سره کېږي ولي چي حاملې ښځي له حيض نه ورځي په طهر نه کېږي، لکه مېنځه چي سرې رانسي برائة الرحم به يې په حيض سره کوي بالاتفاق، مظهري رحمه الله وايي چي د حنفيانو مذهب منقول دی له خلفاء راشدينو رضي الله عنهم څخه او د عبادلة ثلثة رضي الله عنهم وو څخه، او ابي بن کعب، معاذ بن جبل، ابي الدرداء، عبادة بن الصامت، زيد بن ثابت، ابو موسی اشعري او معبد الجهني رضي الله عنهم څخه او په تابعين کي منقول دی له سعيد بن المسيب، ابن جبير، عطاء، طاوس، عکرمه، مجاهد، قتاده، ضحاک، حسن بصري، مقاتل، شريک انفاضي، ثوري، اوزاعي، ابن شبرمة، ربيعه، والسدي، ابو عبيدهٔ، اسحاق او احمد بن حنبل رحمهم الله هم ودې مذهب ته رجوع کړېده

**درويش وايي:** چي زمونږ د مذهب حنفي نور ډېر دلائل سته که څوک غواړي چي زه ئوله دلائل زده کړم نو مفصلي شرحي د احاديث مبارکه وو لکه شرح معاني الآثار د فقيه ابو جعفر طحاوي او عيني شرح د بخاري د بدر الدين او شرح د مشکوة لملا علي قاري او فيض الباري، او نوري شرحي د کتابو د احاديثو مبارکه وو دي مطالعه کړي، او په کتابو کي د

فقهي حنفي وو دي فتح القدير شرح الهداية او عيني شرح الهدايه او نور مفصل كتابونه د فقهي حنفي دي مطالعه كړي.

**درويش وايي:** چي د مذهب د امام شافعي رحمه الله هم متعدد دلائل سته او د حنفيانو له خوا د هغو ځوابونه سته چي د ټولو ذكر كول به ماته ډېر گران تمام سي، او ددې جزء د سيقول د تفسير به ډېر لوی حجم والا سي، نو ښه داده چي دا موضوع پر دغه ځای ختم سي مشت نمونه خروار مثل دائر دی

وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ أَنْ يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللَّهُ فِي أَرْحَامِهِنَّ

او نه دی روا مطلقاتو ته چي دوی به پټوي هغه څه چي په رحمو كي د دوی خدای جل جلاله پيدا كړي دي، يعني الحمل او الحيض د يو غرض فاسد لپاره. مثلا ښځه مطلقه په ځان خبره وي چي د دوو مياشتو مثلا حمل لرم نو ددې عده خو ډېره ځنډېږي، نو دا ووايي چي زه حيضو والا يم غرض يې دا وي چي ژر مي عده تېره سي، تاچي حق د مېړه په رجوع كي د طلاق رجعي ژر ورباطل كړي

**مسئله:** ددې آيت څخه دا معلومه سوه چي قول د ښځي په باره كي د حمل يا حيض مقبول دی اذا لم يكذبه الظاهر مثلا د ښځي خېټه په حمل سره ډېره غټه وي چي هر څوک په پوهېدی چي دا حمل لري او دا وايي چي زه له ذوات الحيض څخه يم.

إِنْ كُنَّ يُؤْمِنَّ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ

كه ددوی ايمان وي پر خدای جل جلاله او پر ورځ د آخرت. ولي چي ايمان مذكور باعث دی د حق ويلو لپاره.

**درويش وايي:** چي دا جمله شرط دی او جزاء په مادل عليه ما قبله يعني ان كن آه فلا يكتمن آه.

وَبُعُولَتُهُنَّ أَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ فِي ذَٰلِكَ

او مېړونه د مطلقاتو حقداره دي چي په ردلو سره د مطلقاتو مانيو ونكاح

نه يعني په رجوع سره په زمانه کي د تربص يعني د عدې ولې چي عده تېره
سي بيا مېړه ته حق د رجوع نسته بلکه نکاح جديد خواړي بالتراضي.

**فائده**: بعولة جمع د بعل ده او جمع د بعلة نه ده ولې بعلة خو ښځي ته وايي.

**سوال**: لفظ د بعل خو مذکر دی، نو تاء التانيث څرنگه پکښي راغله؟

**ځواب**: لفظ تاء لپاره د تاکيد د تانيث د جمعي دی، ولې چي جمع په اعتبار
د تاويل بلفظ الجماعة مونث دی، او تاء يې لپاره د تاکيد دغه تانيث ده.

**فائده**: بعل په لغت کي مالک او سيد ته د مينځي وايي نو مېړه ته چي
بعل وايي په دې سبب چي مېړه خو نفقه او کالي وغيره د ماينې ورکوي. نو
گويا دی يې سيد او مالک دی.

**فائده**: احق په دې آيت کي په معنا د تفضيل نه دی ولې چي تر مېړه بل
حقداره خو نسته. نو احق په تحقيق صفت مشبه دی.

**فائده**: رجوع گاهي په ژبه وي او گاهي په فعل لکه جماع وغيره.

**فائده**: ضمير د "هن" دواړه ځايه راجع و مطلقاتو ته دي.

**پوښتنه**: مطلقات خو طلاق رجعي والا او طلاق بائن خفيف او بائن مغلظ والا
ټولو ته شامل او حق د رجوع خو يوازي طلاق رجعي ورکونکو ته سته وبس؟

**ځواب**: د علامه بغدادي رحمه الله کلام دمخه تېر سو چي هغه د المطلقات
لام د جنس وتياکي او دا خبره عقلاً ونقلاً ثابته ده چي جنس ته نسبت د حکم
د بعض افرادو روا دی نحو الانسان ضاحک بالفعل ای جنس الانسان
باعتبار تحققه في بعض الافراد. ولهذا قال صاحب روح البيان والضمير
لبعض افراد المطلقات لان هن عام شامل للمطلقة بالطلاق رالرجعي
والبائن لاحق لازاوج المطلقات البوائن في الرجعة.

**فائده**: رجوع د مېړه صحيح ده که ماينه راضي وي او که نه لانه حق مستقلاً له.

## إِنْ أَرَادُوٓا۟ إِصْلَٰحًا ۚ

که قصد وو د رجال په رجوع سره اصلاح د ذات البين ددوئ او د ماينو

ددوئ، یعني لا الاضرار بهن.

**پوه سه**: چي د اهل جاهلیت به دا عادت و چي ماینو ته به یې درد راغلی نو به یې طلاق رجعي ورکړی څرنګه چي به د ښځي عده وتېرېدو ته نژدې سوه رجوع بالقول به یې ورته وکړه او بیرته به یې طلاقه کړه ثم وثم تر هغه وخته پوري چي ښځه او قرباء د ښځي به په ورکړه د مال راضي سوه یعني چي دغه مال واخله او رجوع مه ورته کوه، څه وخت چي اسلام چي د عدالت پر بنسټ ولاړ دی دا ظلم یې له منځه یووړی او حق د رجوع ې پر دوه طلاقه باندي ودراوه، یعني وروسته تر دریم طلاق حق د رجوع مېړه نه لري.

**پوه سه**: چي مفسرین ټول متفق دي چي اراده د اصلاح شرط د صحت د رجوع نه دی بلکه که په قصد د ضرر یې رجوع ورته وکړي رجوع یې صحیح ده بلکه دا شرط منع د نرو له قصد څخه ده اضرار او باعث کول دي پر اصلاح.

**فائده**: مور د مخه وویل چي رجوع ګاهي په فعل سره وي لکه جماع، دا مذهب دی د امام اعظم رحمه الله او امام احمد رحمه الله، نو ددې معنا داده چي وطي د مطلقه رجعیه سره په عده کي روا دي، او مېړه په وطي سره مراجع ګرځي، او امام شافعي رحمه الله وایي چي وطي یې په عده کي نه دي روا ولي چي قاطع د زوجیت یعني طلاق موجود سو، مور وایو چي نعم طلاق خو واقع کړه سو لکن حکم د طلاق چي فرقت دی د مېړه او د ماینې تر منځ خو متاخر دی تر انقضاء پوري د عدې په قرینه ددې چي د عدې په ورځو کي که یو له مېړه او ماینې څخه مړ سي هغه بل میراث وړای سي اجماعا، نو که زوجیت قطع وایي نو خو میراث یې نه سوای وړای، او بل قرینه داده چي مېړه رجوع ورته کولای سي بېله رضاء د ماینې که زوجیت قطع وایي نو رضا د ماینې به ضروري په رجعت کي وایي، او بله قرینه داده چي مېړه رجوع ورته کولای سي بېله رضاء د ماینې که زوجیت قطع وایي نو رضاء د ماینې به ضروري په رجعت کي وایي، او بله قرینه داده چي د عدې د ورځو

نفقه د ماینې پر مېړه واجبه ده كه نكاح قطع وايي نو نفقه به يې ولي پر مېړه واجبه وايي، او تر ټولو توی دلیل پر عدم قطع د نکاح د عدې په شپو داده چې خدای ﷻ سره د طلاق رجعي له مېړه څخه تعبير په بعل سره کړی دی، نو معلومه داده چې بعيلة يعني مېړه والی دده باقي دی په ورځو کې د عدې، شافعيه وايي چې اطلاق د بعل مجاز دی په اعتبار د ماکان دی کما في قوله تعالى ﴿وآتوا اليتامى اموالهم﴾ موږ وايو چې څه ضرورت دی ودې مجازته ولا يجوز حل الفاظ القرآن على المجاز بدون الضرورة، او بله قرينه د مذهب حنفي داده قال الله تعالى ﴿فامساك بمعروف﴾ وايضا قال الله تعالى ﴿امسكوهن بمعروف﴾ ولي چې لفظ د امساك پر بقا دلالت كوي نو بايد چې نكاح باقي وي.

**پوښتنه**: آیا په رجوع کې شاهدان غواړي او که څرنګه؟

**ځواب**: امام احمد او شافعي رح وايي چې شاهدان شرط دي. ولې په سورة الطلاق كې داسې خدای ﷻ وايي ﴿واشهدوا ذوى عدل منكم﴾ وقال ابو حنيفة والشافعي رح في اصح قوليه چې اشهاد نه غواړي. او د آيت جواب دادی چې محمول پر استحباب دی، والدليل على المذهب الحنفي دادی چې كه چېري اشهاد پر رجعت واجب وي. نو اشهاد پر فرقت باندې هم به واجب وي لقوله تعالى ﴿او فارقوهن بمعروف﴾ لمقارنته بقوله ﴿فامسكوهن بمعروف﴾ كذا قال المظهري رحمه الله.

## وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِي عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ ۖ

او مایینو لره پر مېړو باندې حقوق سته لکه هغه حقوق چې مېړو لره پر مایینو سته.

**پوه سه**: چې تشبيه په منځ کې ددې دوو حقوقو په مطلق وجوب کې ده او په دې کې چې هر يو د ماينې او مېړه څخه حق د مطالبې د خپل حق لري له هغه بل طرف څخه. او دا دواړه حقه پر هغه لاره دي چې په شرعي شريفي

سره ثابت دي، نو چونکه بناء د شريعت مطهره پر عدالت ده. نو بايد ميړه او ماينه يو وبل ته د اضرار قصد ونه کړي، له ابن عباس ﷺ څخه روايت دی چي ده وويل چي زه دا خوښ لرم چي زه خپل ځان ښائسته او مزين کړم د مايني لپاره، لکه زما ماينه چي ځان مزين کوي زما لپاره لقوله ولهن مثل الذي عليهن بالمعروف، له معاويه قشيري ﷺ څخه روايت دی چي ما وويل يا رسول الله ﷺ څه شی حق دی د ماينو پر يوه زموږ باندي؟ نو عليه السلام وويل ډوډی به ورکوئ که دې ډوډی غوښتل، او کالي به ورکوئ که دې کالي غوښتل، يعني بقدر قدرة الزوج في الفقر والغنى. او بل حق يې دادی چي پر مخ به يې نه وهئ؛ يعني په وخت کي د غضب يعني له دې سببه چي مخ معدن د قوی شريفه وو دی، او دې ته به بد نه وايي، او که چيري دا يو نافرماني وکړي او تا خوا بدی کړي ته به له دې څخه هجران نه کوې مگر نه په خون کي يعني په ځای کي يو ځای مه ورسره بد پره مگر د خوني به خندي وزې رواه احمد وابو داوٗد وابن ماجه ﷺ، وروی الترمذي عن ابي هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ اکمل المؤمنين ايمانا احسنهم خلقاً، يعني چي اخلاق يې ډېر ښه وي، وخيارکم خيارکم لنسائکم قال الترمذي حديث صحيح، وفي البخاري عن ابي هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ استوصوا بالنساء خيرا فانهن خلقن يعني اصلهن وهي حواء ﷺ من ضلع يعني من ضلع آدم ﷺ وان اعوج شيئ في الضلع اعلاء اعنى مايلي الصدر فان ذهبت تقيمه کسرته، يعني که ته قصد وکړې چي زه يې وښتې سيده او مستقيمي کومه نو به يې اخير ماتې کړې، يعني ښځه که تر خپل طبعيت را واړوې، نو اخير به يې طلاقه کړې "وان ترکته لم يزل اعوج" او که پرېښتې ته پرېږدې پر خپل حال نو د همېشه لپاره به کږه وي يعني که ښځه او خپل طبعيت سره پرېږدې نو همېشه به کوږ او ستا له طبعيته مخالف رفتار کوي "فاستوصوا بالنساء" نو قبول د وصيت وکړئ په باره کي د ښځو يعني د ماينو.

**يوه سه:** چي حاصل د حديث مبارک دادی چي ماينه که سړی د خپلي لاري له رفتاره اړوي وخپل طبعيت ته، نو اخير به مجبوره سي وطلاق ته ددې، نو بايد چي مېړه پر دغه کاره رفتار د ماينې صبر وکړي او خپله گزاره ورسره کوي

**درويش وايي:** چي صدق رسول اللهﷺ د ښځو دومره حيلې او مکرونه زده دي چي عقل ورتـه حيرانېږي او ډېر عاقل حازم کسان دوئ پـه درواغو ختايستلي دي گاهي پر کاذبانه پيريانو خان واچوي او د سر وښتيـان کاږي او خپلي غوښي په غاښو پرې کوي، او د مېړه يې يقين سي چي ماينه مي پيراني ده باره يې پر زيارتو گرځوي او يا پـه ملايانو تعويذونه ورکوي، او په حقيقت کي هيڅ شی نه وي تڅگي کوي د يو غرض لپاره او خپل غرض د هم دې لاري څخه لاس ته راولي، اهل تجربه په دې تڅگيو د ښځو پوهېږي، د تعجب خبره داده چي ولي د ښځو سره جنات دومره پـه کثرت ملگري کېږي چي پـه نـرو کي پنځه حصې د هغو جنيـاتو نستـه. نـو ځکه سړی مجبوره دی چي ماينـه دي لـه خپـل طبعيتـه نـه اړوي تـاچي نظام د کور او عيال په منظمه توگه روان وي.

**وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ ۗ**

او نرو لره پر ښځو يعني پر ماينو درجه عظيمه سته.

**درويش وايي:** چي اصل فضيلت د نرو پر ښځو باندي پـه عقل او دين کي دی لما ورد في الحديث الصحيح هن ناقصات عقل وديـن قلن ما نقصان عقلها قال عليه الصلوة والسلام چي ستاسي د دوو ښځو شاهدي پـه ځای کي د يوه نر د شاهدی، نه ده ولاړه قلن بلی قال صلعم فذالک من نقصان عقلکن. بيا عليه السلام وروسته ورته وويل چي آيا تاسي پـه مياشت کي څو ورځي په کور کي ناستي يايست نه لمونځ کوئ نه روژه نسئ قلن نعم قال صلعم فذالک مـن نقصان دينکم او کمـا قال رسول اللهﷺ . ولذا قال النبيﷺ که ما امر کولای يو څوک چي سجده وکړي ويوه چا ته نو ما به امر

کولای ماینې چې سجده دې کوي ومېړه ته لما جعل الله لهم علیهن من حق، رواه ابو داوٗد والترمذی واحمد والبغوي رح، وعن ام سلمة رض قالت قال رسول الله ﷺ ایما امرئة ماتت وزوجها عنها راض دخلت الجنة رواه الترمذي، او د طلق بن علي رض څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل که سړي وغوښتل ماینه دستي به ورځي که څه هم پر تنور ناسته وي یعني ډوډۍ پخوي رواه الترمذي

**درویش وایي:** واین هذا القدر من الاطاعة للزوج في الدور الحاضر، قال الله تعالی ﴿الرجال قوامون "ای مسلطون" بما فضل الله بعظهم "ای الرجال" علی بعض "ای النساء" ای بسبب کمال عقلهم ودیانتهم ونقصان عقلهن ودیانتهن کمامر، وبما انفقوا من اموالهم کالمهر والنفقة واللباس والمسکن والقیام بمصالحها وانفاق ماله عند مرضها الی غیر ذالک.

**درویش وایي:** چې ددې آیت په سبب مېړه لکه مالک د ماینې دی حتی چې ماینه چې مېړه یې پر کور وي نفلي روژه به نه نسي مگر په اجازه د مېړه، او له کوره به نه وزي بېله اجازې د مېړه، او مېړه خدای ﷻ قادر گرځولی دی پر طلاق د ماینې، او چې طلاقه یې کړي بیا قادر دی پر رجوع ودې ته که دا راضي وي او که نه وي.

وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۲۸﴾

او خدای ﷻ غالب دی یعني پر انتقام له هغه چا څخه چې مخالفت د امر الهي وکړي، او هر حکم د خدای ﷻ خالي له حکمت او مصلحت څخه نه دی.

**درویش وایي:** چې چونکه غالبه په ښځو کي شر دی نو ځکه یو سړي چې وویل چې زما کور ته هیڅ شر نه دی داخل سوی، نو حکیم ورته وویل چې ماینه دي له کومي خوا راغلې ده، سعدي شیرازي رحمه الله وایي.

دلارام باشد زن نیک خواه — ولي از زن بد خدایا پناه

**درویش وايي:** چي روح البيان په ډېره پوره قصه په دې باب کي راوړې ده دی وايي چي په بني اسرائيلو کي يو صالح او عابد بنده او دده يوه ماينه وه چي ده ډېر محبت ورسره درلودی، نو نبي ته د هغه عصر خدای ﷻ وحي وکړې چي ته فلانی صالح بنده در وغواړه، او ورته ووايي چي خدای ﷻ ستا درې خواستونه قبلوي، نو ته مختاره يې چي کوم سوالونه کوې. هغه نبي هم هغه سي وکړه، صالح سړي ورته وويل چي زه يوه ډېره محبوبه ماينه لرم د هغې سره به زه مشوره وکړم، نو کور ته چي راغلی او ماينې ته يې مذکوره موضوع پېش کړه هغې ورته وويل چي يو خواست زما لپاره وکړه او دوه د خان لپاره، نو مېړه ورته وويل چي ستا څه حاجت دی؟ ماينې ورته وويل چي ماته دي خدای ﷻ داسي ښائست فوق العادة راکړې چي چا تر اوسه په موجوده وخت کي نه وي ليدلی، نو صالح مېړه چي دا خواست وکړی، نو ماينه يې داسي نوراني او ښائسته سوه چي ټوله خونه په روښانه سوه. د ښځي چي دا ښائست په برخه سو ياره ولاړه سوه مېړه يې ورته وويل چي چېري ځې، ماينې ورته وويل چي سلطان الوقت مېړه کوم، او دا خدای داده حسن او جمال ستا سره نه ضائع کوم، مېړه د وتلو څخه منع ورته وکړه اخير الامر سلطان الوقت خبر سو او ښځه يې په زوره څندي بوتله. نو صالح سړي وويل چي خدايه زما دوه خواستونه خو لا پاته دي. اول سوال مي دادی چي خدايه زما ياغي ماينه بيزو کړې، هغه چي بيزو سوه سلطان الوقت بيرته مېړه ته ورواستول، بيزو سوې ماينه چي د عبد صالح کورته راغله نو عبد صالح خدای ﷻ ته وويل چي خدايه زما يو خواست خو لا پاته دی، چي زما ماينه بيرته پخواني حالت ته رد کړې، ماينه يې پر پخواني حالت سوه فذهبت الحوائج كلها عبثا لاهي افلحت ولا هو انتهی كلامه روح الله روحه.

**درویش وايي:** چي که څه هم د خدای ﷻ د امر او نهي پوښتنه څوک نه سي کولای قال الله تعالی ﴿لا يسئل عما يفعل وهم يسئلون﴾ لکن بيا هم

خدای ﷻ د بعض احکامو حکم او مصالح او فوائد بیانول ډېر زیبا دي، او د مسلمانانو په زړو کي نورانیت د ایمان پیدا کوي

**پوښتنه**: څه حکمت الهي دی چي تفویض د طلاق یې ورجالو ته کړی دی، او ښځي یې له طلاق ورکولو څخه ومېړه ته بې برخي کړي دي؟

**ځواب**: نر څو خاصیته لري، یو غیرت لري او بل پوره عقل لري چي په هغه سره عواقب الامور ورته معلومېږي، او بل دینداري لري چي له ضرره وبل ته خصوصا عاجزانو ته پر هېز کوي، او که څه هم حسن پرست وي او ښائسته ښځه یې خوښه وي، خو بیا هم د عقل او دین پر بناء په دغه مقوله عمل کوي

بنده راسه د خدای خپل سه *** لکه پر ځان داسي پر بل سه

نو د بل په ښځه پسي په شهوت نه ګوري، او په داعیه د عقل او دین حتی الممکن ماینه چي عاجزه ده او دده لګه مینځه ده ضرر نه رسوي، او حتی المقدور یو ښه کالي او خوراک ومایني ته مهیا کوي الی غیر ذالک من خواص الانسانیة، او په سبب د غیرت خدا داده یې دا نه خوښېږي چي مایني ته دي طلاق ورکړي چي څو ورځي وروسته د بل سړي فراش وي، نو تر یوه حده پوري د مایني پر نافرمانیو او بدو اخلاقو باندي صبر کوي او له تحمله څخه کار اخلي حتی چي سخت مجبوره سي، نو په مایني ته طلاق ورکوي

**درویش وایي**: چي بناءً علی الاسباب المذکورة فوض الحکیم العلیم الطلاق الی الرجال، لان النساء في جمیع الامور المذکورة مخالفة للرجال بل هن متصفة باضداد تلک الخصال المذکورة فلهذا لم یفوض ذوالقدرة الباهرة الطلاق الیهن، نعم لهن حق الاعتراض والمرافعة الی الحکام في دفع ظلم بعض الازواج علیهن.

**پوه سه**: چي بیان د احوالو د رجال او نساء چي درویش وکړی بناء دی پر اعم اغلب فیهم وفیهن والا فقد یکون الرجل متصفا بصفات ذمیمة مخلة مضرة بالازواج اضعاف متضاعفة والنساء متصفة بصفات حمیدة داعیة الی حسن الاجتماع ومراعات الزوجیة والعلم عندالله علام الغیوب.

# اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ

**پوه سه**: چي طلاق چونکه صفت د ښځي دی نو دلته په معنا د تطليق دی چي صفت د نر دی او مراد ځندي طلاق رجعي دی چي لـه هغه قـول څخـه د خدای ﷻ وفهمېدی ﴿وبعولتهن احق بردهن﴾ او د مرتان معنی داده چي دا دوه طلاقه جلا جلا ورکړي يعني په يوه پلا دي نه ورته وايي انت طالق تطليقتين په قرينه ددې چي سړی دوې روپۍ وچاته ورکړي په يوه وار، داسي نه ويـل کېږي چي اعطاه مرتان بلکه داسي ويل کېږي اعطاه درهمين، نو جمع کول د دوو طلاقو يا د درو طلاقو په نېزد ابو حنيفه رحمه الله حرام دی، نو جمع د طلاقو کـه دوه او درې وي سني الوقوع دي او بدعي الايقاع دي، نو معنا د آيت داده چي هغه طلاق چي مېړه حي ده رجعت لري دوه دي ولي کـه دريم هم ورکړي بيا حق د رجعت نـه لري بلکـه پـه نکاح جديده لکه طلاق بائن هم نه رواکېږي بلکه زوج آخر غواړي.

**پوه سه**: چي "الطلاق مرتان" مبتداء او خبر دي نو ظاهرا.جمله خبريه ده لکن دلته په معنا د انشاء ده يعني فرقوا بين التطليقتين، په دليل ددې کـه يې پر خبريه پرېږدي خلف په کلام کي د خدای ﷻ لازمېږي ولي چي دوه طلاقه جملة څو هم د خلگو تر خوله وزي، والخلف في کلامه تعالى محال کما تقرر في کتب العقائد.

**مسئله**: درې طلاقه پر يوه ځای ومايني ته ورکول بدعت دی او حرام دی يعني مېړه گناه کبيره وکړه لکن واقع کېږي، او چي دی درې طلاقـه پـه درې طهرو کي ورکړي مباح او شرعي دی.

**مسئله**: ښه طلاق دا دی چي مېړه په يو عذر د اعذارو د مايني وطلاق ته مجبوره سي، نو يو طلاق دي ورکړي او رجوع دي نه ورته کوي چي عده تېره سي ځندي خلاص به سي وذالک لان الطلاق ابغض المباحات عند الله والضرورة تدفع بالواحدة.

**مسئله**: الطلاق في الحيض يقع طلاقا باجماع الائمة الاربعة لكنه حرام ويجب الرجوع ثم الطلاق في الطهر.

**پوښتنه**: كه د غسې سړی وكړي يعني رجوع يې ورته وكړه او بيا په طهر كي طلاق وركړي دا نو يو طلاق دی او كه دوه؟

**ځواب**: دوه طلاقه خو دي لكن له حرمت څخه خلاص سو.

فَإِمْسَاكٌۢ بِمَعْرُوفٍ أَوْ تَسْرِيحٌۢ بِإِحْسَٰنٍ ۗ

يعني حكم الهي پسله دوه طلاقه دادی چي يا دي خوندي كړي يعني رجوع دي ورته وكړي پر شرعي طريقه يعني د مصاحبت او د ښه ژوند تېرولو لپاره نه قه قصد د ضرر كما في الجاهلية على مامر، او يا دي پرېږدي د احسان پر لاره يعني رجوع دي نه ورته كوي څو چي عده يې تېره سي پخپله به بائنه سي، او يو له احسانه څخه د مهره دا هم دی چي بل څوک به د ماينې له نكاح څخه نه متنفر كوي او ددې عيبونه دي وچاته نه وايي.

وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ أَن تَأْخُذُوا۟ مِمَّآ ءَاتَيْتُمُوهُنَّ شَيْـًٔا إِلَّآ أَن يَخَافَآ أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ ٱللَّهِ ۖ

او نه ده روا وتاسي ته چي اخلئ به له هغه ماله څخه چي تاسي مطلقاتو ماينو ته وركړی دی يعني من المهر، نو مخاطب په لكم سره مړونه دي، هيڅ شی يعني نه ډېر او نه لږ، مګر نه هغه وخت چي مېړه او ماينه پر دې ببرېدل چي كه موږ خولعه ونه كړو حدود د خدای ﷻ يعني د ازدواج به پر ځای نه كړو، روح البيان وايي چي مخاطب په لفظ د لكم سره حكام او قضات دي په دې قرينه چي په ان خفتم سره چي وروسته په آيت شريف كي به راسي مخاطب حكام دي

**سوال**: اخيستوني د مال او وركونكي د مال مېړه او ماينه دي حكام خو نه دي؟

**ځواب:** نعم لکن چونکه ورکول د مال او اخستل د مال د حکامو په حکم سره کېږي يعني عند الترافع اليهم. نو ګويا دوئ ورکونکي او اخستونکي دي، انتهى.

**يوه سه:** چي دا اوله خلع چي په اسلام کي وسوه او شان نزول ددې آيت په اتفاق د مفسرينو ؒ دادی چي جميله نامې يوه ښځه چي د عبدالله بن ابی بن سلول المنافق لور وه او د ثابت بن قيس ماينه وه، عليه الصلوة والسلام ته راغله او داسي يې وويل چي زما او د ثابت سر پر يوه شي يعني بالبنت به اينده نه ايښوول کېږي، او زياته يې کړه چي زه پر ثابت باندي نه په دين کي او نه په اخلاقو کي عيب وايم لکن د منافقت ګزاره مي نه ده خوښه او زه دده طاقت د مېړه توب نه لرم او بد مي خندي کېږي، او سبب د بد ورلو جميلې داسي بيان کړی چي يوه ورځ زما مېړه ثابت د نورو خلګو سره روان و، ما چي پلو د خيمې پورته کړی ثابت تر ټولو ملګرو سخت تور و، او تر ټولو ملګرو لنډ قد يې و، او مخ يې تر ټولو خلګو بد معلومېدی، نو مي له دې سببه بد خندي راغله، نو جميلې چي دا خبري د ثابت په مخ کي عليه السلام ته وکړې، نو ثابت وعليه السلام ته وويل چي دا امر کړه چي هغه باغ چي ماودې ته په مهر کي وکړی دی هغه دي بېرته ماته راکړي، نو زه به خلع ورسره وکړم. عليه الصلوة والسلام وجميلې ته وويل چي په دې خبره کي د ثابت څه وايې؟ جميلې وويل چي باغ خو يې ورکوم بلکه زائدي روپۍ به هم ورکړم. نو عليه السلام ورته وويل چي زائدي روپۍ مه ورکوه خو فقط هغه دده باغ ورکړه، نو عليه السلام وثابت ته وويل چي خپل باغ خندي واخله او ايله يې کړه او ثابت امر د عليه الصلوة والسلام ومانه او جميله يې خوشي کړه او خلع پای ته ورسېدل.

فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ
فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ

او که تاسي بېړبداست اي حاکمانو له شريعته پر دې چي دوئ دوه

يعني مېړه او ماينه نسي پر ځاى كولاى حدود د خداى ﷻ يعني احكام الهيه په باره كي د ازدواج يعني پر احكامو د شرع شريفي ګزاره نه سي سره كولاى، نو ګناه نسته پر دوئ دوو يعني مېړه او ماينه باندي په هغه مال كي چي ماينه يې په فديه كئ وركوي يعني په بدل الخلع كي يعني پر ماينه يې ګناه نسته په وركړه كي او پر مېړه يې ګناه نسته په اخستلو كي.

**پوه سه**: چي دا حكم چي پر دواړو ګناه نسته په هغه صورت كي ده چي نشوز يعني نافرماني د ښځي له خوا وي هذا كما قاله صاحب روح البيان لكنه لم ياتي بالتفصيل التام.

**درويش وايي**: چي د خلع د مسئلي تفصيل على ماذكر في الكتب الفقهية وذكر في بعض كتب التفاسير ايضا دادى چي پر مېړه دا ګناه ده چي مال د ماينې څخه غواړي مهر وغيره لقوله تعالى ﴿لايحل لكم ان تاخذوا مما آتيتموهن شيئا الآية﴾ او داغه رنګه پر ماينه باندي دا ګناه ده چي دا مېړه ته مال وركوي پر طلب د طلاق، ولي چي طلب د طلاق معصيت دى لقوله عليه اسلام ﴿ايما امرئة سئلت زوجها الطلاق من غيرما باس فحرام عليها رائحة الجنة﴾ رواه احمد والترمذي وابو داؤد ، نو وركړه د مال پر معصيت حرامه ده لكن مع هذا كه پر دې دوو ېېره وه چي حدود شرعيه او احكام الهيه په باب د ازدواج نسي پوره كولاى او په بقاء كي د زوجيت په ګنهو اخته كېږي، نو دواړو ته روا ده وركول د مال او اخستل د مال، لكن دا هلته چي خوف د نشوز دو جانبه موجود وي. او كه نشوز خاص د مېړه له خوا و، نو اخذ د مال ورده ته حرام دى قال صاحب الهداية ويكره احذ المال في الصورة المذكورة اى تحريما لانه اخذ مال المسلم بغير حق وامساكها لا لرغبة اضرار و تضييق لتقتع مالها وهو ايضا معصية. او كه نشوز د ښځي له خوا و بيا دا ګناه كاره ده او اعطاء د مال حرامه ودې ته ده لما تلونا من الحديث، او پر مېړه يې په اخذ كي د مال هيڅ ګناه نسته.

**مسئله:** که نشوز له یوه طرفه ښځه نه و او نه دوئ بېرېدل پر عدم اقامة د حدود الله، نو نه مېړه ته روا دی اخذ المال او نه ماینې ته روا دی ورکړه د مال او طلب د طلاق، لکن که بیا هم دوئ معصیت ته ونه کتل او خلع یې وکړه، خلع یې واقع کېږي او پر ماینه ورکړه د مال موعود واجبه ده. قضاء اجماعاً في جميع الصورة المذكورة.

**یوه سه:** چي په دې موضوع کي چي خلع طلاق دی او که فسخ د نکاح ده، امام اعظم ابو حنفیه او امام مالک والمشهور من مذهب الشافعي رح دادی انه طلاق. او امام احمد وفي رواية عن الشافعي رح انه فسخ لا طلاق.

**فائده:** هغه څوک چي خلع طلاق بولي هغه امامان وایي چي که یو چا ماینې ته دوه طلاقه ورکړي وه او بیا یې خلع ورسره وکړه درې طلاقه پوره سوه بېله زوج آخره نه ورته روا کېږي او که د عدې په ورځو کي یو مړ سي هغه بل یې میراث وړلای سي، او هغه امامان چي فسخ یې بولي هغه وایي چي له بله ښځه په ورځو کي د عدې میراث نه سي سره وړای، او دوئ وایي چي مېړه وروسته تر خلع بل طلاق نسي ورکولای لعدم النكاح بينهما والطلاق فرع للنكاح، او اوله ډله وایي چي که یو سړي وماینې ته یو طلاق ورکړی و او بیا یې خلع ورسره وکړه بیا هم بل طلاق ورکولای سي. ولي چي مېړه خو یو طلاق ورکړی و او په خلع سره دوه سوه نو یو طلاق یې پاته دی.

**یوه سه:** چي د تعجب خبره داده چي دواړي ډلي په دغه آیت سره دلیل وایي هغه امامان چي خلع فسخ بولي هغه داسي وایي چي خدای ﷻ په اول د آیت کي داسي وویل الطلاق مرتان" او بیا یې خلع ذکر کړه او بیا یې دریم طلاق ذکر کړی په دې عبارت "فان طلقها فلا تحل له الآية" نو که خلع هم طلاق وایي نو خو عده د طلاقو څلور کېږي وهو خلاف القرآن والحديث والاجماع.

**یوه سه:** چي دا دلیل منقول دی له ابن عباس رض په احادیثو کي راغلي دي چي چا له ابن عباس رض ښځه پوښتنه وکړه چي یو سړی چي ماینې ته یې

دوه طلاقه ورکړي کړي او بیا خلع ورسره وکړي نو یې نکاح ورته روا ده؛ ابن عباس رضي الله عنه ورته وویل ینکحها ان شاء ولي خلع خو فسخه ده، نو له طلاقو څخه خو یو پاته دی، نو یې نکاح بېله زوج آخره ورته روا ده.

**درویش وایي**: چي استدلال د حنفیانو په آیت مذکوره سره دادی چي خدای ﷻ هغه طلاق چي وروسته یې زوجیت روا دی ذکر کړی چي په دوه واره سره به وي، او بیا یې اسناد د افتداء وښخه ته وکړی بقوله فیما افتدت به او سره ددې چي سوق د کلام یعني قوله تعلی "فلا جناح علیهما" دا غواړي چي اسناد د فعل د افتداء یې ودواړو ته کړی وای یعني فیما افتدیا به یعني ورکړه د فدیه او قبول د فدیه، دا دلیل واضح ددې دی چي فعل د زوج هغه ماقبل فعل دی یعني الطلاق او وروسته یې وویل "فان طلقها فلا تحل له الآیة" او لفظ د فاء لفظ خاص دی د تعقیب لپاره کما تقرر في النحو، نو که طلاق بعد الخلع واقع نه سي نو مقتضی د فاء له منځه ځي، نو خدای ﷻ په دې آیت سره دواړي نوع د طلاق ذکر کړې چي بېله ماله وي او یا په مال سره وي چي افتداء د خلع ده، فتفکر غایة التفکر لدقة المرام، والتفصیل في المظهري وروح المعاني.

**مسئله**: د ټولو امامانو پر دې اتفاق دی چي خلع پر اکثر د مقدار ده، ولو روا ده لعموم الآیة المذکورة لکن یکره عند ابي حنیفة واحمد رح او اکثره علماء پر دې دي چي مکروه نه ده وهو روایة جامع الصغیر عن ابي حنیفة رحمه الله.

**درویش وایي**: چي هغه حدیث چي په شان نزول کي ددې آیت تېر سو یعني د جمیلې او د هغې د مېړه ثابت، چي جمیلې وویل چي زه د ثابت باغ خو ورکوم او زیاتي روپۍ هم ورکوم، او علیه السلام ودې ته وویل اما الزائد فلا پر دې دلالت کوي چي زیادت پر ولور مکروه دی، والله اعلم بالصواب في کل باب.

تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ فَلَا تَعْتَدُوْهَا ۚ وَمَنْ يَّتَعَدَّ حُدُوْدَ اللّٰهِ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۲۲۹﴾

او دغه اوامر او منهیات چي په دې آیاتو کي ذکر سوه موانع د خدای ﷻ دي یعني چي تر هغو به تېرى نه کوي څوک یعني اما بترک الاوامر او بارتکاب المنهیات. او که څوک تېرى وکړي، نو هغه ظالمان دي په حق سره.

**مسئله**: که د سړي ماینه عفیفه وي یعني منهیات شرعیه نه وه پکښي او د اوامرو د خدای ﷻ پائبنده وه نو مېړه باید بنه ژوند ورسره وکړي او پر نورو اوضاعو او سو اخلاقو ددې صبر وکړي او په ادابو او اخلاقو د رسول اللهﷺ خان موصوف کړي او په احادیثو مبارکه دي حسن المعاشرة د علیه السلام د ازواجو مطهرة رض سره او صبر د علیه الصلوة والسلام د ازواجو مطهره پر اوضاعو په غور سره مطالعه کړي، نو به يې خدای ﷻ د مجاهدینو في سبیل الله په ډله کي حساب کړي.

**پوښتنه**: صبر د سړي پر عباداتو نفلیه و او ځان ساتل له نکاح ځخه په دې سبب چي که ماینه وکړي نو په نفقه او مهر ورکولو د هغې به له عباداتو نفلیه وو ځخه محرومه سي کومه خواه فائده ده؟

**ځواب**: نکاح کول افضل دی تر نفلي عباداتو عند ابي حنیفة رحمه الله لان النکاح سیرة الانبیاء علیهم السلام کلهم الا یحی علیه السلام وروی انه تزوج في آخیر عمره اقتداء بسائر الانبیاء ع م.

فَاِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهٗ مِنْۢ بَعْدُ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ ؕ

نو که طلاقه کړه مېړه دغه ماینه چي دمخه يې دوه طلاقه وکړي وه، نو نه ده روا دغه ماینه ودغه مېړه ته وروسته تر دریم طلاق، یعني نه په رجوع سره او نه په تجدید د عقد تر هغو پوري چي دغه ښځه په نکاح کوي بل مېړه یعني غیر د سابق مېړه چي دې ته يې درې طلاقه ورکړي وه.

**فائده**: اجنبي سړي ته يې زوج ووايه په اعتبار د مايؤل اليه لانه بالعقد يصير زوجها كمافي قوله تعالى انى اعصر خمراً.

**فائده**: مراد له نكاح څخه نكاح صحيحه ده لان المطلق ينصرف الى الفرد الكامل.

**فائده**: د نكاح نسبت نر او ښځي دواړو ته روا دى لان النكاح ينعقد بالايجاب والقبول وهما يصدران منهما.

**فائده**: له نكاح څخه دلته مراد عقد دى، او وطي نه دي مراد، وعبارة القرآن يدل عليه لانه لايقال في العربية تطاء المرئة زوجها لان المرئة موطوئة لا واطئه او داغه په هره ژبه كي مثلا داسي په پښتو كي نه ويل كيږي چي ښځه مېړه غيي بلكه بالعكس، نو بناء پر دې بايد په مقتضى د آيت ددغې مطلقه ښځي حرمت ممتد سي تر عقد د تزوج پوري او جماع د زوج ثاني شرط نسي واليه ذهب سعيد بن المسيب يعني چي وطي د ثاني شرط نه دي، لكن اجماع د امت محمديه پر دې ده چي وطي د زوج ثاني شرط دي، ولي چي په حديث متفق عليه كي د ټولو محدثينو داسي راغلي دي چي ماينه د رفاعة وعليه الصلوة والسلام ته راغله او داسي يې ورته وويل چي زما مېړه زه طلاقه كړم فبت طلاقي يعني قطعي طلاق چي درې طلاقه دي رايه يې كړه وروسته زه عبدالرحمن بن زبير (بفتح الزاء وليس في الصحابة يعني بفتح الزاء غيره لان غيره بضم الزاء) وان مامعه يعني ذكره مثل هدبة ثوبي واخذت من جلبابها يعني ذكر يې لكه زما پوړنۍ داسي دى يعني كلك نه دريږي او دخول نه سي كولاى فتبسم رسول الله او ورته وه يې ويل چي ستا بيرته د رفاعة سره نكاح زړه غواړي؟ دې ورته وويل نعم! عليه السلام ورته وويل لا حتى تذوقي عسيلته ويذوق عسيلتک يعني نه سي رجوع ورته كولاى چي ته دده له عسلو څكه ونه كړې او دى ستا له عسلو څكه ونه كړي.



Scanned by CamScanner

**فائده:** رسول الله ﷺ خوند د جماعو مشابه کړی له خونده سره د عسلو.

**درویش وايي:** چي ټوله شراح الاحادیث نبویه ﷺ وايي چي علیه السلام لفظ د ذوق ووایه چي معنا يې خوند کتل دي د شي، او لفظ د عسیلة په تصغیر سره راوړي چي لپاره د تحقیر دی اشاره يې ودې ته وکړه چي په وطي کي د زوج ثاني صرف دخول الفرج في الفرج شرط لپاره د تحلیل وزوج اول ته دی انزال شرط نه دی لان الانزال شبع بالوطي لا مجرد الذوق، او بعض مفسرین رح وايي چي معنا د نکاح جماع ده په آیت کي.

**پوښتنه:** جماع کوونکی خو زوج دی او ښځه محل د جماع ده فکیف یصح اسناده الی المرئة؟

**ځواب:** اسناد د وطي او جماع وښځي ته مجازاً کېدای سي، والحاصل چي په آیت مبارک کي له مجاز څخه چاره نسته ولي که نکاح په معنا د عقد سي کما قال جمهور المفسرین رح نو مجاز په لفظ کي د زوج دی باعتبار مایؤل الیه کمامر سابقا، او که نکاح په معنا د وطي سي نو مجاز بې په اسناد کي وښځي ته دی.

**درویش وايي:** چي نکاح که په معنا د عقد سي نو خو مجاز په لفظکي د زوج لازم دی وهو مجاز في المفرد والمجاز في المفرد اسهل من المجاز في الاسناد کما یلزم علی التقدیر الثاني فتامل هداک الله.

**فائده:** د رفاعة ماینه تمیمه بنت وهب وه چونکه دی لکه دمخه چي تېره سوه د علیه السلام په مخ کي دا اقرار وکړی چي د عبدالرحمن بن الزَّبیر ذکر لکه ددې د پوړنې د آشې رنګه دی یعني قابل نه دی چي ددې فرج ته دي داخل سي، او علیه السلام دا منع کړه چي رفاعه ته بیرته نه سي مېړه کولای چي د عبدالرحمن ذکر ستا فرج ته داخل نه سو، نو ځه مده تمیمې رېغ نه کاوه، او بیا وعلیه السلام ته راغله چي زما مېړه عبدالرحمن زما سره جماع وکړې، نو اوس که مې دی طلاقه کړي بیا د رفاعه سره نکاح کولای سم، نو

عليه السلام ورته وويل چي كذبت بقولك الاول فلن تصدقك بالآخر، او دا بيرته نااميده ولاړه خو عليه الصلوة والسلام وفات سو . او حضرت ابوبكر صديق ﷺ خليفه سو، نو تميمه ابوبكر ﷺ ته راغله چي زما دوهم مېړه عبدالرحمن زما سره ښه سمي جماعي وكړې، نو زه اوس پسله طلاقه دله عبدالرحمن څخه ورفاعه ته روا يم. حضرت ابوبكر ﷺ ورته وويل په هغه ورځ چي ته عليه السلام ته راغلې او بيان دي ورته وكړی او عليه السلام ستا تكذيب وكړی حاضروم څه ولاړه سه ورفاعه ته رجوع د نكاح نسي كولای، بيا چي ابوبكر ﷺ وفات سو او عمر فاروق ﷺ خليفه سو. بيا تميمه وعمر ﷺ ته راغله او هغه دمخه بيان يې ورته وكړی، عمر ﷺ ورته وويل كه تا رجوع ورفاعه ته وكړه زه دي په رجم كوم، په دغه ارمان د رفاعه تميمه مړه سوه.

**درويش وايي:** چي بياد په دې قصه كي خلگ غور وكړي د ښځو په مكر او درواغو.

**پوښتنه:** چي د نكاح معنا عقدسي نو لكه ابن المسيب چي وايي بايد وروسته تر عقد بايد نكاح د اول مېړه سره روا سي، او شرطول د وطي په حديث مذكوره سره زيادت پر كتاب الله په خبر واحد سره نه لازمېږي، او دا زيادت كه څه هم په نېز د امام شافعي ﷫ او د نورو امامانو روا دی لكن ابو حنيفه ﷫ دا زيادت روا نه بولي فماتوجيه مذهب ابي حنيفة ﷫ ؟

**ځواب:** بعض فقهاء د مذهب حنفي وايي چي حديث مذكور مشهور دی، او زيادت په خبر مشهور سره پر كتاب الله په نېز د ابو حنيفه ﷫ روا دی، وهذا جواب ليس بصحيح ولي چي محدثين ټوله دا حديث خبر واحد بولي، والصحيح ما رواه الطحاوي ﷫ وغيره من فقهاء الحنفية چي دا حديث كه څه هم خبر واحد دی لكن چونكه اجماع د امت مرحومه پر موافق ددې حديث وسوه نو دا حديث مبارك ودرجې ته د شهرت ورسېدی فيجوز به الزيادة على الكتاب.

**سوال:** دومره تکلف ته ضرورت څه دی ولې زیادت پر کتاب الله باندې په اجماع الامة سره نه وایې؟

**ځواب:** په کتابو کې د اصول الفقه وایې چې زیادت پر کتاب الله څو نسخه د اطلاق د کتاب الله ده، وقد اجمعوا انه لایجوز نسخ کتاب الله بالاجماع والقیاس ویجوز بالحدیث الصحیح اما مطلقا یعني سواء کان خبرا واحدا او مشهورا کمامر من مذهب الشافعي رحمه الله وغیره، او بالحدیث المشهور کماهو مذهب ابي حنیفة رحمه الله والسر في ذالک انه علیه الصلوة والسلام لاینطق عن الهوی بل هو وحي یوحی کما ورد في القرآن العزیز.

**درویش وایې:** فاحفظ هذا التحقیق لعلک لاتجده في مطاوي الکتب الکبار والله الموفق.

**مسئله نادره:** پوه سه چې دغه مطلقه ثلاثه نه په ملک یمین او نه په ملک نکاح زوج ته روا کېږي، تر څو چې بل مېړه او د هغه مېړه وطي ومنځ ته رانه سي، نو که یو سړی مابنه په درې طلاقه طلاقه کړي او هغه ښځه مرتده سوه او دار حرب ته ولاړه، بیا مسلمانانو پر دار حرب غلبه وکړه او هغه مطلقه یې په مینځه والې راوسته او هغه اول مېړه یې په ملک یمین مالک سو، نو په دغه ملک یمین سره زوج ته یې وطي نه دې روا تر څو چې زوج غیره ته یې په نکاح ورنه کړي او هغه هم وطي ورسره وکړي او بیا یې طلاقه کړي، نو وروسته تر مرور د عدې وزوج اول ته روا کېږي.

فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا أَنْ يَتَرَاجَعَا إِنْ ظَنَّا أَنْ يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ ط

نو که طلاقه کړه زوج ثاني هغه ښځه یعني بعد الوطي معها، نو ګناه نسته پر ښځه او نر په دې سره چې دوئ یو له بله رجوع سره وکړي یعني په نکاح جدیده سره.

**پوه سه:** چي دليل د نكاح جديده دادى چي نسبت د رجوع يې ودواړو ته وكړى، ولي چي په نكاح جديد كي تراضي د نر او ښځي دواړه غواړي بخلاف مامر في الطلاق الرجعي لان الزوج مستقل في الرجعة څكه خداى ﷻ نسبت هوړي د رجعت ويوازي زوج ته كړى دى. فقال وبعولتهن احق بردهن" كه ددوئ غالب گمان دا و چي كه چېري موږ رجوع سره وكړو موږ به حدود د خداى ﷻ پر ځاى كړو، ومن فسر الظن بالعلم فقد اخطاء لان العلم هو اليقين ولاطريق الى اليقين لانه غيب ولا يعلم الغيب الا الله. واما الظن فقد يحصل بالقرائن الدالة.

**پوښتنه:** حكمت الهي څه دى چي په تحليل كي وزوج اول ته يې جماع د زوج ثاني شرط كړې او په مجرد عقد سره يې اكتفاء ونه كړه؟

**ځواب:** د خلګو منع كول دي له مسارعته وطلاق مغلظه ته په دې معنا چي انسان او نر غيور بالطبع دى او دا يې نه خوښېږي چي زما ماينه يو شپه تر بل لاندي پرته وي او هغه دي هم وطي ورسره كوي، نو به مرونه له درې طلاقو څخه اجتماعا او انفرادا ځان ساتي تاچي ددغسي پېغور له كاره خلاص سي، او نفس عقد خو چندان د نفرت او د پېغور كار نه دى، نو نفس عقد زاجر د خلګو له درو طلاقو څخه نه ګرځي.

**مسئله:** كه د دوهم مېړه نكاح مشروطه وګرځوي په مجرد تحليل سره يعني په عقد كي د نكاح دا شرط وګرځوي چي ته چي جماع ورسره وكړې بېرته دا ښځه طلاقوې، نو دا نكاح فاسده ده په نېز د اكثرو فقهاؤ وعند ابى حنيفة رحمه الله نكاح ثاني خو صحيح ده مع الكراهة. وهذا محمل الحديث "لعن الله المحلل والمحلل له" او زوج ثاني او ښځه كه يې په زړه كي دا وه چي وروسته تر وطي زوج ثاني طلاق وركوي مګر تصريح يې نه په وكړه فلاكراهة.

**درويش وايي:** چي زيلعي رحمه الله په شرحه كي د كنز وايي چي كه ښځه پر دې ببرېده چي زوج ثاني به پر ما تېنګ سي يعني نه مي طلاقوي، نو

داسي عقد دي ورسره وکړي چي زه ستا سره نکاح کوم په دې شرط چي زما کار به زما په لاس کي وي يعني په هر وخت کي چي زه خان طلاقوم طلاقولای به يې سم، او مېره چي دا شرط قبول کړي، نو پسله وطي د تحليل دا ځان طلاقولای سي.

**مسئله**: پر دې خبره خو اجماع ده او وطي د زوج ثاني درې طلاقه د منځه ځخه وړي او دا ښځه چي وروسته تر تحليل زوج اول په نکاح کړي مېړه يې يو وار بيا مالک د دروو طلاقو ګرځي اجماعاً. او که داسي پېښه سي چي مېړه ومايني ته يو طلاق يا دوه طلاقه ورکړي او بيا رجوع نه ورته وکړي او عده يې تېره سي او ښځه بل مېړه وکړي، په نکاح صحيحه سره او هغه مېړه يو وار يا ډېر وارونه وطي ورسره وکړي او بيا يې طلاقه کړي او وروسته تر عدې به يې زوج اول په نکاح کړي. آيا په دې صورت کي مېړه بيرته مالک د درو طلاقو دی او که د نکاح اول د باقي طلاقو يعني يو يا دوو طلاقو مالک دی، امام اعظم ابو حنيفه او امام ابو يوسف رح وايي چي هغه يو طلاق يا دوه طلاقه له منځه ځخه چي اول مېړه بيا مالک د دروو طلاقو دی، او امام محمد رحمه الله وايي چي نکاح او وطي د زوج ثاني فقط هادم د دروو طلاقوو دي او هغه يو طلاق او يا دوه طلاقه چي په نکاح قبلي کي مېړه ورکړي وه هغه پر ځای پاته دي.

**درويش وايي**: چي دلائل مفصله والجواب عنها خو په کتب د فقهي شريفي کي مذکور دي "زاوړل يې اطناب فحض دی" لنډ دليل د مذهب د شيخانو رح دادی چي وطي د ثاني مېړه چي هادم د حرمت غليظه سو اجماعا نو هادم د حرمت خفيفه په طريق اولی دی.

وَتِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ يُبَيِّنُهَا لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴿۲۳۰﴾

او دغه احکام مذکوره حدود د خدای ﷻ دي يعني چي تر دې حدود بايد څوک تېر نه سي او مخالفت يې څوک ونه کړي او نه څوک تغير پکښي

وكړي، او خداى ﷻ دغه احكام بيانوي وهغه قوم ته چي هغه د احكامو د خداى ﷻ په قدر پوهېږي او عمل په كوي.

**پوښتنه**: احكام قرآنيه خو عام التبليغ دي وټولو انسانانوته، نو تخصيص د قوم يعلمون يې ولي وكړى؟

**ځواب**: نعم لكن نفع پر احكامو الهيه وو او قرآنيه يوازي هغه قوم يعلمون اخلي ولهذا اخصهم بالذكر.

**بيت**

نكته گفتن پيش كرفهمان زحكمت بيگمان

جوهري چند از جواهر ريختن پيش خر است

وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ أَوْ سَرِّحُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ

**پوه سه**: چي مراد له اجل څخه عده ده، او د اجل اطلاق پر مدې هم كېږي او پر منتهى هم، نو څكه اجل مده د عمر د انسان او پر منتهى د عمر ده چي مرگ دى هم كېږي.

**پوه سه**: چي ابتداء د عدې پسله طلاقه كېږي، او پاى د عدې په اختلاف د احوالو د مطلقه هم معلوم دى، لكن دلته مراد حقيقي معنا نه ده ولي چي عده وپاى ته ورسېږي بيا خو مېړه ته داسي نه سي ويل كېداى چي فامسكوهن آه څكه چي عده چي پاى ته ورسېږي بيا خو ماينه بائنه سوه او مېړه حق د رجوع نه لري، بلكه مراد په آيت كي نژدې والى وپاى ته د عدې مجازا.

ترجمه د آيت داده چي تاسي چي طلاقي كړئ ښځي يعني مايني او دوئ نژدې سي وپاى ته د عدې، نو يې خوندي يعني رجوع نه وكړه پر شرعي لار، او يا پرېږده پر شرعي لار چي عده يې تېره سي بائنه به سي.

وحاصل الاية چي تاسي رجوع مه ورته كوئ په قصد د اضرار او ظلم كما في الجاهلية كمامر من قبل هذا.

## وَلَا تُمْسِكُوهُنَّ ضِرَارًا

یعني تاسي مه خونديٍ کوئ یعني رجوع مه ورته کوئ لپاره د ضرر، نو ضرارا" منصوب دی چي مفعول له دی د لاتمسکوهن، او یا ضرارا په معنا د مضارین دی، نو بیا منصوب دی او حال دی له ضمیره څخه د فاعل په لاتمسکوهن کي.

## لِّتَعْتَدُوا۟

چي تاسي ظلم وکړئ پر دوئ یا په تطویل د عدې، او یا مجبوره کول د ماینو پر فدیه او عوض مالي باندي، نو "لتعتدوا" هم مفعول به بلام التعلیل دی، او په عین حال کي بیان د ضرار هم دی.

**پوه سه**: چي خدای ﷻ اول دوئ امر کړه په امساک بالمعروف سره او بیا یې نهي کړه له ضد څخه د امساک بالمعروف چي امساک لاجل الضرار دی وروسته یې دا آیت ذکر کړی دی.

## وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُۥ

یعني که څوک دغسي وکړي یعني که لپاره د ضرار وماینو ته رجوع وکړي نو په تحقیق هغه سړي ظلم وکړی پر خپل ځان باندي ولي هغه خپل ځان وعذاب الهي ته پېش کړی بارتکاب المنهي عنه. نو حاصل د آیت دادی چي رجوع لپاره د اضرار یوازي پر ښځو ظلم نه دی بلکه پر خپل ځان باندي هم ظلم دی، نو عاقل او مسلمان کامل ته په کار ده چي داسي کار ونه کړي چي هم پر بل ظلم وي او هم پر خپل ځان.

**پوښتنه**: د اصول الفقه په کتابو کي وایي چي امر په شي نهي دی د ضد د مامور به، نو د "لاتمسکوهن" څه فائده ده وروستیه تر امسکوهن بالمعروف؟

**ځواب**: صاحب د روح البیان وایي چي امر په شي سره تکرار د مامور به نه غواړي کمابین في کتب اصول الفقه، نو امسکوهن آه پر دې دلالت نه کوي چي امساک بالمعروف دائماً مطلوب دی. نو لاتمسکوهن دلالت پر

دې کوي چې امساک بالمعروف مطلوب دی في جميع الاوقات، نو ګويا دا مبالغه ده په امساک بالمعروف کي.

وَلَا تَتَّخِذُوٓا۟ ءَايَـٰتِ ٱللَّهِ هُزُوًا ۚ

او تاسي مه ګرځوئ آيات د خدای ﷻ هزواً يعني سپکاوی يې مه کوئ، هزو مصدر دی په معنا د مهزو بها دی، او هزو د آيات الله داده چې اعراض خندي وکړي او سستي کوي په عمل بما فيهاکي. نو يا مراد فامساک بالمعروف دی او تسريح باحسان دی په قرينه د ماقبل او يا عموم مراد دی يعني کل من خالف الشرع تهاونا فهو متخذ آيات الله هزوا، او بعض يې معنا داکوي چې يو سړي به ماينه طلاقه کړه خو وروسته به يې ويل چې ما محض سات تېراوه، يعني طلاق مي نه و مقصود، او يا به يې مريې ازاد کړی، وروسته به يې ويل ما طبعيت رستګي کوله. وقد ورد في الحديث ثلاث جدهن جد وهزلهن جد، النکاح والطلاق والرجعة، وفي رواية ذکر العتاق موضوع الرجعة.

**درويش وايي**: چې حقيت هزو خو کفر دی، او مخاطب په دې آيتو کي خو مؤمنان دي، مؤمنان خو هزو بايات الله نه کوي، نو ځکه تولـه مفسران يې تفسير په لازم سره کوي، ای ترک العمل بايات الله فافهم.

وَٱذْكُرُوا۟ نِعْمَتَ ٱللَّهِ عَلَيْكُمْ وَمَآ أَنزَلَ عَلَيْكُم مِّنَ ٱلْكِتَـٰبِ وَٱلْحِكْمَةِ يَعِظُكُم بِهِۦ ۚ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمٌ ﴿٢٣١﴾

او تاسي په ياد کړئ نعمت د خدای ﷻ پر تاسي چې لـه جملې ځخه د نعمت الهي هدايتکم الی الاسلام وجعلکم من امة سيد الرسول ﷺ وغيرها

**يوه سه**: چې لـه ذکر ځخه مراد شکر د نعمت دی، او داغـه رنګـه پـه ياد کړئ هغه شی چې خدای ﷻ نازل کړی پر تاسي لـه کتاب ځخه چې مراد

خندي قرآن عظيم الشان دی، يعني بالعمل بما في الكتاب، او له حكمت
څخه چې مراد خندي آحاديث نبويه ﷺ دي چې وحي غير متلو دي يعني د
احاديث نبويه وو هم امتثال په اوامرو او نواهي کې، او خدای ﷻ وتاسي ته
نصيحت کوي په ما انزل عليکم سره، او له خدای ﷻ څخه بېرېږئ چې تقوی
مدار د ټولو اوامرو د امتثال ده او د انتهاء عن المنهيات ده، او پوه سئ
چې خدای ﷻ په هر شي خبر دی ولايخفى عليه شيئ.

**درويش وايي**: که څه هم آيات سابقه په خصوصيت د مېړه او مايني کې
نازل سوي دي، يعني چې مېړه بايد ماينه ازاره نه کړي، او ضرر نه ور
رسوي په طلاق او په رجوع کې، لکن د حرمت د ازار او اضرار حکم عام
دی بايد هيڅ يو مسلمان وبل مسلمان ته ازار او ضرر ونه رسوي.

شيخ سعدي قدس سره وايي

مکن تا توانی دل خلق ريش | وگرميکنی ميکنی بيخ خويش

**وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَلَا تَعْضُلُوهُنَّ أَنْ يَنْكِحْنَ أَزْوَاجَهُنَّ**

او چې تاسي طلاقي کړئ خپل مايني او دوئ ورسېږي وخپل اجل ته يعني
عده يې تېره سي، نو تاسي يعني اې قريبانو د دغو ښځو منع مه کوئ چې دوئ
بيرته نکاح کوي د خپلو په پخواني ازواجو سره چې دوئ طلاق کړي وي.

**پوه سه**: چې دا آيت په باره کې د جملاء بنت يسار چې خور وه د معقل بن
يسار چې مېړه طلاق ودې ته ورکړې و، چې مېړه يې بداح بن عاصم و كما
روى البخاري وابو داوٗد والترمذي له معقل بن يسار څخه چې ماخپله خور
يعني جملاء المذکورة ويوه سړي ته يعني بداح بن عاصم المذكورة ته په نکاح
ورکړه نو هغه زما خور طلاقه کړه، چې عده يې تيره سوه نو هغه سړي بيرته
ماته مرکه وکړه د هغې خور په باره کې، نو ما ورته وويل چې ما يو وار خور په

نکاح درکړه ناته او فراش مي وګرځوله او تاته ما عزت در کړی او بیا تا طلاقه کړه یعني زما بې عزتي دي وکړه او اوس بیرته راغلې او مرکه راته کوې؟ نه یې درکوم والله لا تعود الیک ابداً او مېره بداح یې ښه سم سړی و. او دده د خور د اوضاعو څخه داسي معلومېده چي دا هم په رجوع وبداح ته راضي ده. نو دآیت نازل سو. نو معقل وایي چي ما رسول اللهﷺ ته وویل الآن افعل یا رسول اللهﷺ یعني اوس یې نو زه په نکاح ورکوم اې رسوله د خدای ﷻ نو یې په نکاح ورکړه انتهی. نو د آیت اول خطاب وازاجو ته دی او دوهم خطاب واولیاء ته د ښځو دی کما دل علیه عبارت الحدیث المذکور صراحة.

**سوال:** څرنګه په یوه آیت یو خطاب به وه یوې ډلي ته وي او بل خطاب به وبلي ډلي ته وي. آیا دا به د بلاغت سره د قرآن منافي نه وي؟

**ځواب:** صاحب د روح البیان وایي چي چونکه ټوله خلګ په علم کي د خدای ﷻ لکه یو جماعت دی صح توجیه احد الخطابین الواقعین في کلام الباري ﷻ الی بعض. وتوجیه الآخر الی البعض الآخر.

**درویش وایي:** چي نوم د خور د معقل په تفسیر کي د مظهري جملاء ښوول سوی دی او په روح البیان کي جمیله ښوول سوی دی والصحیح ما في روح البیان ولعل مافي تفسیر المظهري من غلط الناسخ والله اعلم.

**فائده:** مظهري له سدي ؒ څخه نقل کړی دی چي دا آیت په باره کي د جابر بن عبدالله انصاريؓ نازل سوی دی چي دده د اکا لور وه مېړه طلاقه کړه او عده یې هم تېره سوه بیا یې مېړه وجابر بن عبدالله ته راغلی او دده د اکا د لور مرکه یې ورته وکړه. جابر بن عبدالله منع ورته وکړه. نو دا آیت نازل سو نو جابر بن عبدالله قناعت وکړی.

**درویش وایي:** چي دا دوې قصې ډېرې سره جلا دي نو څرنګه به صحیح وي چي دا آیت دي په دوارو قصو کي نازل سوی وي مظهري صرف دا ویلي دي ولعلها نزلت في القصتین مما انتهی.

**درویش وايي:** چي څرنګه نزول په دواړو قصو کي صحيح کېږي ولي چي دا خو به ډېره نادره وي چي دا دواړې قصې په يوه وخت کي پېښې سوې وي او که يوه مقدمه وي او په هغې کي دا آيت نازل سوی و، او نزول د آيت په دوهمه قصه کي څه معنا لري.

**درویش وايي:** چي اول جواب خو دادی چي صحيح عند المحدثين خو قصه د معقل ده او سدي رحمه الله په نېز د محدثينو ضعيفه دی فلا اعتداد بحديثه فلا تعارض وعلى تقدير التسليم جواب دادی چي قصه د معقل خو د مخه پېښه سوې وه لکن خبري د مېړه د جميلې په طلب کي د نکاح د خور د معقل او د منع دمعقل په جريان کي وي او تسلسل يې جاري و، چي واقعه د بنت عم جابر بن عبدالله رضي الله عنه پېښه سوه او طلب د مېړه او منع د جابر بن عبدالله منځ ته راغله، نو خدای جلت قدرته دواړې واقعې په نزول د آيت مذکوره په يوه وار خلاصي کړې فاحفظ هذا التحقيق فانه سانح عزيز ° او په روح البيان کي وايي چي بعض مفسران وايي چي په آيت مذکوره کي دواړه خطابه وه ازواجو ته دي يعني اهل جاهليت چي مانيه بې طلاقه کړه نور بېګانه خلګ به يې هم منع کول له نکاح څخه د دوئ د مطلقه ماينو څخه ظلما على الزوجات ومراعاة لحمية الجاهلية، نو خدای جل جلاله مسلمانان منع کړه چي تاسي ورته کارونه د جاهليت مه کوئ لان بناء دين الاسلام على قمع اساس الظلم والجبر، او مظهري يوه داسي وجه د ارجاع د ضمير وه اولياو ته د ښځو او ازواجوا د ښځو راوړې دی چي زه نه په پوهېږم والله اعلم بمراد عباده

**پوښتنه:** نکاح د حري ښځي چي عاقله بالغه وي. بېله ولي يعني قريبه. پلار، ورور وغيرهما روا ده او که څرنګه؟

**ځواب:** په نېز د امام ابو حنيفه وتلميذه ابو يوسف رح روا ده نکاح د ښځي د خپل ځان لپاره په خپله خوله او يا د وکيل په ژبه په رضا ددې که څه هم ولي په خبر هم نه وي، که مېړه يې کفو ددې وي او که نه وي غاية الامر چي

په غیر کفو کې ولي حق ده اعتراض لري ولي چې پېغور د غیر کفو وه ولي ته راجع کېږي، او په یوه روایت کې لـه شیخینو رح راغلي دي چې د غیر کفو سره یې نکاح نه منعقد کېږي، وقد افتی بعض الفقهاء بهذه الروایة لفساد حال القضات في زماننا باخذ الرشوة من غیر الکفو. او امام محمد رح وایي چې په کفو او په غیر کفو کې نکاح خو منعقده ده لکن موقوف ده پر اجازه د ولي، او امام مالک رحمه الله وایي چې که ښځه له شریف خاندانه ځخه وه او ذات حسن او مال وه چې د هر چا یې ونکاح ته رغبت کېدی. نو نکاح یې بېله ولي نه ده روا. او که دغسې نه وه نو نکاح ددې پخپله خوله نه ده مګر اجنبي سړی ته اجازه ددې په نکاح ورکولای سي، او امام شافعي او امام احمد رح وایي لا نکاح الا بولي وهو روایة عن ابي یوسف ایضا.

**درویش وایي**: چې په مختصره توګه دلیل د مذهب د امام اعظم او ابو یوسف رح دا آیت دی ﴿حتی تنکح زوجا غیره﴾ او بل دا آیت دی ﴿ان ینکحن ازواجهن﴾ وجه الاستدلال چې په دې دوو آیتو کې اسناد د نکاح وښځې ته سوی دی، او اصل په اسناد کې حقیقت دی، او حقیقت خو دادی چې ښځه پخپله نکاح وکړي.

**درویش وایي**: چې دلائل د نورو مذاهبو او نقض او ابرام او ځوابونه او سوالونه د هر فریق له خوا پر بل فریق باندې په مفصلو کتابونو کې د فقه مطالعه دې کړل سي خصوصا الفقه علی المذاهب الاربعة، دا تفسیر ځای د تفصیل د مسائل فقهیه وو نه دی، البته صرف نقل د مذاهبو روا دی لاطلاع المستفیدین علی مذهبهم والمذاهب المخالفة لمذهبهم.

إِذَا تَرَاضَوْا بَيْنَهُم بِالْمَعْرُوفِ

که راضي وه مرکه کونکي چې د مخه مړونه دي او ښځي چې پخواني ماينې مطلقې وي پخپل منځ کې.

**پوه سه**: چي "اذا" ظرف دی د "ان ينكحن" او "بينهم" ظرف دی د "تراضی" او "بالمعروف" حال دی له فاعل څخه د "تراضوا" ای متلبسين بالمعروف يعني بالعقد الصحيح والمهر الجديد الجائز، او په شهود د عادلانو، او هر يو پر خان باندي حسن معاشرة موافق د شرع شريفي سره لازمه وي.

**پوه سه**: چي معروف يو عام لفظ دی معنی يې مايعرفه الشرع واستحسنه المروة، ددې آيت څخه دا معلومه سوه چي كه پخوانی مېړه كفو نه و، او يا مهر المثل د ښځي يې نه وركاوه نو د ولي د ښځي منع د نكاح جديد عضل منهی عنه نه دی.

## ذٰلِكَ يُوعَظُ بِهٖ مَنْ كَانَ مِنْكُمْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ

او دغه مامر د احكامو من الامر والنهي للاولياء والازواج په تاويل د كل واحد، او يا په تاويل د مامر ليصح الاشارة لتلك الاحكام المتعددة بلفظة ذالک، نصيحت كړه كېږي په هغه سره يعني له جانبه د خدای ﷻ وهغه چا ته چي ايمان لري پر خدای ﷻ او پر ورځ د آخرت، يعني پر ثواب او عقاب باندي د آخرت د ورځي.

**پوه سه**: چي تخصيص د من آمن آه په سبب ددې دی چي پر مواعظو د قرآن مبارک هم دغه من آمن آه نفع اخلي ورنه مواعظ قرآنيه عام دي.

## ذٰلِكُمْ اَزْكٰى لَكُمْ وَاَطْهَرُ ؕ

او دغه ای الاتعاظ والعمل بمقتضاه پاكونكي ستاسي له گنهو څخه او انفع دي ستاسي، او پاكونكي دي ستاسي د ادناس بشريه وو څخه.

## وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۲۳۲﴾

او خدای ﷻ خبر دی په نفع او ضرر ستاسي په دنيا او آخرت كي، او تاسي پخپل خير او شر نه ياست خبر لقصور علمكم، سعدي

برو علم یک ذره پوشیده نیست که پنهان وپیدا بنزدش یکی است

**فائده**: په دې کې اتفاق دی د مذاهبو چې بالغه چې کونډه وي اجبار يې پر نکاح نه دی روا، لقوله تعالی "اذا تراضوبينهم" لانه نزلت في الثيب كمامر في شان النزول، واختلف المذاهب في اجبار البكر البالغة، فقال الشافعي چې پلار او نيكه ته دا روا ده چې دا ببله رضا ددې چاته په نكاح وركړي، او امام مالك وايي چې يوازې پلار ته روا ده، وهو مذهب احمد دوئ وايي چې آيت د "اذا تراضوا" خو د كونډې په باره كې نازل دی، موږ وايو چې حديث مرفوع له ابن عباس څخه داسې راغلی دی چې عليه الصلوة والسلام وويل «الثيب احق بنفسها من وليها والبكر يستأمرها ابوها، والاجبار بينا في الاستيمار» او آيت هم زموږ دليل دی ولي خدای په كونډيانو كې رضا شرط كړه او عضل يې حرام وباله چې د كونډې په عضل او اجبار كې مفاسد سته وتلك المفاسد في اجبار البكر والثيب سواء فيشترط التراضي في كليهما.

**سوال**: نو ولې په حديث شريف كې فرق د كونډې او بكرې راغلی دی حيث قال الثيب احق آه كمامر؟

**ځواب**: فرق په اذن كې دی لقوله عليه الصلوة والسلام في البكر واذنها صماتها يعني اذن د بكر دادی چې پته خوله سي په وخت كې د استيمار او مشورې، او د ثيب صمات اعتبار نه لري بلكه صريح اجازه او توكيل غواړي

**فائده**: قال ابن مسعود السعيد من وعظ بغيره، كما قال الشاعر

پندگير از مصائب ديگران تانه گيرند ديگران زتو پند
نرود مرغ سوی دانه فراز چو ديگر مرغ بيند اندر بند

**فائده**: ومن النصائح العامة لرسول لامته المرحومة، قوله علامة اعراض الله تعالی عن العبد اشتغاله بمالا يعنيه وان امرء ذهبت ساعته في غير ماخلق له جدير ان تطول عليه الحسرة ومن جاوز اربعين سنة ولم يغلب خيره شره فليتجهز الی النار، ولنعم ماقيل

چهل سال عمر عزيزت گذشت مزاج تو از طفل نه گشت

قال السعدي الشيرازي قدس سره

بگوی آنچه دانی سخن سودمند | وگر هیچ کس را نیاید پسند

که فردا پشیمان بر آرد خروش | که روح چرا نکردم بگوش

**وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ أَوْلَادَهُنَّ**

او مندي دي شيدې ورکوي و اولاد ته ددوئ، اولاد نر او ښځو دواړو ته وايي.

**پوه سه**: چي ظاهر د قرآن کريم اخبار دی لکن په معنا د امر دی وفيه مبالغة کما في کتب المعاني.

**پوښتنه**: نسب خو د نر دی، نو څه حکمت دی چي نسبت يې وښځو ته يعني مندو ته وکړی؟

**ځواب**: په نسبت باعثه کول د ښځو او مندو پر ارضاع يعني ستاسي خپل عيالونه دي نو بايد منع د ارضاع څخه په ونه کړي

**پوه سه**: چي دا امر د وجوب دی لکن بشرائط. يو داچي مور به يې قادره پر ارضاع وي، يعني مريضه نه وي. او بل داچي پلار به قادر پر مزدور والي د بلي ښځي نه وي، او يا به کوچنی د بلي ښځي شيدې نه روي. لقوله تعالی (فان تعاسرتم فسترضع له اخری) او که ښځه قدرت د ارضاع لري او کوچنی د بلي ښځي تی هم روي او پلار يې هم قدرت د استيجار د بلي ښځي لري، نو بيا دا امر ندب لپاره دی له دې سببه چي د مور شيدې د خپل عيال لپاره ډيري موذوني دي، او د مور شفقت پر عيال د بلي مرضعي تر شفقت ډېر بالا دی، او مور په نظافت او پاکی د بدن او د کالو د خپل عيال ډېره سعي کوي تر بېگانه ښځي الی غير ذالک من الفوائد في ارضاع الام.

**مسئله**: امام اعظم رحمه الله وايي چي مور ته او يا معتدي يعني چي عده د طلاق وي حرام ده مزدوري اخستل پر ارضاع د خپل عيال. په دليل ددې چي ارضاع خو حق مستحق و پر دې از روی ديانت البته په سبب د عذر ددې دا ددې حق مستحق څخه خلاصه وه، نو دا چي په مزدوری ارضاع

كولای سي نو خو معذوره نه ده، نو حتما به بيله مزدوري تې وركوي، او امام شافعي رحمه الله يې استيجار روا بولي.

**سوال**: ستاسي له بيان څخه خو داسي فهمېږي چې كه مېره ښځه طلاقه كړې وه او عده يې هم تېره سوې وه، نو بايد هغې ته هم مزدوري غوښتل حرام دی مع انه جائز اتفاقا؟

**ځواب**: پسله عدې تېرېدو څخه خو دا بېگانه ښځه سوه، نو خو دا استيجار يې روا دی، او بل دليل د جواز د الاجرة في الصورة المذكورة دا قول د سدي رحمه الله دی ﴿فان ارضعن لكم فآتوهن اجورهن﴾ الآية. لان الآية وردت في الصورة المذكورة كما لايخفى.

## حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ

دوه كاله پوره

**پوه سه**: چې د كاملين فائده داده چې په تثنيه كي گاهي تساهل او مجاز كېږي، مثلا يو سړی ووايي چې زه د فلاني سره دوه كاله اوسېدلی يم او سره ددې چې ده به دوه كاله په څه كم اقامت كړی وي.

**پوښتنه**: د "كاملين" له قيد څخه خو داسي فهمېږي چې پوره دوه كاله ارضاع واجبه ده او سره ددې چې حكم شرعي دغسي نه دی؟

**ځواب**: نعم! له قيد څخه خو داغه فهمېږي لكن چونكه وروسته خدای ﷻ وايي ﴿فان ارادا فصالاً عن تراض منهما وتشاور فلاجناح عليهما﴾ نو له دې آيت څخه دا معلومه سوه چې قيد ددې لپاره دی چې وروسته تر حولين ارضاع نه ده روا، او بل دليل د نفي د ارضاع دادی چې دغه نفي مذكوري پر اصل باقي دي، ولې چې نفع اخستل پر اجزاؤ د انسان نه ده روا لكرامته.

## لِمَنْ اَرَادَ اَنْ يُّتِمَّ الرَّضَاعَةَ ؕ

څوک چې اراده لري د اتمام او پوره كولو د رضاعت

**پوه سه:** چې دا آيت هم پر دې دلالت کوي چې مده د رضاعٔ دوه کاله ده لانه لا شيئ بعد تمام مدة الرضاع كما لايخفى.

**فائده:** چې مده د رضاع دوه کاله سي نو چې دوه کاله وروسته يوه ښځه يوه کوچني ته تى ورکړي د محرميت د رضاع احکام نه پر جاري کېږي.

**اختلاف الائمة:** پوه سه چې مذهب د امام ابي يوسف، امام محمد، امام احمد، او د امام شافعي رحمهم الله دادی چې مده د رضاع دوه کاله ده کما ذکرنا في تفسير الآية، او دا هم روايت دی له ابن عباس رضي الله عنه او د عمر رضي الله عنه کما رواه الدارقطني، او د ابن مسعود رضي الله عنه او د علي رضي الله عنه څخه هم روايت دی کما اخرجه ابن ابي شيبه رحمه الله، او امام مالک رحمه الله وايي چې دوه (۲) کاله په يو څه بالا مده د رضاع ده ولم يعين الزيادة، او امام اعظم رحمه الله وايي چې مده د رضاع د پرش مياشتي ده يعني دوه نيم کاله، او امام زفر رحمه الله وايي چې پوره مده د رضاع درې کاله ده.

**درويش وايي:** چې دلائل د فريقينو او نقض او ابرام دي په مفصلو کتابو کي د فقهي شريفي مطالعه سي.

## وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ

او پر هغه چا چې دده لپاره دده ولادت سوی دی يعني پلار ولي چې د اولاد نسبت خو پلار ته کېږي نفقه د مرضعاتو او کالي د هغو ښځو په اندازه د معروف في الشرع يعني بلا افراط وتفريط وحسب مقدور الآباء

**پوښتنه:** پر ځای د مولودله که ولد ذکر سوی وايي اخصر به نه وايي؟

**ځواب:** په لفظ کي د مولودله اشاره ودې ته ده چې ښځه چې عيال راوړي د نر لپاره يې راوړي ځکه نسبت د اولاد عرفا وشرعا وښځي ته نه کېږي الا عيسى بن مريم عليه السلام لعدم الاب له.

**حکايت:** مامون ابن الرشيد چې د خلافة المومنين لپاره ځان وټاکه، نو هشام بن علي پر ده اعتراض وکړی چې ته خو د خلافت اهل نه يې ولي چې

د مینځي زوی يې، نو مامون ورته وويل چې اسماعيل عليه السلام خو هم د مينځي يعني هاجرې زوی و، او اسحق عليه السلام د حرې زوی و يعني ساره، او سره له هغه خدای ﷻ په نسل کي د اسماعيل عليه السلام سيد البشر ﷺ پيدا کړی.

**درويش وايي**: چي نران تبوله عبادالله دي، او ښځي تولي اماء الله دي ولا فضيلة الا بالايمان والتقوى في غير الانبياء عليهم السلام.

**پوه سه**: که دغه مرضعه ښځه که د سړي مابينه وي او يا د طلاق په عده کي وي، نو دا نفقه او کالي يې پر سړي واجب دي من طريق الزوجية لا بطريق الاجرة، او که د ښځي يعني د ولد د مور عده تېره سوې وه او اجنبي ګرځېدلې وه، نو دا نفقه او کالي يې د مزدورۍ پر طريقه دي کما قال الله تعالى ﴿فآتوهن اجورهن﴾ اى المرضعات.

## لَا تُكَلَّفُ نَفْسٌ إِلَّا وُسْعَهَا ۚ

او تکليف نه ورکره کېږي يعني د خدای ﷻ له خوا څخه پر هيڅ نفس مګر د نفس د طاقت سره برابر.

**مسئله**: تکليف په مالا يطاق سره اګر که جائز دی عقلاً لانه تعالى فاعل مختار يفعل ما يشاء ويحکم مايريد، لکن شرعا واقع نه دی تفضلاً من الله ﷻ کما قال لا يکلف الله نفسا الا وسعها وهذه المسئلة مبسوطة في کتب العقائد والکلام.

**فائده**: قاضي به د مېړه وحال ته ګوري په غنى او فقر کي، نو د هغه سره برابر نفقه او کالي به ورته تاکي.

**پوه سه**: چي صيغه د "تکلف" مجهول ده او "نفس" يې مفعول مايسم فاعله دی، او "وسعها" يې مفعول ثاني دی، او دا جمله مستانفه ده په استيناف بياني کانه قيل لم تجب النفقة والکسوة على الزوج بالمعروف فاجيب لا تکلف آه.

## لَا تُضَآرَّ وَالِدَةٌۢ بِوَلَدِهَا وَلَا مَوْلُودٌ لَّهُۥ بِوَلَدِهِۦ ۚ

**پوه سه**: چي صيغه د تضار په سبب د ادغام د راء اولى په ثاني کي

احتمال د معلومي صيغې هم لري چي اصل يې لا تضارِرُ وي، او احتمال د مجهولي هم لري چي اصل يې تضارَرْ وي وعلى التقديرين كلمة الباء للسببية وعلى التقديرين صيغه د "لاتضار" نهي ده، والمعنى ضرر دې نه رسوي مابنه ومېړه ته په سبب د ولد ددې مثلا چي ښځه زائد تر قدرت د مېړه څخه نفقه او کالي غواړي، او يا مابنه د ولد په باره کي يعني په پاک ساتلو کي د ولد او يا پر وخت په تي ورکولو کي تفريط نه کوي چي د مېړه زړه په غمجن کړي، او يا مابنه وروسته تر دې چي کوچني په دې پوري الفت ونيوی مېړه ته ووايي چي بالا شيدې نه ورکوم بله ښځه دائي ور پيدا كړه وامثال ذالک، او داغه رنګه دې مېړه ضرر نه رسوي مابنې ته په سبب د ولد دده، مثلا مابنه خو ولد ته تي ورکوي بمثل اجر الاجنبية مګر پلار لپاره د ضرر د مابنې کوچنی څندي واخلي چي زړه يې اجنبيه دائي ته په لاس ورکوم، او يا پلار اجرت د اجنبيه دائي ومور ته نه ورکوي بلکه کم تر هغه ورکوي، او يا مور عاجزه وي د تي ورکولو څخه په سبب د ناجوړې، او پلار قدرت او طاقت د بلي دائي د اجرت لري مګر سره د هغه مابنه مجبوره کوي پر ارضاع باندي وما اشبه ذالک.

**درويش وايي**: چي دا ترجمه خو پر تقدير ددې وه چي صيغه د "لاتضار" مبني للفاعل سي، او كه صيغه مذكوره مجهوله سي نو هم ترجمه خو داغه ده لكن په عكس د ترتيب فافهم.

**فائده**: خدای ﷻ په دې آيت کي اضافت د ولد يو وار ومور ته وکړی او بيا يې وپلار ته لپاره ددې چي مور او پلار دې دواړه فکر وکړي چي زه ولې پخپل ولد سره ضرر وبل ته ورسوم، او دا ضرر وبل ته خو نه دی زما وولد ته هم ضرر دی، نو بايد خپل د ولد ضرر مد نظر وګرځوي او بل چاته په سبب د ولد خپل ضرر ونه رسوي، او بعض مفسران ؒ وايي چي "لاتضار" په معنی مجرد دی کما في الشافية من ان باب المفاعلة قد يجيئ بمعنى المجرد نو پر دې تقدير او تفسير كلمه د باء دواړه ځايه زائده ده فالمعنى

لا تضر الوالدة ولدها چي د پلار تر اجر مثل د اجنبيه بالا اجرت غواړي او
يا خپل ولد وروسته تر الفت ددې سره وپلار ته ورکړي چي بالا تی نه ورکوم
او نه دي پلار وخپل ولد ته ضرر رسوي چي مور خو تی په اجر مثل ورکوي
لکن پلار يې خندي واخلي چي زه په اجنبيه دايي تی ورکوم.

## وَعَلَى الْوَارِثِ

او پر وارث د يتيم

**پوه سه:** چي مراد له وارثه څخه د يتيم هغه څوک دي چي که صبي مړ سي عند عدم الاب هغه ميراث وړي.

**فائده:** مراد له وارث څخه د يتيم مطلق وارث نه دی که ذا رحم محرم وي او که نه او که نر وي او که ښځه بلکه مراد هغه وارث دی چي ذا رحم محرم د يتيم وي يعني که يو ددوئ دوو څخه نر فرض کې او هغه بل ښځه نو نکاح يې سره نا روا وي لکه ورور د يتيم يا اکا د يتيم.

## مِثْلُ ذَٰلِكَ

اى مثل ماوجب على الاب من الرزق والكسوة واجر الرضاع.

**مسئله:** نفقه د محارمو زموږ د احنافو په نيز په دغه آيت سره ثابته ده

**پوه سه:** چي وعلى الوارث عطف دی على قوله وعلى المولود له آه، او قوله لا تكلف آه وقوله لاتضار آه تفسير د معروف دی او جمله معترضه دی په منځ کي د معطوفينو.

**درويش وايي:** چي دا قدر کافي دی د متعلمينو د تفسير ايوبي، او علامه مظهري رحمه الله تفصيل د مذاهبو او دلائلو د هغو او نقض ابرام يې ذکر کړی دی لکه دده چي عادت دی او چونکه زموږ د تفسير مطالعه کونکو ته هيڅ فائده نه وه پکښې، نو څکه هغه بيان درويش صرف نظر کړی ويظهر صدق ماقال الفقير بمطالعة التفسير المظهري رحمه الله.

**درويش وايي**: چي تفصيل د مسئلې د وجوب د نفقې او كسوة د ذوي المحارم په نېز د امام اعظم رحمه الله دادی چي يو سړی چي غني وي پر هغه واجبه ده نفقه د ذی رحم محرم چي هغه صغير وي او فقير وي او يا ښځه وي كه څه هم بالغه وي چي فقيره وي، او يا نر وي مثلا شل يا ړوند وي فقير، ولې چي اګرچه مورد د نص مذكور يعني وعلى الوارث مثل ذالک كه څه هم صغير دی، نو هر څوک پوهېږي چي صغر سبب د احتياج دی ونفقې ته پر ده باندي، نو نور مذكوره كسان پر ده قياس دي والجامع الاحتياج والفقر، او كه سړی فقير وي لكن يو كسب يې زده وي د هغه نفقه پر غني قريب نه ده واجبه ولې چي دی غني په خپل كسب سره دی، وتفصيل هذا في كتب مذهب الفقه الحنفي.

**فَإِنْ أَرَادَا فِصَالًا عَن تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا**

او كه اراده وكړه مور او پلار د صغير رضيع يعني چي دمخه تر دوه كاله يې له تي څخه پرې كړي، ولې چي وروسته تر دوه كاله خو فصال واجب دی لقوله تعالى ﴿لمن اراد ان يتم الرضاعة﴾ على المذهب المفتى به او دا فصال صادر و د پلار او د مور د دواړو له رضا څخه نه ده يوه په رضا ولې چي مور كه يوازي راضي وي په فصال سره شايد دا به د تي وركولو څخه ستړې سوې وي او په عين حال كي د صغير به ضرر وي، او يا پلار يوازي راضي په فصال وي شايد په سبب د بخل بالاجرة به راضي وي او د رضيع به ضرر وي په سبب د فصال قبل الوقت، او دوئ دواړه په دې فصال كي مشوره هم وكړي يعني چي صغير ته نوره رضاع ضرر ده او په چائې او دوډۍ ښه ګذاره بې ضرره كوي وهما اعلم بحال الصبي، نو ګناه نسته پر دوئ باندي په فصال كي لانه لنفع الصبي وهما اشفق على ولدهما.

**فائده**: درويش قبل تر دوه كاله ووېل موافقةً للتفسير القرطبي والبيضاوي وروح البيان و روح المعاني ومظهري وغيرها، او په مراعات د

مذهب د ابي يوسف او محمد المفتى به عند كثير من فقهاء المذهب الحنفي لکن تفسیر مدارک چي يو معتبر تفسیر دی حنفي المذهب هغه وايي چي آية د ان ارادا فصالاً خو مطلق دی يعني له قيد څخه د قبل الحولين، نو مراد هم مطلق فصال دی که قبل الحولين وي او که بعد الحولين وي الى سنتين ونصف يعني ثلثون شهرا، او مدارک په دې تفسير کي مراعات د مذهب د ابي حنيفه رحمه الله کړی دی کمامر من قبل، او تفسير مظهري رحمه الله ډیر سخت رد پر مدارک والا کړی دی ان شئت فطالع التفسير المظهري والله اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب.

وَإِنْ أَرَدْتُمْ أَنْ تَسْتَرْضِعُوا أَوْلَادَكُمْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِذَا سَلَّمْتُمْ مَا آتَيْتُمْ

او که تاسي اراده وکړئ يعني اې پلرو د صغير، چي تاسي طلب د رضاع وکړئ د خپلو اولادو لپاره يعني د اجنبيه وو ښځو څخه منډو ددوئ یا په سبب ددې چي منډو د رضاع څخه منع وکړه په سبب د مرض يا د ضعف، او یا شیدې وچي سوې او یا يې مزدوري ډېره غوښتل تر بېگانه ښځو يعني د ضرار غرض نه و له يوه طرفه لما سبق لا تضار والدة الآية، نو گناه نسته پر تاسي چي تاسي ورکړئ وهغو مرضعاتو ته هغه اجرت چي تاسي يې اراده لرئ او د مرضعاتو سره مو وعده کړې وي.

**تفريع**: نو "ما اتيتم" په دې آيت کي په معنا د ارادې د ايتاء ده مجازاً كما في قوله تعالى ﴿اذا قمتم الى الصلوة فاغسلوا﴾ الآية اى اردتم القيام الى الصلوة او "ما اتيتم" د ماسميتم و وعدتم معهن من الاجرة على الارضاع الى مدة معلومة.

**مسئله**: تسليم د اجرت قبل الارضاع لپاره د اطمنان د زړو د مرضعاتو دی، او شرط د جواز د استيجار نه دی اجماعاً.

بِالْمَعْرُوفِ ۗ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْا اَنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿٢٣٣﴾

او دا تسلیم د اجرت بـه پر موافق د شرع وي یعني ببلـه نقصـه او ببلـه احسان اچولو پر مرضعه باندي، او له خدای ﷻ څخه وبېرېږئ په عمومي کارو کي خصوصاً په باره کي د اطفالو او د مراضع ددوئ کما بینـه الله تعالی في الآیات السابقة، او په دې پوه سئ چي خدای ﷻ پر هر عمل چي تاسي یې کوئ دانا دی یعني عالم دی فلا ینبغي مخالفة احکامه.

**فائده**: پلار لره پکار دی چي د اولاد د رضاع لپاره صالح، دینداره او هوښیاره او د ښه نسل مرضعه پیدا کوي، ولي چي شیدې د مرضعې په کوچني کي تاثیر کوي، کما ورد في الحدیث الرضاع یغیر الطباع، وفي التفسیر الحسیني.

گر برهنه بره برون آیي — زود در تهمت جنون آیي
جامه ظاهري که نیست به بر — تو فضیحت شوي میان بشر
فکر آن کن که بې لباس ورع — چه کني در مقام خوف وفزع
خویشتن درلباس تقوی دار — تاشوي در دو کون برخوردار

**نصیحت**: په حدیث شریف کي راغلي دي چي یو سړي وعلیه الصلوة والسلام تـه وویـل چي مـا هیڅ کلـه خپـل اولاد نـه دی مـچ کـړی، نـو علیـه الصلوة والسـلام ورتـه وویـل ان الله لا ینزع الرحمة الا مـن قلـب شـقي، وورد في الحدیث النبوي حب الاولاد ستر من النار کراماتهم جواز علی الصراط والاکل معهم براءة من النـار، وفـي الحدیث النبوي ﷺ الصـحیح اربع نفقات لایحاسب العبد بهن یوم القیامة نفقة علی ابویـه ونفقـة علی افطاره ونفقة علی سحوره ونفقة علی عیاله او کما قال ﷺ.

وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا يَّتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّعَشْرًا ۚ

او هغه چي قبض کړه سي روحان ددوئ په مرگ سره.

دا ترجمه پر تقدير د صيغة المجهول كماهو القرائة المتواترة وقد قرئ بصيغة المعلوم، نو ترجمه يې داده چې دوئ پوره كړي خپل عمرونه او آجال والمآل واحد والتوفي اخذ الشيئ كاملاً فمن مات فقد اخذ عمره وافيا كاملاً ، او پرېږدي دوئ مايني جمع د د زوج ده او ماينې ته زوج هم وايي او زوجه هم وايي، او زوج يې اكثر دی په استعمال عربي كې حيث ورد في الكلام البليغ اسكن انت وزوجک الجنة، او جمع يې پر لغت د تزكير ازواج راځي، او پر لغت د تانيث زوجات راځي، نو دا مايني به انتظار كوي د خپلو مړو چې مړه سوه په خپلو ځانو سره يعني د نكاح د زوج آخر څلور مياشتې اولس شپې او يا مضاف د مبتداء سره چې "والذين" محذوف دی ای زوجات الذين يتوفون آه، يتربصن بعدهم والمآل واحد.

**پوښتنه**: په نحو كې وايي چې عشر بلا تاء د موئث لپاره راځي او د مذكر لپاره عشرة راځي، نو دلته ولې عشر راغلی او سره ددې چې نهار خو مذكر و؟

**ځواب**: چونكه اول د مياشتو په نېز د عربو له شپې څخه دی او ليلة موئث وه نو ځكه يې عشر بلا تاء راوړی، او د عربو قانون د ژبې دادی چې يو عدد مبهم راوړي په منځ كې د ليالي او ايامو لكه عشر فيما نحن فيه، نو دوئ غلبه وركوي شپو ته پر ورځو ولا يستعمل في امثلته التذكير قط كذا في المظهري.

**فائده**: كه څه هم لفظ د آيت يعني ازواجا شامل دی حواملو ماينو او غيرها ته لكن دا آيت په حاملو ماينو كې چې مېړه يې مړ سي منسوخ دی په هغه آيت سره چې تر دې مذكوره آيت وروسته نازل سوی دی اعني قوله تعالى ﴿و اولات الاحمال اجلهن ان يضعن حملهن﴾ لان الآية المذكورة تعم المطلقات، والمتوفى عنهن ازواجهن، كذا قال ابن مسعود ﷺ وهو مذهب الحنفية، او د عمر ﷺ څخه روايت دی كه مېړه د ښځې پر تخته د غسل پروت وي او دا ښځه سي عدد يې تېره سوه، رواه مالک والشافعي وابن ابي شيبه رح

**مسئله**: د مینځې ماینې عده د وفات دوې میاشتې او پنځه شپې ده بالاجماع.

**پوه سه**: چې عده د وفات په ابتداء کې د اسلام یو کال وه فنسخت بهذه الآیة، فهذه الآیة ناسخة لعدة السنة ومنسوخة في حق الحوامل کمامر آنفاً نو ځکه بعض ملایان سوال کوي امتحاناً چې په قرآن کریم کې هغه کوم آیت دی چې ناسخ او منسوخ دواړه پکښې جمع وي فیجاب بهذه الآیة.

**درویش وایي**: چې که څه هم لفظ د تربص په په آیت کې مجمل دی یعنی انها تربص في ای شئ لکن مراد ځندي ځان منع کول دي د بل مېړه د نکاح وهذا الحکم مجمع علیه الامة المرحومة، او بل حکم امتناع د خروج ښځه د بیت الزوج لیلاً مطلقا ونهارا عندنا الا لضرورة لان الضرورات تبیح المحذورات. او دا امتناع واجبه ده پر ښځه چې په عده کې د وفات وي.

**پوه سه**: چې په عده کې د وفات د مېړه پر ښځه باندي احداد یعنې ترک الزینة واجب دی بالاجماع او په عده کې د طلاق رجعي احداد بالاجماع نه دی لازم لجواز وطیها للزوج او په عده د طلاق بائن اختلاف دی په وجوب الاحداد علی المطلقة، نو امام ابو حنیفه رحمه الله وایي چې احداد پر واجب دی ولې په تزین کې خو دا جلب د مېړه کوي وجماع ته او جماع ددې حرام دي وقال مالک رحمه الله لایجب الاحداد والتفصیل في کتب الفقه.

**پوه سه**: چې احداد پر صغیره ښځې چې مېړه یې مړ سي واجب نه دی عند الاحناف ، ولې چې دا خو مکلفه بالاحکام الشرعیة نه ده ولا علی زوجة المیت اذا کانت زوجته من اهل الکتاب لانهم غیر مخاطبین بشرائع الاسلام ای احکام الشریعة علی المذهب الصحیح کما تقرر في کتب الکلام والفقة.

**تفصیل الاحداد**: خوشبوی به نه لګوي، ګتمی، بنګړي او نور د زرو شیان به نه اغوندي، او سترګي به نه توروي او لاسونه او پښې به په نکریزو نه سرې کوي. او وربښمیني جامې به نه اغوندي، او د زینت لپاره جوړې سوي جامې به هم نه اغوندي، او سر او مخ به په خوشبوی او بې خوشبویه

تېلو نه غوړوي، حاصل دا چي د زينت د کارو او جامو او زيوراتو ښځه دا ممنوع ده، وفي الحديث الصحيح المتفق عليه عن ام حبيبة ﷺ وزينب بنت جحش ﷺ عن رسول الله ﷺ قال لا يحل لامرئة (نه ده رواه ښځي لره) تؤمن بالله واليوم الآخر (چي ايمان يې وي پر خداى ﷻ او پر ورځ د آخرت) ان تحد على ميت فوق ثلث ليال الا على زوج اربعة اشهر وعشراً (چي احداد به کوي يعني ترک د زينت به کوي پر هيڅ مړي يعني که يې پلار او که يې زوى وغيرهما بالا تر درې شپې، مګر نه پر مېړه څلور مياشتي او لس شپې

**يوه سه:** چي متوفى الزوج ښځه به د جاهلت له کارو څخه سخت پرهېز کوي. لکه ګرېبان څرل، مخ په لاسو وهل او سر خريل كما كان عادة العرب في زمان الجاهلية وعادة هنود الهند اليوم، او داغه رنګه په زوره چغي او بغاري وهل، په حديث مبارک کي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام بېزاري کړې ده له هغه چا څخه چي يو له دغو کارو څخه وکړي لانها من افعال الجاهلية.

**فائده:** دروېش له دې سببه چي موضوع د بحث په دې ځاى کي متوفى الزوج وه نو دا شيان ما ودې ته ممنوع وبلل ورنه اکثره ددغو کارو نه په هر مړي وه نر او ښځه ته ممنوع دي فتفكر في تمييز الامور الخاصة بالمتوفى الزوج والامور العامة.

**بدعت سيئه:** په ډېرو پښتنو کي خصوصا په کندهار کي دا رواج دى چي په کال کي چي د يو چا په کور کي يو غټ څوک مړسي لکه پلار، مور، او ځوان ورور وغيرهم، نو هر وخت چي اول اختر پسله مرګه د هغه مړي راسي، نو قريبان د مړي په ورځ د اختر نر او ښځي نوي کالي كما هو المعتاد في الاعياد نه اغوندي او نه يې ښځي لاسونه سره کوي، او از سر نو د غم او فاتحه خوانى کمبلې اواري کړي او ټوله شناختګان فاتحه خواني او از سر نو سوګ ورسره کوي، وهذا فعل افحش من افعال الجاهلية وكذا فعل الرافضة والشيعة في يوم قتل الحسين ﷺ كما هو المعلوم لكل

احد ممنوع جدا ليس لفعلهم ذالک في الشريعة المطهرة سند لا ضعيف ولا قوي ولا في المذاهب لفعلهم المذكور جواز اصلاً.

فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ

چي ددوئ يعني متوفى الزوج عده تېره سي.

فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ

نو گناه نسته پر تاسي اې قريبانو د ښځو كنډيانو، او اې حكامو د شريعت مطهره.

فِيمَا فَعَلْنَ فِي أَنفُسِهِنَّ

په هغه كارو كي چي دغه كونډيانې يې پخپلو ځانو كي كوي، يعني كه زينت كوي او كه له كوره وزي او كه مېړه كوي، ولي چي كونډه د خپل سر ده.

**د پښتنو غلط رواج:** پوه سه چي د اكثرو پښتنو دا رواج دى چي په كور كي يې كونډه ښځه پيدا سوه خاماخوا به دغه كونډه ددغه كور د يو سړي سره نكاح كوي كه څه هم هغه سړى ددې ښځي خوښ نه وي، او كه كونډې د بل چا سره نكاح وكړه، او يا قريبانو ددې دا بل ځاى وركړه، نو تياره بدي ده او مړي پر كوي.

بِالْمَعْرُوفِ

يعني هر هغه طريقه چي په شرع كي معروفه وي.

**مسئله:** له قيد څخه د معروف دا معلومېږي كه كونډې خلاف الشريعة كار كاوه كالنكاح بغير الشهود مثلا يا يې د نامحرمه خلگو سره ملاقاتونه درلوده، نو پر قريبانو ددې او حكامو باندي لازمه ده چي دا به منع كوي ولي چي نهي عن المنكر واجب دى، نو كه يې دوئ نه كي منع نو دوئ گناه كاره دي.

وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿٢٣٤﴾

او خداى ﷻ په هغو عملو چي تاسي يې كوئ خبر دى يعني تاسي ته به

جزاء در کړي موافق د عملو ستاسي ان کان خیر فخیر وان کان شرا فشر.

**وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا عَرَّضْتُم بِهِ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَآءِ**

او ګناه نسته پر تاسي باندي چي تاسي تعریض وکړئ په مرکه کي د ښځو یعني کونډیانو یعني د عدې په شپو کي.

**پوه سه:** چي "خطبه" بکسر الخاء طلب د نکاح دی چي په پښتو یې مرکه بولي، او تعریض داسي الفاظ مستعملول دي چي مخاطب خو په مراد د متکلم پوهېږي لکن حقیقي او صریحي لفظ نه وي، نو صریحي لفظ په طلب کي د نکاح د کونډي دادی ارید ان انکحک زما اراده ده چي ستاسره نکاح وکړم او اورید ان اتزوجک او اخطبتک زما خیال دی چي تاته مرکه وکړم. دا له دې سببه روا نه دي لکه نکاح چي په عده کي روا نه ده، نو الفاظ صریحه د نکاح هم نه دي روا، مګر فقهاؤ د تعریض په باره کي عجیبه الفاظ راوړي دي مثلا کونډي ته په عده کي ووایي چي ته ډېره ښائسته او صالح ښځه یې، او یا ورته ووایي چي زما قصد دی چي نکاح وکړم او یا ورته ووایي چي زما داسي ښځه خوښه ده لکه ستا غوندي. او یا کونډي ته ووایي چي زه ډېر ښه اخلاق لرم او د مایني سره ښه ګذاره کوم او ښه نفقه او کالي ورکوم، او یا کونډي ته ووایي چي ستا د نکاح خواهش مندان ډېر دي الی غیر ذالک.

**أَوْ أَكْنَنتُمْ فِي أَنفُسِكُمْ**

او یا تاسي په خپلو زړو کي پټه ساتلې وي چي کونډي زه به دې تر عده وروسته په نکاح کوم، لکن په عده کي به تصریح په نکاح نه ورته کوي.

**عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ سَتَذْكُرُونَهُنَّ**

او خدای ﷻ خبر دی چي تاسي په زړونو کي ددې کونډیانو سره محبت لرئ او صبر نه سئ خندي کولای، نو ځکه یې تعریض درته مباح کړی ولا مؤاخذة علی الاضمار بل علی الاظهار.

## وَلٰكِنْ لَّا تُوَاعِدُوْهُنَّ سِرًّا

لکن وعده مه کوئ د کونډيانو سره د پټ شي يعني نکاح بالصراحة او يا د وطي بعد العدة والنكاح.

**پوه سه**: چي سر خو وطي ته وايي، ولي چي وطي خو مېره او مايينه په پټه سره کوي، او وروسته تعبير له عقد نکاح څخه وګرځېدى لانه سبب للوطي.

**فائده**: لکن استدار دى له محذوف څخه چي ستذ کرونهن دلالت پر کوي يعني فاذكرونهن في القلوب وعرضوهن بالخطبة ولكن لا تواعدوهن آه.

## اِلَّآ اَنْ تَقُوْلُوْا قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ۗ

لکن داسي ويلاى سئ قول معروف يعني التعريض لا التصريح لانه منهى عنه فلا يكون قولا معروفا.

**پوه سه**: الا ان تقولوا استثناء مفرغه ده يعني مستثنى منه يې محذوف دى والتقدير لا تواعدوهن مواعدة ما الا مواعدة معروفة.

## وَلَا تَعْزِمُوْا عُقْدَةَ النِّكَاحِ

او تاسي ټينګ قصد مه کوئ پر عقد د نکاح يعني في العدة.

**پوه سه**: چي ظاهرا كه څه هم منهي عنه عزم د نکاح دى الا انه ليس مراد لان العزم في القلب لا مواخذة عليه اجماعا بلکه مراد نهي دى له عقد څخه د نکاح بذكر اللازم وارادة الملزوم لان العزم لازم لعقد النكاح. وهذا النهي ابلغ من النهي الصريح اى لا تعقدوا النكاح كما تقرر في علم المعاني فهو من قبيل قولهم زيد طويل النجاد وكثير الرماد، نو دا قول كاذب نه دى چي زيد جګ سړى وي او يا مهمان پرسته سړى وي كه څه هم نه توره لري او نه يې بند، او بعض مفسران وايي چي منهي عنه عزم دى لکن نهي تنزيهي دى، لئلا يقع بسبب العزم في المنهي عنه يعني العقد كما ورد في الحديث النبوي ﷺ من يحوم حول الحمي يوشک ان يقع فيه.

## حَتّٰى يَبْلُغَ الْكِتٰبُ اَجَلَهٗ

**پوه سه:** چي کتاب په معنی د مکتوب دی او د مکتوب په معنی مفروض دی چي مراد ځني عده ده، فالمعنی چي تاسي عقد د نکاح د کونډي مه کوئ تر څو پوري چي عده وپای ته رسېږي، نو د اجل معنی منتهی ده.

## وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِیْٓ اَنْفُسِكُمْ فَاحْذَرُوْهُ ۚ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ ﴿۲۳۵﴾

او تاسي پوه سئ چي په تحقیق خدای ﷻ خبر دی په هغه شي چي ستاسي په زړه کي و چي عزم د نکاح و د کونډي، په دې آیت کي اشاره ودې ته ده چي دا عزم د نکاح په وخت کي د عدې څه ناڅه مکروه و، او له دې سببه خدای ﷻ وویل چي له خدایه وېرېږئ یعني عزم د نکاح مه کوئ په عده کي، او په دې پوه سئ چي خدای ﷻ غفور دی یعني د هغه چا چي عزم د نکاح یې په عده وکړی مګر د خدای ﷻ له بېري یې عقد نه وکړی، او خدای ﷻ حلم لري چي ګناه کار ته ژر عقوبت نه ورکوي، نو مسلمان باید د خدای ﷻ په حلم خطانه وزي چي ګناه ته دوام ورکړي، یعني شیطان وسړي ته دا وسوسه ورواچوي چي دا کار که ګناه وای نو به خدای ﷻ تا ته عذاب درکړی وایي "اعوذ بالله من غضب الحلیم" باید مسلمان هغه کار ونه کړي چي په ورځ کي د قیامت له عذابه د آخرت بیا حسرت او پښېماني کوي ولنعم ماقیل في هذا المعنی

چون توانستم نه دانستم چه سود    چون بدانستم توانستم نبود

## لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ مَا لَمْ تَمَسُّوْهُنَّ

**پوه سه:** چي روح البیان وایي چي مراد له جناح څخه په دې آیت کي وجوب المهر دی، یعني طلب د مهر نه کېږي له تاسي څخه، او روح المعاني

وايي لا تبعة من مهر وهو الظاهر، او بيضاوي هم وايي لا تبعة من مهر يعني طلب د مهر نه در څخه كېږي له تاسي څخه، نو پر دې تقدير معنا د آيت داده چي طلب د ولور نه كېږي له تاسي څخه چي تاسي طلاقي كړئ ماينې تر هغه وخته پورې چي تاسي جماع او وطي نه وي ورسره كړي، او مظهري تفسير د جناح په گناه سره كړى دى حيث قال ولما كان الطلاق ابغض المباحات ذكر ههنا بلفظ لا جناح آه، او روح المعاني او بيضاوي ترجمه د مظهري په قيل سره راوړې ده حيث قال صاحب روح المعاني وقيل كان النبي ﷺ كثيرا ما ينهى عن الطلاق فظن ان فيه جناحا فنفى ذالک بهذه الآية.

**پوه سه**: چي طلاق قبل الجماع لا بدعة فيه ولو كان في الحيض، نو معنا د آيت د قيل پر مسلک او د مظهري پر تفسير داده چي گناه نسته پر تاسي كه تاسي طلاقي كړئ ماينې د مخه تر جماع.

**فائده**: كلمه د ما مصدري ده او ظرفي ده والزمان محذوف نو تقدير يې داسي دى مدة عدم المسيس قاله ابن الشيخ او روح المعاني او روح البيان د مالم تمسوهن ترجمه داسي كړې ده اى غير مماسين ومجامعين آه.

**درويش وايي**: چي ددې بناء پر دې ده چي كله د ما مصدري ده او مصدر په معنا د اسم فاعل دى او حال دى له ضميره څخه د "طلقتم" ومآل المعنيين واحد كما لايخفى.

## أَوْ تَفْرِضُوا لَهُنَّ فَرِيضَةً ۚ

**پوه سه**: چي ددې آيت تقدير او ترجمه پر قياس ددې قول د عربو دى لا لزمنک او تعطيني حقي فانهم قالوا ان كلمة او في الكلام المذكور اما بمعنى الى الجارة و ان فالمعنى لالزمنک الى ان تعطيني حقي، وقيل بمعنى حتى ان فالمعنى لالزمنک حتى ان تعطيني حقي، وقيل بمعنى الا ان فالمعنى لالزمنک الا ان تعطيني حقي فالمعنى ههنا الا ان تفرضوا لهن فريضة عند العقد اى مهرا ، وحاصل المعنى انه لا تبيعة على المطلق قبل المسيس

والجماع بمطالبة المهر عن كل حال الا في حال تسمية المهر فان عليه حينئذ نصف المهر المسمى وفي عدم المهر عليه المتعة لا نصف المهر واما اذا كان الطلاق بعد المسيس والجماع ففي صورة تسمية المسمى عليه تمام المهر المسمى وفي صورة عدم التسمية وجب عليه تمام مهر المثل.

**فائده:** لفظ د فريضة فعيلة دی بمعنی المفعول ای مفروضة والتاء فيه للنقل من الوصفية الى الاسمية ای المهر فهو منصوب على المفعولية.

**فائده:** وجوب د ټوله مهر مسمی بعد الجماع په دې قول د خدای ﷻ ثابت دی "فآتوهن اجورهن بالمعروف" ای مهورهن او وجوب د مهر مثل عند المسيس والجماع مع عدم تسمية المهر عند العقد ثابت دی په اجماع د امت.

**پوه سه:** چي مظهري ددې آيت "اوتفرضوا الخ" موافق د جمهور مفسرينو پر رقم ترجمه کړې ده، او د مظهري پر تفسير چي ده د جناح ترجمه په گناه سره کړې وه دا ترجمه مذکوره نه صحيح کيږي كما لايخفى، بلكه كلمه د "او" په معنی د "لکن" ده او مستثنی منقطع ده فالمعنی گناه نسته پر تاسي لکن که تاسي مهر په وخت کي د عقد ټاکلی و نو پر تاسي نصف د مهر مسمی دی.

**درویش وايي:** چي داسي تقدير مبني پر دې دی چي "او" په معنی د "لکن" راتلای سي ولم يقل به احد، او بل داسي تقدير مناسب له بلاغت سره نه دی ولهذا اورد المحققين من المفسرين و تفسير المظهري بلفظ قيل.

**پوښتنه:** عبيدالله تاخو ددې آيت تقريبا ټوله ترجمه په عربي عبارت وکړه، نو عوام او بعض امامان به له دې بيان څخه ستا څه فائده واخلي؟

**ځواب:** هو! لکن که د ايت ټفسير ما په پښتو ژبه هم کړی وایی، نو هم دغو دوو ډلو هيڅ فائده نه سوای پر اخستلای ولهذا اخترت العبارة العربية بعبارات سهلة لينتفع بها اهلها.

## وَّمَتِّعُوْهُنَّ

او دوی ته يعني مطلقاتو قبل المسيس ته ورکړئ ستاسي له مالو څخه

هغه کالي چې دوئ نفع پر واخلي چې يو پراخه قميص دی چې ددې ټوله
بدن په پټ سي، او يو پوړني دی چې ملحفه يې بولي چې ښځه له کوره
ووزي پر سر کوي يې او بل خمار بولي چې ښځه يې په کور کي پر سر کوي

**پوښتنه**: څه حکمت الهي دی په ورکړه کي د متعې ودغي مطلقې ته او
سره له دې چې مېړه هيڅ نفعه نه ده پر اخستې؟

**ځواب**: دا متعه جبيره ده هغه وحشت چې مېړه ودې ته پېښ کړی دی په
طلاق کي.

**مسئله**: دا متعه واجبه ده په نيز د امام ابو حنيفه، امام شافعي او د امام احمد
رحمهم الله ويدل على الوجوب قوله تعالى ﴿ومتعوهن﴾ لانه امر والامر للوجوب
اذا لم يكن هناک قرينة يصرفه عن الوجوب كما تقرر في اصول الفقه. او ددې
وجوب تائيد کوي قوله تعالى ﴿حقا على المحسنين﴾ بكلمة على الالزام.

**فائده**: قوله تعالى "ومتعوهن" عطف دی پر محذوف ای فطلقوهن
ومتعوهن.

**فائده**: دا درې جامې به دومره قيمت لري چې تر نصف مهر مثل به بالا
نه وي او تر پنځه درهمه به کمې نه وي.

عَلَى الْمُوْسِعِ قَدَرُهُ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهُ

پر خاوند د وسعة او د غنى په اندازه د غنى دده متعه او پر فقير
مسکين مېړه پر اندازه د حال دده متعه ده.

**پوه سه**: چې تقدير سابق د متعه په قول د ابن الهمام مروي عن عائشة
وابن عباس وسعيد بن المسيب وعطاء والشعبي رضي الله عنهم. او بعض
امامان وايي چې تقدير د متعې مفوض ورايه ته د حاكم الوقت دی.

مَتَاعًا بِالْمَعْرُوفِ حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِينَ ﴿٢٣٦﴾

او دا متاع ده حق پر محسنينو خلګو.

**پوه سه**: چي متاعاً مفعول مطلق دی د "متعوهن" او "حقا" منصوب دی په فعل محذوف سره ای حق حقاً.

**درویش وايي**: چي مظهري داسي ويلي دي چي اعتبار د متعي په حال پوري د ښځي دی عند ابي حنيفة رحمه الله لکن درويش وايي چي دا روايت د کرخي رحمه الله دی والصحيح من المذاهب ان الاعتبار بحال الزوج كما يدل عليه قوله تعالى على الموسع قدره الآية.

**وَإِن طَلَّقْتُمُوهُنَّ مِن قَبْلِ أَن تَمَسُّوهُنَّ وَقَدْ فَرَضْتُمْ لَهُنَّ فَرِيضَةً فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ**

او که تاسي طلاقي کړئ ښځي يعني مايني د مخي تر دې چي تاسي ددوئ سره جماع کړې وايی، او حال دا و چي تاسي فرض کړی و يعني ټاکلی و ودوئ ته فريضه يعني ولور، نو پر تاسي لازم او واجب دی نيمی ولور مفروض.

**اعراب**: ان شرطيه دی او "فنصف ما فرضتم" يې جزاء ده من قبل متعلق په ماقبل فعل پوري دی "واو" په قد فرضتم کي لپاره د حال دی او لفظ د "نصف" چي مضاف و "مافرضتم" ته دی مبتداء ده او خبر يې محذوف دی ای عليکم.

**مسئله**: مذهب د جمهورو امامانو دادی چي سره د نصف مهر وجوب متعه واجبه نه ده او داغه نصف مهر په ځای کي متعه ولاړ دی، ولي چي بضع د ښځي ودې ته سالمه پاته سوه صرف د ايحاش الزوج دې لره په سبب د طلاق متعه واجبه وه په صورت سابقه کي او په دې مسئله کي خو دفع د ايحاش ددې په نصف مهر سره وسوه فلايجب المتعة، البته علماء وايي چي په دې صورت کي متعه مستحب ده.

**مسئله**: که قبل المسيس وبعد فرض المهر يو له مېړه او مايني مره سي بيا ټوله مهر مسمی واجب دی، لما قال الفقهاء ان الموت كالدخول في

تقریر المسمی، او که مهر مسمی نه و او یو مړ سو نو له مهر مثل واجب دی.

**إِلَّآ أَن يَعْفُونَ**

مګر نیمی ولور هم نسته پر مېړه که مطلقاتو ماینو مېړه ته عفوه وکړه د خپل نصف مهر المستحق لهن، نو نوله ولور ومېړه ته راجع سو.

**أَوْ يَعْفُوَا الَّذِي بِيَدِهِۦ عُقْدَةُ النِّكَاحِ ۚ**

او یا عفوه وکړي هغه څوک چي په لاس کي دده غوټه د نکاح ده.

**پوه سه:** چي مراد "بالذي بیده آه" مېړه دی. یعني چي مېړه ټول مهر مسمی په وخت کي د عقد ماینې ته ورکړی و، لکن مېړه قبل المسیس ماینه طلاقه کړه، نو خو لازما باید ښځه نیم ولور بیرته ور رد کړي مېړه ته لکن مېړه هغه نیمی ولور چي دده مستحق ور وه یې بخښي ماینې ته نو ټوله ولور د ماینې سو.

**درویش وایي:** چي دا تفسیر یعني بالزوج مذهب دی د ابو حنیفه رحمه الله او قول جدید صحیح د امام شافعي رحمه الله هم دی، وهذا التفسیر مروي عن علي رضي الله عنه وابن عباس رضي الله عنه او ګڼ شمېر تابعین هم ودې تفسیر ته تللي دي، په حدیث کي د جبیر بن مطعم رضي الله عنه چي د ماینې پوره ولور ور کړي په وخت کي د عقد لکن قبل المسیس یې طلاقه کړه، نو ولور یې ټوله ماینې ته ورپرېښو او داسي یې وویل انا احق بالعفو، رواه البیهقي رحمه الله . او امام مالک رحمه الله وایي چي مراد له الذي بیده عقدة النکاح ځنځه ولي او قریب د ماینې دی، یعني هغه ولي عفو د نیم ولور مېړه ته د ښځي وکړي، او دا قول قدیم د شافعي رحمه الله هم و چي ده رجوع خنذي وکړه، او د بعض تابعانو قول هم دی، موږ وایو چي مهر خو خالص حق د ښځي دی نو بل چاته تصرف نه دی پکښي روا، ولهذا لایجوز للولي هبة مهر المرئة التي هو ولیها قبل الطلاق بالاجماع، نو تاویل د آیت مذکوره ببله زموږ د قول نه دی روا کذا في روح المعاني والمظهري.

وَأَنْ تَعْفُوا أَقْرَبُ لِلتَّقْوَىٰ ۚ وَلَا تَنْسَوُا الْفَضْلَ بَيْنَكُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٢٣٧﴾

**پوه سه:** چي "ان تعفوا" محلا مرفوع دی مبتداء ده واقرب للتقوى يې خبر دی او مخاطب په آيت نر او ښځي دواړه دي وفيه تغليب المذكر على المؤنث والمعنى چي تاسي يا نر يا ښځي عفو وكړئ د نصف المهر نږدې د خداى وېرې ته، او تاسي مه هېروئ فضل او احسان تر خپل منځ يعني يا دي نر احسان وكړي پر ښځه چي نصف المهر دي ور پرېږدي، او يا دي ښځه پر نر احسان وكړي چي نصف مهر دي نه خندي غواړي، او په تحقيق خداى ﷻ ستاسي په عملو دانا او خبر دی او علم پر لري، فيجازيكم باعمالكم، وفي الحديث الصحيح النبوي ﷺ كفى بالمرء من الشح ان يقول اخذ حقي لا اترك منه شيئا، كافي ده سړي لره له بخل څخه چي دا وايي چي زه خپل حق اخلم او هيڅ شی له خپل حقه څخه چاته نه پرېږدم، يعني بايد مسلمان احسان د بل مسلمانه سره په نظر كي ونسي او څه ناڅه تر خپل حق ومسلمان ته ورتېر سي، كه مسلمان د خداى ﷻ د بندګانو سره احسان كوي په دنياوي معاملاتو او پورو كي، خداى ﷻ به له ده سره احسان وكړي په اخروي معاملاتو كي بلك ګاهي په دنياوي معاملاتو كي هم احسان ورسره وكړي.

## حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ

تاسي محافظت وكړئ پر خپلو لمونځو په اوقاتو معلومه وو كي او همېشه توب وكړئ پر دغو لمونځو او اركان او واجبات ددغو لمونځو هم پر ځاى كوئ.

**پوه سه:** چي مراد له دغو لمونځو څخه په اتفاق د مفسرانو ، دغه پنځه فرضي لمونځونه دي چي په نورو آياتو سره اشارةً راغلي دي او په نورو احاديثو متواتره و سره صراحةً معلوم سوي دي.

**مسئله**: په اجماع او اتفاق د امت مرحومه دغه پنځه لمونځونه فرض قطعي دي چي منکر د یوه یا د ټولو کافر دی. او تارک الصلوة المذکورة عمدا بلا عذر په نیز د امام احمد کافر دی، او په نیز د امام مالک او امام شافعي ؒ کافر خو نه دی لکن طلب د توبې دي ځندي وکړه سي که یې توب وکښل خو خبره خلاصه سوه، او که یې توبه نه کښل ودي وژل سي، او په نیز د امام اعظم ابو حنیفه ؒ وژني دې نه بلکه بندي دي یې کړي چي یا توبه وکاږي او یا په بنده خانې کي مړ سي.

**یوه سه**: چي په فضائلو ددغو پنځو لمونځو احادیث کبیره په صحاح سته او په کتابو د سنن نبویه وو موجود دي چي د ټولو بیانول به منجر و ډېر لوی بحث ته وګرځي، نو پر دوو حدیثو چي یو یې متفق علیه د مسلم او بخاري دی وهو هذا عن ابي هریرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ ﴿ارئیتم﴾ تاسي خبر راکړئ ﴿لو ان نهرا بباب احدکم یغتسل فیه کل یوم خمسا ﴾که چېري یوه واله وي په دروازه کي د یوه ستاسي چي دی په هغ واله کي په ورځ کي پنځه واره غسل کوي ﴿هل یبقی من درنه شیئ﴾ آیا پاته به سي له خیرو څخه یعني پر بدن دده یو شی ﴿قالوا لا یبقی من درنه شیئ﴾ صحابه کرامو ﷺ وویل چي نه پاتېږي له خیرو څخه دده هیڅ شی ﴿قال فذالک مثل الصلوة الخمس﴾ نو علیه الصلوة والسلام وویل چي دغه دی مثال د پنځو لمونځو ﴿یمحوالله بهن الخطایا﴾ چي محو کوي په دغو پنځو لمونځو ګناهونه د مصلي، او بل حدیث دی چي روایت یې احمد، ابو داوٗد، مالک او نسائي رحمهم الله کړی دی وهو هذا عن عبادة ثابت ﷺ قال قال رسول الله ﷺ خمس صلوات افترضهن الله تعالی" پنځه لمونځونه دي چي خدای تعالی فرض ګرځولي دي یعني پر مسلمانانو ﴿من احسن وضوئهن﴾ که چا ښه اودس ددغو لمونځو لپاره تازه کړی یعني پر شریعت برابر ﴿وصلاهن لوقتهن﴾ او اداء یې کړه دغه لمونځونه پر خپل وخت باندي ﴿واتم رکوعهن وخشوعهن﴾ او پوره یې کړه رکوع ددغو لمونځو وقس علیه السجود وغیره من ارکانها وواجباتها او په عاجزي د زړه یعني په حضور

القلب سره ﴿كان له على الله عهدا ان يغفرله﴾ پر خداى ﷻ دى وعده لري چي گنهونه به يې وروبخښي ﴿ومن لم يفعل فليس على الله عهدا ان شاء غفرله وان عذبه﴾ او كه دا مذكوره كارونه ده ونه كړه نو ده لره عهد الهي نسته بلكه ان شاء بخښه به ده ته وكړي ددغو نقائصو او كه يې اراده سي دى به په عذاب كړي په دغه نقائصو كې.

## وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى

**پوه سه**: چي دا عطف د عام دى پر خاص باندي لمزيد الاهتمام بشان هذه الصلوة كماهو القانون الكلي في عطف الخاص على العام في لسان العرب.

**پوه سه**: چي په تعين كي د الوسطى دپر اقوال دي (۱) اول مذهب دى د حنفيه او شافعيه رح چي صلوة وسطى د مازديگر لمونځ دى وهو المروي عن علي والحسن وابن عباس وابن مسعود ﷺ وخلق كثير (۲) د ماپښين لمونځ دى (۳) د ماښام لمونځ دى (۴) د ماخستن لمونځ دى (۵) د سهار لمونځ دى (۶) صلوة والوتر دي (۷) د څاښت لمونځ دى (۸) د كوچني اختر لمونځ دى (۹) د لوى اختر لمونځ دى (۱۰) د تهجد لمونځ دى (۱۱) د جمعې لمونځ دى (۱۲) صلوة الخوف دى (۱۳) د جماعت لمونځ دى، په روح المعاني كي ددغو اقوالو تر نقل وروسته يې داسي ويلي دي وقيل وقيل.

**درويش وايي**: چي اكثره فقهاؤ او محدثينو او مفسرينو ودې ته ترجيح وركړې ده چي صلوة الوسطى د مازديگر لمونځ دى، وقد اطال الكلام فيها صاحب روح المعاني ونسب الى الامام الاعظم رحمه الله خلاف ما عند عامة الحنفية وهو انها الظهر.

**پوه سه**: چي وسطى كه صفت مشبه سي نو معنا يې داده چي متوسط لمونځ په منځ كي د پنځو لمونځو، نو هغه د مازديگر لمونځ دى لانها متوسطة بين صلاتي الليل اى المغرب والعشاء وصلوتي النهار اى الفجر وظهر. او كه وسطى افعل تفضيل سي يعني مونث د اوسط چي معنا يې افضل دى قالوا وسط الشئ افضله واعدله، نو پر دې تقدير هم د مازديگر



Scanned by CamScanner

لمونځ دی وسبب فضلها دادی چي عام خلگ په خپلو تجاراتو او کسبو اخته وي نو په داسي وخت کي لمونځ بلا شک افضل دی ولذالک قال رسول اللهﷺ من فاتته صلوة العصر فکانما وتر اهله وماله د حدیث حاصل دادی چي سړی باید د قضاء کولو څخه د صلوة العصر دونه حذر وکړي لکه د هلاک څخه د اهل او مال، ویدل علیه ما ورد في الحدیث الطویل چي علیه السلام په غزاء کي د احزاب چي د مازدیگر لمونځ خندي قضاء سو داسي یې وویل ﴿شغلونا﴾ کفارو موږ مشغوله کړو ﴿عن صلوة الوسطی صلوة العصر ملا الله قبورهم وبیوتهم نارا﴾ رواه البخاري ومسلم، او بل دلیل چي صلوة الوسطی د مازدیگر لمونځ دی هغه حدیث د ابي یونس دی چي ازاد کړه سوی مریی د سیدنا عائشةؓ و، دی وایي چي ماته عائشةؓ وویل چي ماته مصحف شریف راولیکه او چي دغه آیت ته یعني صلوة الوسطی ته ورسېدې ما خبره کړه، نو زه چي آیت مذکوره ته ورسېدم دامي خبره کړه نو دې وویل چي داسي نوشته کړه "حافظوا علی الصلوات والصلوة الوسطی وصلوة العصر" دې وویل چي ما دغسي د علیه الصلوة والسلام څخه اوربدلي دي رواه مسلم.

**یوه سه**: چي په حدیث کي د براء بن عاذب راغلي دي چي ده وویل نزلت هذه الآیة حافظوا علی الصلوات وصلوة العصر، نو څه موده موږ دغه آیت هم پر دغه ډول وایه او بیا خدایﷻ دا آیت نسخ کړی او په ځای کي ې داسي نازل کړی، حافظوا علی الصلوات وصلوة الوسطی رواه مسلم.

**سوال**: له حدیث څخه د عائشةؓ چي هم دا اوس تېر سو دا معلومېږي چي صلوة وسطی غیر د صلوة العصر څخه دی لان العطف یقتضی التغایر؟

**ځواب**: دا خو عطف تفسیري دی نو تغایر نه غواړي.

**فائده**: بعض مفسران وایي چي صلوة وسطی یو لمونځ دی د شبانه روزي پنځو لمونځو څخه لکن خدایﷻ مبهم کړی تاچي مسلمانان په طلب کي د صلوة وسطی پر ټولو لمونځو دوام وکړي، او دا مفسران وایي چي دا ابهام داسي دی لکه ابهام د لیلة القدر او یا اسم اعظم یا ساعت د اجابت د جمعې د ورځي.

**درویش وایي:** چې دا مذهب خلاف دی د احادیث مذکوره سابقاً څخه او اکثره علماء هم ددې مذهب پر خلاف دي والله اعلم بالصواب في کل باب والیه المرجع والمآب.

## وَقُومُوا لِلَّهِ قَٰنِتِينَ ﴿٢٣٨﴾

**درویش وایي:** چې تفسیر ددې آیت هم معرکة الآراء دی، روح البیان صرف دا قدر ویلي دي چې قنوت ذکر ته وایي یعني تاسي په ولاړه کې ذکر کوي چې مراد ځنې قرآن دی، او بل تفسیر ده دا کړی دی چې په خشوع او عجز وخدای ﷻ ته دریږئ په لمانځه کې یعني شا وخوا مه ګورئ په شګو کې لاس مه وهئ او په امورو کې د دنیا فکر مه وهه الا ناسیا انتهی، او روح المعاني تفسیر په مطیعین سره کړی وهو المروي عن ابن عباس رضي الله عنه او بل تفسیر یې دا کړی دی چې لمونځونه پر احسنه وجه پای ته رسوئ چې خلل یې په هیڅ شي د فرائضو او واجباتو او سنتو او مستحباتو رانه سي، وهذا صلوة الکاملین المستغرقین في محبته جل سلطانه. او امام بخاري رحمه الله یې تفسیر په ساکتین کړی دی.

**درویش وایي:** چې دا تفسیر احسن التفاسیر دی او موافق له هغه حدیث سره دی چې بخاري او مسلم وجماعة المحدثین یې روایت کړی له زید ابن ارقم رضي الله عنه څخه چې موږ په زمانه کې د علیه الصلوة والسلام یو له بله سره خبرې کولې چې پر بغل به یې ولاړ و په لمانځه کې حتی نزل قوله تعالی وقوموا لله قانتین، نو موږ علیه السلام امر کړو په سکوت په لمانځه کې ونهینا عن الکلام. او تفسیر مظهري دا تفسیر اول ذکر کړی او دلیل یې حدیث د زید بن ارقم رضي الله عنه راوړی دی او اصحاب د امام شافعي رحمه الله په دعاء قنوت تفسیر کوي، او نور تفاسیر ضعیفه یې هم راوړي او بیا یې رد کړي دي ان شئت فارجع الی التفسیر المظهري وتفسیر روح المعاني.

# فَاِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا اَوْ رُكْبَانًا ۚ

**پوه سه:** چي رجال جمع د راجل ده لکه صحاب جمع د صاحب د يا قيام جمع د قائم ده يا نيام جمع د نائم ده او رکبان جمع د راکب ده.

**فائده:** امام شافعي رحمه الله او امام احمد رحمه الله په دغه آيت سره دليل وايي چي لمونځ په حال کي د مسابقه او جنگ روا دی يعني جنگ به هم کوي او لمونځ هم، او امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله وايي چي لمونځ په حال کي د مشي او مسابقې نه دی روا او دا آيت دليل د ماقال الشافعي واحمد نه سي کېدای ولي چي معنی د راجل خو ماشي نه ده بلکه معناه القائم على الرجلين.

**پوښتنه:** په صلوة خوف کي ولي بدلي ده د مسلمانانو غازيانو او تگ راتگ يعني چي په حديث کي د بخاري او مسلم او ټولو صحاح ستة وو داسي ترتيب د صلوة خوف راغلی دی چي امام دي مجاهدين دوې ډلي کړي يوه ډله دي مخامخ ودښمن ته ودروي او بله ډله دي امام له خانه سره پر لمانځه ودروي، نو چي دې ډلي د امام سره يو رکعت په جماعت وکړی دا ډله دي ولاړه سي د اولي ډلي په ځای کي دي مقابل العدو ودرېږي او هغه مخنی ډله دي راسي د امام سره دي په جماعت دوهم رکعت د جماعت وکړي كما سيجيئ بيان الكيفيات المختلفة لصلوة الخوف في تفسير سورة النساء ان شاء الله تعالى؟

**ځواب:** پر هغه فعل چي شرعا ثابت سي لکه مشي په صلوة الخوف کي چي د رايه او د عقل دخل نه وي پکښې پر هغه د بل فعل قياسول نه دي روا كالصلوة في حال المسابقة كما تقرر في اصول الفقه.

**سوال:** چي د سړي په لمانځه کي اودس مات سي نو ولي مشي لاجل الوضوء ورته روا دي؟

**ځواب**: هغه مشي خو هم شرعا ثابت دي وهذا المشي اهون وادنى حالا دي تر مشي په حال کي د لمانځه په وخت کي د جنګ فلايجوز قياس الاعلى على الادنى كما في كتب الفقه والاصول.

**مسئله**: که خوف د دښمن سخت و خلګو ته روا دی چي د سپر تيا په حالت کي لمونځ وکړي او په رکوع او سجده کي اشاره کوي او که توجه وقبلې ته نه وه ورته ممکنه نو پر هر طرف د قدرت يي لمونځ روا دی، لکن امام اعظم رحمه الله وايي چي په جماعت سره په داسي حالت کي لمونځ نه دی روا، او امام محمد رحمه الله وايي چي په جماعت به لمونځ کوي، قال في الهداية وليس لصحيح لانعدام الاتحاد في المكان آه.

**فائده**: فان خفتم شرط دی او جزاء يي محذوفه ده اى فصلوا او رجالا او ركبانا حال دی له ضميره څخه د صلوا فافهم.

**تبصره**: درويش وايي چي ددغه آيت څخه او له اختلاف څخه د امامانو د مذاهبو اربعه وو په تفسير کي ددې آيت بايد مسلمانان لوړ مقام او لوی فضيلت د صلوات خمسه وفهموي، حتى چي تاسي وارېده چي بعض ائمه په حال کي د جنګ او مسابقه او د تګ او ځغاستي په حال کي لمونځ روا بولي، او مستقبل القبلة وغيرها يې هم روا بولي چي حتى بعض امامان د رکوب په حال کي د جماعت لمونځ روا بولي، نو که د لمانځه يو وخت ترک روا وايي په داسي خوف کي به روا وايي، او که ترک د جماعت په يو وخت کي روا وايي نو بايد باتفاق الائمة په داسي حالت کي د خوف د جماعت کول ناجائز وايي.

**درويش وايي**: که زه هغه آيات قرآنيه او احاديث نبويه چي په صحاح سته وغيرها کي راغلي دي راغونډ کړم بايد مستقل جلد ته د تفسير ځان آماده کړم، لکن په ضرورت ددې چي جلدونه د تفسير به ښېځي ډېر سي دا جمع الآيات القرآنيه والاحاديث النبويه مي صرف نظر کړه، عاقل لره اشاره کافي ده او جاهلانو تارکانو لره د لمونځو او تارک الجماعة کسانو لره مجلدات په دې باب کي فائده نه کوي، سعدي رحمه الله

روز محشر که جان گداز بود    اولین پرسش نماز بود

**پوه سه:** چي پنځه لمونځونه پر منزله د مهمانی. د رب العالمین دي لعباده المؤمنین، نو لکه چي په ضیافت کي چي رنګارنګ خوراکي شیان راوړه کېږي او د هر طعام جلا جلا رنګ وي او جلا جلا خوند وي، داغه رنګه لمونځ مشتمل دی پر رنګ رنګ واجباتو او سننو وغیرها چي د هر یوه جلا جلا خوند دی عند اهل الله، او د تکفیر د ګنهو جلا جلا فوائد پکښي نغښتي دي.

**فائده:** هغه مسلمان چي عذر شرعي نه لري او اذان اوري ترک د جماعت ورته نا روا دی لانها سنة مؤکدة غایة التاکید حتی که په یو کلي او ناحیه کي لمونځ په جماعت نه کوي امام المسلمین به پر هغه کلي او ناحیه مسلح حمله کوي لانها من شعائر الاسلام، او که یو سړی تارک الجماعة وي بالکلیة قاضي الوقت دې تعزیر ورکړي او شاهدي دې نه قبلوي، او امام المسجد او همسایه ګان د تارک الجماعة ګناه کار دي چي وده ته دعوت د جماعت نه ورکوي.

فَإِذَآ أَمِنتُمْ فَٱذْكُرُوا۟ ٱللَّهَ كَمَا عَلَّمَكُم مَّا لَمْ تَكُونُوا۟ تَعْلَمُونَ ﴿٢٣٩﴾

چي تاسي په امن کي سئ؛ یعني خوف د دښمن مو ولاړ سي بیا نو ذکر د خدای ﷻ کوئ. یعني لمونځونه کوئ پوره سره له ټولو شرائطو او ارکانو او واجباتو او مندوباتو، یعني په حال کي د امن، نو بیا داسي لمونځونه مه کوئ لکه په حال کي د عذر د دښمن چي مو کوله لانه قد زال عذرکم فارجعوا الی اصل الصلوة الشروعة لکم لکه چي تاسي ته تعلیم کړی و خدای ﷻ د لمانځه پر ژبه د علیه الصلوة والسلام. کلمه د "ما" مصدریه ده هغه شی چي تاسي علم نه پر درلودی یعني قبل تعلیم الله چي کیفیت د لمانځه دی من تکبیر الافتتاح الی اخیر الصلوة علی الوجه المشروع المعهود.

وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا وَصِيَّةً لِّأَزْوَاجِهِم مَّتَاعًا إِلَى الْحَوْلِ

او هغه كسان چې مړه سي يعنې قريب الموت سي لـه تاسي څخه اې نرانو، او پرېږدي دي ماينې، نو دوئ به وصيت كوي لپاره د ماينو.

**يوه سه:** چې "صية" منصوب دی په فعل مقدر سره ای فليوصوا وصية ددوئ نفع شيان يعني نفقه او كالي تر يوه كاله پوري له وخته څخه د مرگ.

**يوه سه:** چې "مطاعا" منصوب دی په مقدر فعل يعني مفعول مطلق دی والتقدير ومتعوهن متاعا . او يا مفعول به د فعل محذوف دی ای فليوصوا متاعا.

غَيْرَ إِخْرَاجٍ

او له كوره به يې ورثه د ميت مېړه نه باسي.

**يوه سه:** چې غير اخراج حال دی لـه "زوجات" څخه او اخراج په معنا د مفعول دی ای حال كون الزوجات غير مخرجات، او يا "غير" منصوب دی په نـزع د حرف جر ای مـن غيـر اخراج، وحاصـل هـذه الآيـة چې د سړي د زكندن وخت ورسېږي پر ده واجب ده چې دی به وصيـت كـوي وورثـه وو تـه خپـل چې ژما ماينې تـه ژمـا لـه مالـه نفقه او كـالي وركوئ تر تمامـه د كال پوري، او له كوره به يې نه باسئ، لكن دا حكم په ابتداء كې د اسلام و او په ايت الميراث سره منسوخ سو، ولهذا قـال عليـه الصلوة والسـلام لا وصية لوارث، او په آيت الميراث كې خو ماينه وارث د مېړه يا په ربع المال سره عند عدم الولد للميت ذكرا كان او انثى منهـا او من غيرها ، او يا په ثمن سره ده عند وجود الولـد مطلقا للزوج الميت، نو په هغه وخت كې عده د متوفى الزوج ښځي هم يو كال او احداد يعني ترک الزينـة يې هم يو كال واجبه و. ثم كما نسـخت الوصية لهـن بآيـة الميـراث كذالک نسـخ العـدة الحولية والاحداد بقوله تعالى ﴿اربعة اشهر وعشرا﴾.

فَإِنْ خَرَجْنَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِي مَا فَعَلْنَ فِي أَنفُسِهِنَّ مِن مَّعْرُوفٍ

او که دغه کونډیانې ووتلې له کوره څخه د مخه تر کال یعني بېله اخراجه د ورثه وو، نو ګناه نسته پر تاسي اې حاکمانو د اسلام او یا مخاطب اولیاء د میت دي په هغه کار کي چي دغه کونډیانې یې کوي په ځانو کي من ترک الحداد والتزيين، او یا مېړه کول پسله څلورو میاشتو او لسو شپو د عدې، او هغه کار چي دوئ کوي معروف في الشرع به وي.

وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٢٤٠﴾

او خدای ﷻ غالب دی چي څوک دده له حکمه څخه مخالفت وکړي له هغه څخه انتقام واخلي، او حکیم دی چي د مصالحو سره د عبادو برابر کار او حکم کوي، فلاينبغي للمؤمن ان يخالف حكمه تعالى لانه مصلحة محضة وفائدة خالصة في الدنيا والآخرة.

وَلِلْمُطَلَّقَاتِ مَتَاعٌ بِالْمَعْرُوفِ ۖ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِينَ ﴿٢٤١﴾

او اجب دی د مطلقاتو ښځو لپاره د نفع شی ددوئ یعني انفقه والکسوة په معروف سره یعني على الموسع قدره وعلى المقتر قدره.

**پوه سه:** چي حقا مفعول مطلق دی د فعل محذوف ای حق حقا پر هغه کسانو چي متقين وي له شرک څخه یعني مسلمانان وي.

**فائده:** بعض مفسران وايي چي مراد له متاع څخه په دې آیت کي نفقه د ایام د عدې ده.

**پوښتنه:** ددې آیت او د دمخه آیت یعني "والذين يتوفون الآية" څه مناسبت دی چي سبب د عطف ګرځېدلی دی؟

**ځواب:** مناسبت یې دادی چي په دمخه آیت کي متوفى الزوج ښځه د مېړه په

حقوق کي یو کال په عده کي ناسته وه او مطلقه ښځه هم په حق کي د مېړه په عده کي ده فیجب الانفاق في کلا الصورتین في مال المیت او في مال المطلق

**پوه سه**: چي حکم د وجوب الانفاق اتفاقي دی که طلاق رجعي و او که طلاق بائن و، د امام اعظم رحمه الله په نېز هم نفقه د ایام د عدې واجب ده په دلیل ددې چي لفظ د مطلقاتو عام دی ولقوله تعالی في حق المطلقات ﴿اسکنوهن من حیث سکنتم من وجدکم﴾

**سوال**: په دې آیت کي خو صرف سکنی ذکر سوې ده او د نفقه ذکر نسته؟

**ځواب**: دغه آیت په قرائت کي د ابن مسعود رضي الله عنه داسي راغلی دی چي نبي علیه الصلوة والسلام وویل چي المطلقة ثلاثا لها السکنی والنفقة رواه الدار قطني رحمه الله.

كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿۲۴۲﴾

دغه رنګه یعني احکام د طلاق او د عدې بیانوي خدای ﷻ وتاسي ته آیات خپل.

**پوه سه**: چي په صیغه کي د مضارع اشاره ودې ته ده چي وروسته به هم خدای ﷻ داسي دلائل او احکام بیان کړي چي ستاسي به د دنیا او آخرت فائدې پکښې درج وي الی ان یتم الدین المبین الاسلام، کما قال الله تعالی عند ذالک ﴿الیوم اکملت لکم دینکم واتممت علیکم نعمتي ورضیت لکم الاسلام دنیا﴾ قال المولوي المعنوي في المثنوي

کشتي بې لنګر آمد مرد شر — که ز باد کژ نیابد او حذر

لنګر عقلست عاقل را امان — لنګری دریوزه کن از عاقلان

**درویش وایي**: چي عاقل سړی په نېز د اهل الله هغه سړی دی چي له اعراضو ځخه د دنیا غافله وي او په اخروي امورو کي غریق او مشتغل وي شدائد د دنیا پر غاړه وړي الی ان یصل الی الباري ﷻ.

**حکایت**: شقیق بلخي قدس سره چي د تاریخ په پاڼو راغلی ولي الله دی، ده یو وخت دري ورځي مسلسل کوم خوراکي شی نه کړی پیدا چي وه یې خوري، نو چي له عبادته ضعیفه سو، نو لاسونه یې د اسمان پر خوا پورته کړه او وه یې ویل یا رب اطعمني، نو چي له دعاء څخه فارغه سو یو سړی یې ولیدی چي شقیق ته ګوري شقیق رحمه الله چي هغه سړي ته وکتل هغه سړي السلام علیکم ورته ووایه او وروسته تر سلام یې ورته وویل یا شیخ تعال معي یعني شېخه له ما سره راځه، نو شقیق رحمه الله ورسره را رهي سو، نو هغه سړي دی یوې خوني ته ورروستی چي په هغه خونه کي پر مېزو قسم قسم طعامونه پراته وه او هوري بعض مریان او مینځیانې ولاړې وې د خدمت لپاره، نو شقیق رحمه الله چي د درو ورځو وږی و په ښه مزه یې ډوډی وخوړله او هغه بل سړی ورته ولاړ دی، نو شقیق رحمه الله چي موړ سو ولاړ سو یعني له خوني څخه ووتی، هغه بل سړي ورته وویل الی این یا شیخ چېري ځې شېخه؟ شقیق رحمه الله ورته وویل: چي ځم مسجد ته د خدای ﷻ عبادت کوم هغه سړي ورته وویل یا شقیق پوه سه چي دا سرای ستا دی او دا مریان او مینځیانې هم ستا دي او زه هم ستا مریی یم په دې معنا چي زه ستا د پلار مریی وم زه یې په تجارت پسې له ډېري زمانې استولی وم زه چي اوس له تجارت څخه راغلم ستا پلار خدای بخښلی وفات سوی و، نو مي له خلکو څخه ستا پوښتنه وکړه هغو راته وویل چي هغه په دغه مسجد کي د خدای ﷻ په عبادت مشغوله دی، هغه و چي زه تاته درغلم او ته مي دلته راوستلې، نو هغه سړي ورته وویل الدار وما فیها لک، نو شقیق رحمه الله ورته وویل که چېري مریان او مینځیانې زما وي فهم احرار کلهم لوجه الله، او دا اموال هم زما وي ما وتاسي ته بخښلي دي تاسي یې سره ووېشئ یعني تقسیم یې کړئ فاني لا ارید شیئا یمنعني من العبادة.

**درویش وایي**: هذا هو حقیقة المحبة لله ﷻ

قال السعدي رحمه الله

تعلق حجابست وبې حاصلی چوپيوندها بگسلی واصلی

قال عارف بالله خواجه عبدالله انصاري هروي قدس سره العالي

ای طالبی که دعوه عشق خدا کنی بغیر او نظر بسحبت چرا کنی
از جستجوئی خلق تو بیگا نه شو اگر خواهی که دل بحضرت او اشنا کنی
حقا که شور ولوله در اسمان فتد آن دم که تو زبیم خدا یک ندا کنی
ملک دو عالم از تو شود گرزروی عجز خود را فدای خاطر یک بینوا کنی
انصاریا چو روز شوی روشن از شبی که خود را بعجز بر در سبحان گدا کنی

**درویش**: هیچمدان میگوید که مردم بیگانه از عشق الهي در دنیا که سجن المؤمن است قرار فرموده واز عذر عمرهای دراز خواهند ومیجونید نه برای انکه عمر دراز را وسیله بگردانند مزرعه آخرت را یعني عملا بقول سرور کائنات فخر موجوداتﷺ که الدنیا مزرعة الآخرة بلکه برای آن میخواهند که روزی چند از مستلذات دنیاوی وخواهشات نفسانی نصیبی وافر گرفته از محبت الهي خیل دور افتد. پس در زمان حاضر یعني در سنوات که از یکهزار وچهار صد از هجرت نبويﷺ بالاتر شده و ابرهای فتن و شرور بر بالای اسمان مسلمانان میبارند قطع تعلق از مردم خیلي زیبا وقشنگ است بلکه النائم فیها خیر من الیقظان البته اگر در عین وقت قطع تعلق بخدمت دین احمدیﷺ مشتغل باشد نور علی نور خواهد بود.

## أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ خَرَجُوا مِن دِيَارِهِمْ

**درویش وايي**: چي ټوله مفسران پر دې خبره متفق دي چي "دیار" جمع د دار ده مراد ځني منازل دي، د قوم آتي ذکرقصتهم کما ستسمع ان شاء الله تعالی، او پر دې هم متفق دي چي استفهام د تعجیب دی یعني مخاطبین په تعجب کي اچول، او لپاره د تشویق ددوئ دي وروسته قصه ته او پر دې هم متفق دي چي هر ځای چي په قرآن مبارک کي "الم تر" راسي هم

ورته معنا يې ده، لکن په دې کي اختلاف دی چي مراد له روئيت څخه روئيت بصري دی او که علمي، بعض مفسران وايي چي روئيت بصري دی.

**سوال:** دا قصه خو د سمع کار دی يعني د اورېدو نه د ليدو کار دی دا قصه خو ډېره پخوا تېره سوې ده؟

**ځواب:** هو مقتضی د ظاهر خو داوه الم تسمع، لکن چونکه دغه قصه د آيته په اهل کتابو کي او په تواريخو کي ډېر شهرت درلودی، نو سماع ددغي قصې نازل منزلة الروية وګرځاوه او "الم تر" يې وايه، ولي چي چشم ديد شی په تيقن کي قوي دی تر مسموع شي کمايدل عليه قوله تعالی حکاية عن حال ابراهيم﷤ ﴿ربي ارني کيف تحی الموتی. قال اولم تؤمن، قال بلی ولکن ليطمئن قلبی﴾ الی آخير الآيات، او امام احمد ﷫ وايي چي روئيت په آيت کي روئيت قلبي دی چي معنا يې علم دی.

**پوښتنه:** علم چي معنا د رؤية قلبي ده په الی سره نه متعدي کېږي يعني لا يقال علمت اليه، بلکه رؤيت بصري په الی متعدي کېږي فيقال بصرت اليه؟

**ځواب:** چي روئيت علم يې متضمن معنا لره د انتها او اصول ګرځولی دی فالمعنی الم ينتهی علمک الی قصة هولاء، او په دې کي هم اختلاف دی چي مخاطب په الم تر کي څوک دي، بعض مفسران وايي چي دا خطاب عام لکل من يتاتی منه الرؤية، لپاره ددې چي چونکه دا قصه غايت شهرت لري بايد هر څوک په خبر وي او د تعجب په سترګو ورته وګوري او يا يې واوري، او روح البيان والا وايي الخطاب بحسب الظاهر وان کان متوجها الی النبي ﷺ الا انه بحسب المعنی متوجه الی جميع من سمع قصتهم من اهل الکتاب وارباب التواريخ. او تفسير کواشي وايي چي همزه د استفهام چي پر نفي داخله سي معنا يې ايجاب دی فالمعنی قد علمت خبر الذين خرجوا الآية. او ابن تمجيد ﷫ وايي چي لفظ د "الم تر" ګاهي خطاب وهغه چاته وي چي د مخه په قصه خبر وي او ګاهي مخاطب هغه کسان وي چي د مخه په قصه نه وي خبر، نو مخاطب دلته يا هغه کسان دي چي دا قصه يې له

مخه اوربدلي وي من اهل الكتاب واصحاب التواريخ، نو مقصود له خطاب څخه ودوئ ته وريپادول د قصې دي او په تعجب کي اچول ددوئ دي، او يا مخاطب هغه کسان دي چي دا قصه يې نه وي اوربدلي، نو خداى ﷻ دا قصه ودوئ ته بيانوي او دوئ په تعجب کي اچوي له حال څخه ددغو کسانو.

**درويش وايي:** چي يوه ترجمه د آيت داده چي ته نه گورې يعني اې عليه الصلوة والسلامه وهغه کسانو ته چي دوئ ووتل د خپلو ځايو او کورو څخه وعلى هذا قس التراجم الاخر التي مرت في التفصيل المذكور فافهم هداک الله لدرک مطالب الكتاب المجيد

## وَهُمْ أُلُوفٌ

او دوئ په زرو وه

**پوه سه:** چي عطاء خراساني ﷬ وايي چي درې زره کسه وه، او وهب ﷬ وايي چي څلور زره کسه وه، او بعض وايي چي اته زره کسه وه.

**درويش وايي:** چي روح البيان دا درې سره قوله ضعيفه گڼلي دي، دى وايي چي الوف جمع كثرت د الف ده، نو بايد تر لس زره کسه بالا وي فلا يقال في عشر آلاف فما دونها الوف آه. او سدي ﷬ چي قول يې د اعتبار ور نه دى وايي چي تر ديرش زره کسه څه بالا وه، او ابن جريح وايي چي څلويښت زره وه، او عطاء بن رباح وايي چي اويا زره کسه وه.

## حَذَرَ الْمَوْتِ

له ېرې د مرگ، هذا مفعول له لقوله خرجوا

## فَقَالَ لَهُمُ اللَّهُ مُوتُوا ثُمَّ أَحْيَاهُمْ

نو خداى ﷻ ورته وويل چي مړه سئ، يعني نو ټوله مړه سوه كمايدل عليه مابعده، او وروسته يې بېرته ژوندي کړه.

**پوه سه:** چي د موتوا وينا خو خداى ﷻ بالذات ودوئ ته نه ده کړې بلکه

قائل د قول مذکور ملکه وه لکن لفظاً يې اسناد وخداي ﷻ ته وکړی لان الامر القادر الجبار نافذ لامحالة.

**درويش وايي:** چې دا امر تکليفي نه دی لانه لايقدر احد على موت نفسه بل هذا امر تکويني فتفکر في الفرق بينهما.

**درويش وايي:** چې قصه ددغو کسانو چې مفسرينو ذکر کړې ده داسي ده چې دوئ يو قوم وه له بني اسرائيلو څخه په يوه قريه کي لـه قريو څخه د واسط چې د هغې قريـه نـوم د اوردان و، نـو پـه دې قريـه کـي طـاعون يعني وبـاء گـډه سـوه، نـو پيداالانو او غنيـان چـې د وتلـو وس يـې درلـودی قريـه يـې پرېښوله او بلي خواتـه ولاړه، او فقرا او مسـاکين او بې طاقتـه کسـان پاتـه سوه، نو په دې وباکي ډېر باقيمانده کسان د قرې هلاک سوه او هغه کسان چې وتلي وه هغه سالم پاته سوه، چې وباء ارامـه سوه او ورکـه سوه نو هغه غنيـان بېرتـه قرې تـه راغلـه پـه ښـه سـلامتيا سره، نـو بـاقي مانـده ژونـدي کسانو د قريې وويل وگورئ زموږ اغنياء تر موږ هوښياران وه هغه تې سالم پاته سوه، او دوئ وويـل چې کـه زموږ د قريې مړو کسانو هم دغسې کړي وايی يعني لـه وبـاء څخـه تښتېدلي وايـی، نـو دوئ بـه هـم بـاقي پاتـه سوي وايی، او دا يې هم وويل چې که بل وار وباء واقع سوه موږ بـه داسي وطن تـه تښتو چې هلته وباء نه وي، نو راوي وايی چې راتونکی کـال هـم وبـاء واقـع سوه، نو اکثره خلگ له هغې قريې وتښتېدل او وطن يې پرېښـو، نـو د افـيح په نامه يوه شپله چې د دوو غرو په منځ کي وه مقيم سوه او خېمې وغيرها يې ودرولې، او ددوئ دا گمـان و چې دا ځای ښـه د نجات ځای دی لـه وبـاء څخه، نو دوې ملکي خدای ﷻ راواستولې چې يوه د شپلې پـه سر کي او بله يې په پای کي ودرېدل او دواړو نعره وکړه چې مړه سئ تولـه، نـو پـه اراده او قدرت د خدای ﷻ داسي مړه سوه لکه يـو سړی چې مړي او ددوئ چارپايـان هم تولـه مړه سـوه، او اتـه ورځې چې پر تېرې سوې بدنونـه يې وېرسېده او غوښې يې وشـوړېدلې او تر انـدازه ډېره بـد بـوئي يې ولاړېدل، نـو د کلي

خلک چې ورته راغله دده دوی له دفن څخه عاجزه سوه، نو یو د پوال یې پر راوګرځاوه تاچې له درنده ګانو څخه محفوظه وي. نو دا مړي ډېره زمانه په دغه ځای کې پراته وه حتی چې غوښې یې توی سوې او رګونه او هډوکې یې سره جلا سوه، والله اعلم چې څو سوه کاله به پر تېر سوي وي حتی چې یو نبي د بني اسرائیلو چې نوم یې خرقیل و او وروسته تر موسی ﷺ دریم خلیفه او نبي د بني اسرائیلو و. ولې چې تاریخ وایي چې وروسته تر موسی ﷺ نائب الوقت والنبي یوشع بن نون ﷺ و او وروسته تر هغه کالب بن یوحنا ﷺ و او وروسته تر هغه خرقیل ﷺ نبي سو. او خرقیل ﷺ ته به خلګو ابن العجوز وایه یعني د سپین سري زوی ولې چې دده مور وچه وه نو چې ډېره سپین سرې سوه خدای ﷻ ته یې زارۍ وکړې چې ماته نر اولاد راکړې، نو خدای ﷻ ورته خرقیل زوی ورکړی.

**فائده:** حسن بصري ﷫ وایي چې دغه خرقیل په نامه د ذا الکفل هم یادېدی، ولې چې یهودیانو اویا (۷۰) کسه نبیان نیولي وه چې قتل یې کړي. نو خرقیل ﷺ د یو څو ورځو مهلت ورکولو لپاره ددوی ضمانت وکړی، نو خرقیل ﷺ ودوی ته وویل چې تاسي ځانونه خوندي کړئ، نو بیوازې ما به مړ کړي نو د اویاو کسه تر مرګه زما بیوازې مرګ ښه دی، نو پسله میعاد معلومه چې یهود وخرقیل ﷺ ته راغله چې هغه نبیان په لاس راکړه، خرقیل ﷺ ورته وویل چې هغه خو پر خپل مخ ولاړه او ماته یې ځای هم نه دی معلوم، او یهود خدای ﷻ د خرقیل ﷺ له وژلو څخه پخپل فضل او کرم سره منع کړه او دی یې خندی وساتی، راوي وایي چې یوه ورځ خرقیل ﷺ پر دغه شپله تېرېدی، نو دا ډېر هډوکي د انسانانو چې یې ولیدل نو په دریاب کې د تعجب غرق سو او فکر یې په دې مړو کې واهه چې دا هډونه دانه دانه سره پراته په ورځ کې د قیامت به څرنګه سره پیوند ېږي او بیا به ژوندي کېږي، نو د خدای ﷻ له خوا څخه وحی ورته راغلې چې د قدرت یوه علامه په تا ووینم خرقیل ﷺ ورته وویل نعم، نو د

خدای ﷻ له خوا څخه یعني په ذریعه د ملکي یو آواز چي خرقیل ﷺ واورېدی یا ایها العظام ان الله یامرکم ان تجتمعوا، فاجتمعت من اعلی الوادي واسفله. او یو له بله لګه په اصل خلقت چي وه سره جمع سوه، نو له هډوکو انسانان جوړ سوه بېله غوښو او وینو، او بعض مفسران ؒ وایي چي امر ددغي نعرې خدای ﷻ وخرقیل ﷺ ته ورکړی حیث قال له نادا ایتها العظام آه وروسته یې خرقیل ته وویل نادا ایتها الارواح ان الله یامرکم ان تقوموا، روای وایي چي پر هغو هډوکو غوښو پیدا سوې او وینې پکښې جاري سوې او ژوندي انسانان سوه، یقولون سبحانک اللهم وبحمدک لا اله الا انت ثم رجعوا الی بلادهم او اوطانهم وعاشوا دهرا الی ان ماتوا الی آجالهم واحدا واحدا.

**فائده**: پر دغه ژوندي سوي انسانانو د مړي رنګ پر مخانو یې ښکاره و، او د مړي بوی به یې تلی حتی ددغه سبط په اولاد کي دغه نخښه تر اوسه پوري پاته ده، یعني رنګونه یې د مړو دي او چي نوي کالي واغوندي د کفن غوړتیا پر معلومېږي.

**درویش وایي**: چي ددې قصې په راوړلو سره خدای ﷻ مسلمانان دلاوره کوي پر جهاد باندي په دې معنا چي د اجل وخت معین دی له مرګه څخه خو سړی په تېښته نه خلاصېږي نه داسي ده چي جهاد ته سړی ولاړ سي نو به حتما شهید کېږي، او نه داسي ده چي سړی پر کور کښېني جهاد ته نه خي نو به هغه نه مري، ولي چي د احادیثو مبارکوو په کتابو کي راغلي دي چي بعض صحابه کرام ؓ په ټولو مغازیو کي د رسول کریم ﷺ سره شامل سوي وه لکن تر پایه پوري نه دي شهیدان سوي، او په خپلو کورو کي په شهادت ورسېدل لکه عمر بن خطاب ؓ او عثمان ؓ او علي ؓ او بعض په خدایي مرګ عند انقضاء الاجل مړه سوي دي.

**مسئله شرعیه**: که وباء د چا په وطن کي واقع سوه له هغه وطن څخه په قصد د فرار له مرګه به نه وزي، او که چېري په یو وطن کي وباء واقع وه د بل

وطن سړی به هغه وبائي وطن ته نه ورځي، د دوارو مسئلو دلیل دادی چي عقیده اسلامي د مسلمان پر ځای پاته سي فتفکر في هذا هداک الله.
والدلیل علی ذالک هو الحدیث الذي رواه احمد والبخاري ومسلم والنسائي رح عن اسامه بن زید رضي الله عنه عن النبي ﷺ قال اذا سمعتم بالطاعون في ارض فلاتدخلوا علیه واذا وقع في ارض فلا تخرجوا من ها وانتم فیها فرارا منه.

**ترجمه**: علیه الصلوة والسلام وایي چي تاسي واورېده د طاعون په یو وطن کي نو پر طاعون مه داخلېږي، یعني د طاعون ځکي ته مه ورځی، او که طاعون په یو وطن کي واقع سو او تاسي په هغه وطن کي اوسېدلاست، له هغه وطنه مه وزي په قصد د فرار له طاعون څخه، او بغوي رحمه الله پخپل سند یو حدیث طویل راوړی دی چي حاصل یې دادی چي امیر المؤمنین عمر رضي الله عنه چي غزاء ته د شام روان و نو د سرغ مقام ته چي ورسېدل، نو عمر رضي الله عنه ته چا خبر ورکړی چي په شام کي وباء واقع ده، نو عمر رضي الله عنه وروسته تر ډېرو مشورو د صحابه کرامو رضي الله عنهم په دې باب کي چي موږ پر دې وباء باندي ورسو او که بېرته ولاړ سو، نو اخیر چي عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه هغه مذکوره آنفاً حدیث ورته ذکر کړی، نو عمر رضي الله عنه د سرغ له مقام څخه بیرته مدینې منورې ته ستون سو سره د فوج خپل.

إِنَّ اللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُونَ ﴿٢٤٣﴾

په تحقیق خدای ﷻ د لوی فضل څښتن دی پر خلکو چي دا قصه یې ورته وکړه لکن ډېر خلګ یعني کفار د خدای ﷻ شکر نه وایي یعني ایمان نه راوړي.

**پوه سه**: چي فرار له طاعونه څخه ګناه کبیره ده او نهي چي په حدیث نبوي کي راغلي دي لپاره د تحریم دي ویدل علیه قوله علیه الصلوة والسلام الفار من الطاعون کالفار من الزحف یعني له جنګه څخه د کفارو، په تاریخ کي د عبد الملک بن مروان راغلي دي چي یوه وخت سخته وباء دده په قیام ګاه یعني په ښار کي واقع سوه، نو دی د شپې سپور سو د تېښتي په نیت او یو مریی یې له ځانه سره ملګری کړی، نو عبد الملک ته

چونکه پر آس خوب ورتلی، نو مريي ته يې وويل چي ته يوه قصه راته وکړه چي خوب راځخه ولاړ سي نو مريي ورته وويل چي زه به څه يم چي امير المؤمنين ته قصه کوم، عبدالملک ورته وويل چي په هر صورت هر څه قصه چي دي اورېدلې وي راته وه يې کړه، مريي ورته وويل چي داسي قصه ما اورېدلې ده چي يوه ګيدړه وه چي د زمري خدمت يې کاوه په دې شرط چي ته به ما له دښمنانو څخه ساتې چي زما د ښکار نيت لري زمري وعده ورکړه چي صحيح ده د دښمن دي زه ضامن يم، يو وخت ګېدړي عقاب مرغه چي ګېدړي او چغالان وغيره کوچني حيوانات ښکاروي وليدی نو پناه يې وزمري ته ورووړه، نو زمري دا پر خپل شا کښېښول، عقاب پر راشوه سو او ګيدړه يې د زمري له شا څخه پورته کړه ګيدړي وزمري ته ور نږغ کړه چي تا چي زما سره وعده کړې وه چي له دښمنه دي خلاصوم هغه وعده پر ځای کړه او له عقاب څخه مي خلاصه کړه، زمري ورته وويل چي ما خو ستا سره د مځکي د دښمنانو د خلاصون وعده کړې وه، د اسماني دښمنانو څخه خو دي نه سم خلاصولای، عبدالملک ومريي ته وويل چي وعظتني واحسنت فرجع ورضی بالقضاء، سعدي ﷫

قضاء کشتي آنجا که خواهد برد وگر ناخدا جامه برتن درد

در آبی که پيدا نبا شد کنار غرور شفاور نيايد به کار

**يوه سه:** چي هغه قضاء الهي چي قضاء مبرم يې بولي يعني حتما مقضيا وي د هغې رد په هيڅ شي نه کېږي، نه په دوا نه په دعاء او نه په صدقه وغيره قال عليه الصلوة والسلام الحذر لا ينفع عن القدر. او يوه قضاء معلقه په يو شي ده هغې قضاء ته دوا يا دعاء يا صدقه وغيره نفع کوي، کما قال عليه السلام الصدقة والصلة يعني صلة الرحم تعمران الديار وتزيدان في الأعمار.

**وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٤٤﴾**

او تاسي اې مسلمانانو جهاد کوئ له کافرانو سره في سبيل الله يعني په لاره

کي د خدای ﷻ چي صرف او صرف لپاره د اعلاء کلمة الله وي او په دې پوه سی چي خدای ﷻ او ربدونکی ستاسي د خبرو او عالم دی ستاسي په احوالو باطنه او ظاهره و. حاصل دادی چي فرار له مرګه څو فائده نه کوي کمامر. نو ښه داده چي په قتال في سبيل الله کي ژوند صرف کي نو که اجل مقدر راغلی څو في سبيل الله به وي، او که ژوندی پاته سوې نو نصر او ثواب دی.

**پوه سه:** چي امام بخاري پخپل صحيح کي د عبدالله بن عمر رضی الله عنه څخه داسي روايت کړی دی، چي څه وخت هغه آيت نازل سو يعني ﴿مثل الذين ينفقون اموالهم في سبيل الله كمثل حبة انبتت سبع سنابل في كل سنبلة مائة حبة الآية﴾ چي حاصل دادی چي ثواب د نفقې في سبيل الله يو په اوه سوه دی، نو عليه الصلوة والسلام داسي وويل رب زد امتي يعني يو تر اوه سوه بالا ثواب ورکړې منفق في سبيل الله ته، نو دا آيت نازل سو.

مَنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضٰعِفَهُ لَهُ أَضْعَافًا كَثِيرَةً

څوک دی هغه سړی چي خدای ﷻ ته قرض ورکړي قرض حسن چي له حلال ماله او ښه شی وي او مقرون بالاخلاص او د زړه په خوشحالی سره وي، نو خدای ﷻ هغه قرض يعني ثواب د هغه مال به وده ته دوه چنده کړي په ډېرو دوو چنديو سره. چي هغه يو خدای ﷻ په خبر دی چي څو ضعفه به وي، او هغه څوک چي يې تفسير يو په اوس کوي هغه خطاء دی ولي چي په حديث کي د بخاري چي ددې آيت په شان نزول کي راغلی وکمامر عليه الصلوة والسلام طالب د زيادت پر يو په اوه سوه باندي کمامر ايضاً.

**پوه سه:** چي کلمه د "من" استفهامي ده او مرفوع محلاً مبتداء ده او کلمه د "ذا" يې خبر دی او "الذي" صفت د "ذا" دی.

**پوه سه:** چي بعض مفسرين مراد له "قرض" څخه قرض حقيقي بولي، نو قرض حقيقي وخدای ﷻ ته څو محال دی لاستحالة احتياج الباري ﷻ، نو مضاف محذوف دی يعني يقرضون عباد الله، نو خدای ﷻ له قرضه څخه د

عباد الله تعبير په قرض خپل وکړی لوصول ثوابه منه تعالی کما جاء في الحديث المرفوع عن ابي هريرة ان الله تعالى يقول يوم القيامة يا ابن آدم استطعمتک فلم تطعمني قال يارب کيف اطعمک وانت رب العالمين، قال استطعمک عبدي فلان فلم تطعمه واما علمت انک لو اطعمته لوجدت ذالک عندي ای ثوابه الی اخير الحديث الطويل رواه مسلم.

**درويش وايي**: چې په فضيلت کې د قرض په ډېرو احاديثو صحيحه وو کې راغلي دي عن ابن مسعود عن النبي ﷺ کل قرض صدقة رواه الطبراني، او له ابن مسعود څخه داسې روايت هم راغلی دی ما من مسلم يقرض مسلما قرضا مرة الا کان کصدقته مرتين، رواه ابن ماجه وهکذا الاحاديث الآخر وفي ايراد جميعها اطناب، او يا له قرض څخه وخدای ﷻ ته معنا مجازي مراد ده وهو تقديم عمل صالح يطلب به ثوابه تعالى عليه کمايدل عليه شان نزول البخاري.

وَاللّٰهُ يَقْبِضُ وَيَبْصُۜطُ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۲۴۵﴾

او خدای ﷻ تنګول کوي د رزق او پراخي کوي د رزق يعني لمن يشاء القبض والبسط لانه الخالق والمعطی لمايشاء بيده الملک، او خدای ﷻ ته تاسې راجع کړه کېږي يعني په ورځ د قيامت، فيجازيکم باعمالکم، په حديث متفق عليه کې للبخاري ومسلم د ابو هريرة څخه روايت دی چې عليه السلام وويل ما من يوم يصبح العباد فيه الا ملکان ينزلان من السماء فيقول احدهما اللهم اعط منفقا خلفاً ويقول الآخر الله اعط ممسکاً تلفاً، معنا داسې ورځ نسته چې بندګان وهغې ورځې ته په صبا داخل سي مګر دوې ملکې له اسمانه څخه نازلېږي، او وايي چې خدايه ورکړه ونفقه کونکي ته دا مال په لارو کې د خير عوض، او بله ملکه وايي چې خدايه ورکړه و ممسک ته يعني بخيل ته تلف يعني د مال.

**پوه سه**: چې دا قول د خدای ﷻ ﴿واليه ترجعون﴾ هم وعد دی د منفقينو

سره په ثواب کي او هم وعید دی د بخیلانو سره په عذاب کي.

**فائده:** یو غني او فقیر سړي یوه ورځ بحث سره کاوه د خپل شرافت په باره کي، نو غني ورته وویل چي زموږ د اغنیاؤ درجې پورته دي ولي چي خدای ﷻ زموږ څخه قرض غوښتی دی، او فقیر ورته وویل چي زموږ درجې پورته دي، ولي چي زموږ لپاره خدای ﷻ ستاسي څخه قرض غوښتی دی او قرض خو سړی گاهي له غیر دوست څخه هم غواړي، مگر قرض غوښتل نه کوي څوک مگر د دوست لپاره، وفي المثنوي

| | |
|---|---|
| روی خوبان ز آینه زیبا شود | روی احسان از گدا پیدا شود |
| چون گدا آینه جود ا ست هان | دم بود بر روي آینه زیان |
| پس ازین فرمود حق دروالضحی | بانگ کم زن ای محمدبر گدا |

اشارة الی قوله تعالی واما السائل فلاتنهر

**أَلَمْ تَرَ إِلَى الْمَلَإِ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ مِنْ بَعْدِ مُوسَى إِذْ قَالُوا لِنَبِيٍّ لَهُمُ ابْعَثْ لَنَا مَلِكًا نُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ۖ**

**درویش وايي:** چي چونکه تحقیق د "الم" دمخه په ډکه پیمانه تېر سو نو اوس لفظي ترجمه د آیت داسي ده.

آیا ستا علم نه دی رسېدلی وهغه جماعت ته یعني الی قصة الملاء بحذف المضاف او استفهام انکاري دی نفي د نفي اثبات دی. ای علمت یا محمد ﷺ خبرهم باعلامي ایاک.

**پوه سه:** چي "ملاء" هغه جماعت ته وایي چي د مشورې لپاره سره جمع سي، وانما سموا بهذا الاسم لانهم اشراف یملئون العیون بمهاتبهم. د بني اسرائیل څخه کلمه د "من" لپاره د تبعیض ده او "من بني اسرائیل حال له "ملاء" څخه ای کائنون من بني اسرائیل وروسته تر موسی بحذف المضاف یعني وروسته تر مرگ د موسی ﷺ هغه وخت چي دوئ وویل ونبي ته ددوئ، روح البیان وایي چي دا نبي شموئیل نومېدی وهو الاظهر والاشهر آه. او قتاده ﷺ وایي چي

یوشع بن نون یې نوم و، او سدي رحمه الله وایي چې نوم یې شمعون و، والله اعلم، چې ته مونږ ته ودروه او وټاکه یو بادشاه یعنې مونږ به د هغه سره جمع سو.

**یوه سه:** چې وهب بن منبه او ابن ابي اسحاق او کلبي وایي چې موسی علیه السلام چې وفات سو نو پر ځای یې یوشع بن نون خدای ﷻ نبي کړی، او یوشع چې وفات سو په ځای کې یې کالب مقرر سو، او چې هغه مړ سو په ځای کې یې خرقیل علیه السلام نبي سو، او خرقیل چې رحلت وکړی په بني اسرائیلو کې نوي نوي کارونه خلاف الشریعة د موسی علیه السلام وخلاف التوارة شروع سوه رفته رفته په دوئ کې بت پرستي رواج سوه، نو خدای ﷻ الیاس علیه السلام نبي کړی چې تجدید د تورات او د شریعت د موسی علیه السلام په دوئ کې شروع کړی مقرر کړی او وروسته تر وفات د الیاس علیه السلام خدای ﷻ جای نشین د هغه الیسع وګرځاوه، د هغه تر وفات وروسته نو نا اهله یهودیان سره پاته سوه، او په لویو منهیاتو یې لاسونه پوري کړه، نو خدای ﷻ عذابا لهم پر دوئ قوم د جالوت چې عمالقه ې بلل او پر کناره د دریاب په منځ کې د مصر او فلسطین اوسېدله مسلط کړه او پر دغو یهودیانو باندې غالبه سوه، او تولـه مځکه ددوئ یې ونیوله او اولادونه ددوئ یې سبې کړه او ددوئ د بادشاهانو او اغنیاؤ څلور سوه او څلوېښت نفره د غلامې په توګه بوتله او پر تولو یې جزیه مقرره کړه او تورات شریف یې خندي یو وړي او پر بني اسرائیلو یې ناوړه ناوړه ظلمونه شروع کړه او دوئ په دغه وخت کې کوم نبي نه درلودی چې دوئ رجوع ورته وکړي او پر هغه سره راټول سي، او هغه قوم او سبط د یهودیانو چې په هغه کې به نبي همېشه پیدا کېدی ختم سوی و، مګر یوه ښځه د هغه سبط امیدواره وه یهود ورته خوشحاله وه چې ګوندي دا ښځه زوی راوړي، او هغې ښځې هم زوی راوړی، نو نوم یې اشموئیل یا شموئیل پر کښېښود، نو چې شموئیل د سبق او د تعلیم ودرجې ته ورسېدی نو یې په بیت المقدس کې یوه شیخ او عالم ته وسپاری چې تورات په زده کړي، تاریخ وایي چې څه وخت چې شموئیل بالغ سو او د خپل شیخ استاذ له څنګه سره بیده و، نو جبرائیل علیه السلام په لهجه د شیخ ورناره کړه یا شموئیل،

شموئيل له خوبه داسي وارخطا را وغورځېدى او شيخ ته يې وويل ابتاه دعوتني يعني يا پلاره تا نعره راوکړه، شيخ له ځانه سره فکر وواهه که زه ورته ووايم چې ما نعره نه ده درته کړې شموئيل به نور وارخطا سي او که ورته ووايم چې هو ما نعره درته وکړه نو خو درواغ به سي، نو لا يا نعم يې نه ورته وويل دا قدر يې ورته وويل يا بني ارجع فنم زويه ورسه بيده سه، دويم وار چې شموئيل بيده سو بيا په لهجه د شيخ رږغ پر وسو يا شموئيل دی بيا وار خطا راوېښ سو او شيخ ته يې وويل ياابتاه تا نعره راوکړه شيخ لا يا نعم نه ورته ويل بلکه دا يې ورته وويل چې ته بيده سه که دريمه نعره درباندي وسوه ماته رږغ مه کوه، دريم وار چې شموئيل بيده سو، نو جبرائيل ځان ورښکاره کړی چې ولاړ سه قوم ته فبلغهم رسالة ربک فان ربک جعلک نبيا، نو ده چې يهودو ته تبليغ شروع کړی هغو يې تکذيب وکړی او دا يې ورته وويل ان کنت نبيا فابعث لنا ملکا الآية.

**درويش وايي:** چې په دې شان نزول کي چې ما دغه لفظ استعمال کړی چې شموئيل بالغ سو ددې دا مراد نه دی چې په اول کي د بلوغ شموئيل نبي سو، بلکه مراد دادی چې شموئيل وروسته تر بلوغ نبي سو ولو بعد عدة سنين فالله اعلم بسن نبوة شموئيل.

**پوه سه:** چې په يهودو کي د هغې زمانې دا رواج و چې نبي به يې له يوه سبط څخه و او بادشاه به يې له بل سبط څخه و، نو بادشاه به سياسي او جنګي چاري پر مخ بېولې لکن د نبي په مشوره او نبي به ديني او شرعي کارونه پر مخ بيول، نو له دې سببه يهوديانو وشموئيل ته وويل انت کنت نبيا فابعث لنا الآية، نو شموئيل ودوی ته داسي وويل کما حکی الله تعالی:

**قَالَ هَلْ عَسَيْتُمْ إِن كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ أَلَّا تُقَاتِلُوا ۖ**

شموئيل وويل آيا ښايي تاسي ته که پر تاسي جنګ يعني له کفارو سره فرض سي، نو بيا به تاسي جنګ نه کوئ

**پوه سه:** چې مقصود په دې استفهام کې اقرار اخستل وه له یهودیانو څخه د جنګ اذا فرض علیکم او دوئ به وجنګ ته اماده کول عند فریضة القتال.

قَالُوا وَمَا لَنَا أَلَّا نُقَاتِلَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَقَدْ أُخْرِجْنَا مِن دِيَارِنَا وَأَبْنَائِنَا ۖ فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ تَوَلَّوْا إِلَّا قَلِيلًا مِّنْهُمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالظَّالِمِينَ ﴿٢٤٦﴾

دوئ ورته وویل چې څه سبب او غرض دی چې موږ به جنګ نه کوو په لاره کې د خدای ﷻ.

**پوه سه:** چې کلمه د "ما" استفهامي ده او استفهام انکاري دی "ولنا" یې خبر دی، او حال دادی چې موږ ایستل سوي یو له خپلو وطنو څخه او شړل سوي یو له خپلو زامنو څخه.

**پوه سه:** چې له زامنو څخه مراد هغه زامن د بادشاهانو ددوئ دي چې عمالقه وو په غلامۍ، خندي بېولي وه کمامر في شان نزوله عنقریب، نو حاصل د جواب ددوئ دادی چې مانع د جهاد في سبیل الله خو نسته بلکه موجب د قتال موجود دی ایجاباً قویاً وهو اخراجنا آه، خدای ﷻ وایي چې څه وخت چې فرض کړه سو یعني له جانبه څخه د خدای ﷻ پردوئ په سوال د نبي شموئیل او په درلو د بادشاه لکه دوئ چې یې غوښتنه کوله کما سیئاتي بیانه ان شاء الله، نو دوئ شا وګرځوله وجنګ ته او اعراض یې وکړی له جنګه څخه مګر نه لږ کسانو ددوئ، او هغه قلیل کسان هغه وه چې د طالوت سره تر واله تېر سوه چې درې سوه دیارلس (۳۱۳) کسان وه په عدد د اهل بدر، او خدای ﷻ خبر دی په ظالمانو سره.

**پوه سه:** چې والله اعلم آه وعید دی دوئ لره پر ترک د جهاد او پر مخالفت د قول او د فعل ددوئ له قوله څخه ددوئ کمامر آنفاً.

**فائده:** دا اعراض د یهودیانو له قتال څخه هلته منځ ته راغلی چې دوی د جالوت ډېر قوت او ډېر فوجونه ولیدل کما سیئاتي في القرآن الکریم.

**درویش وایي:** چې چونکه یهودیان له خپل نبي شموئیل څخه مطالبه وکړې وه چې دی دي موږ ته ملک وټاکي چې موږ د هغې تر قومنده لاندي د عمالقه وو سره جنګ وکړو، نو شموئیل ﷺ خدای ﷻ ته خواست وکړی چې ته دوی ته یو بادشاه وټاکه او د ملکي په واسطه یوه لکړه او یو قرن چې په هغه دهن القدس وه راوړه سوه او ورته وویل سوه چې د هر سړي طول چې د لکړي سره برابر و او دغه سړی چې تاته راتلی دغه روغن پخپله وه ایشېدل، نو سر یې په هغو غوړو ورغوړ کړه او هغه سړی د بني اسرائیلو باچا ودوی ته معرفي کړه، نو طالوت نامی چې خر یې ورک و او په طلب کي د خره د دعاګوي لپاره د شموئیل دربار ته ورغلی، نو هغه روغن پخپل وه ایشېدل شموئیل ورولاړ سو په لکړه یې دی ګچه کړی دی د لکړي سره برابر و، او بعض وایي چې طالوت سقاو و، او بعض وایي رنګ رېز و، او پخونکی د پوستکو و، نو شموئیل دده سره ورغوړ کړی او بني اسرائیلو یې اعلان د بادشاهي وکړی ددې آیت په مضمون سره.

وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ إِنَّ اللَّهَ قَدْ بَعَثَ لَكُمْ طَالُوتَ مَلِكًا

خدای ﷻ وتاسي ته مقرر کړی طالوت په سلطنت سره.

**پوه سه:** چې چونکه سبط د نبوت په بني اسرائیلو کي قوم د لاوي بن یعقوب ﷺ و او سبط د سلطنت قوم د یهود ابن یعقوب و. او طالوت د سبط څخه د بن یامین و او په عین حال کي فقیر او مسکین سړی و.

**فائده:** طالوت لفظ عجمي دی او غیر منصرف دی په سبب د تعریف او عجمة، نو قوم د بني اسرائیلو دده یعني طالوت د سلطنت څخه یې انکار وکړی.

**فائده:** بعض علماء وایي چې دغه بني اسرائیل چونکه انکار یې وکړی د حکم د نبي نو کافران سوه، والصحیح انهم لم ینکروا حکم النبي بل تعجبوا من ذالک وطلبوا کشف الحکمة الالهیة في ذالک.

## قَالُوْٓا اَنّٰى يَكُوْنُ لَهُ الْمُلْكُ عَلَيْنَا

يهوديانو ورته وويل چي له كومه ځايه طالوت د سلطنت حق لري پر موږ باندې.

## وَنَحْنُ اَحَقُّ بِالْمُلْكِ مِنْهُ

او حال دادی چي موږ چي موږ حق داره يو د مملکت تر ده ولي چي موږ له سبط څخه د سلطنت يو.

## وَلَمْ يُؤْتَ سَعَةً مِّنَ الْمَالِ ؕ

او ده ته نه ده ورکړه سوې فراخي د مال، او سلطان بايد مالداره سړی وي چي د کونډيانو او يتيمانو او فقيرانو سره مرسته کولای سي او موږ تر ده اغنياء يو.

## قَالَ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰىهُ عَلَيْكُمْ وَزَادَهٗ بَسْطَةً فِي الْعِلْمِ وَالْجِسْمِ ؕ

نبي شموئيل ورته وويل چي خدای ﷻ دی خوښ کړی دی د سلطنت لپاره پر تاسي، يعني بايد تاسي د خدای ﷻ اصطفاء ته غاړه کښېږدئ او سبب د اصطفاء داهم دی چي دته خدای ﷻ فراخي ورکړې ده په علم کي يعني په علم کي د حرب، کلبي ﷺ وايي چي طالوت اعظم اليهود في عصره بامور الحرب، يعني تاسي خو بادشاه لپاره د جنگ د عمالقه غوښتی او په حربي امورو کي طالوت تر تاسي ټولو بالا دی، نو دی احق په مملکت سره دی تر تاسي، او خدای ﷻ وده ته فراخي د جسم او قد ورکړې ده، تاريخ وايي چي د طالوت ډېر ښه رنگ و او دونده جگ قده انسان و چي نورو خلگو به لاسونه تر سرونو پورته کړه نو به د طالوت سر ته رسېدله. والغرض منه ان السلطان ينبغي انيكون اهيب في قلوب الناس والهيبة منوط بطول القامة وهو موجود ي طالوت.

## وَاللّٰهُ يُؤْتِيْ مُلْكَهٗ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴿٢٤٧﴾

او خدای ﷻ ورکوي خپل سلطنت وهغه چاته چي دده خوښه وي او اراده يې وي، او خدای ﷻ فراخه دی فضل يې په فقراء او اغنياء وو پوري اړه نه

لري، او ښه خبر دی په حال د خپلو عبادو يعني چي په چا کي اهليت د سلطنت سته او په چا کي نسته، نو بايد بندگان د خدای ﷻ و اصطفاء ته سر کښته کړي او چون وچرا ونه وايي کريمه لايسئل عما يفعل وهم يسئلون.

**درويش وايي:** چي خدای ﷻ ويهودو ته په سبب ظاهري د سلطنت د طالوت جواب ورکړی وهو قوله تعالی "وزاده بسطة آه وروسته يې سبب حقيقي د سلطنت د طالوت بيان کړی بقوله تعالی والله يوتي آه يعني په سلطنت کي د طالوت مشيت الهي او فضل الهي او علم الهي په احوالو د عبادو کاريگر دی وبس، شيخ سعدي قدس سره وايي

يکی قطره باران ز ابری چکيد — خجل شد چوپهنائي دريابديد
که جای که درياست من کيستم — گراوهست حقا که من نيستم
چو خود را به چشم حقارت بديد — صدف در کنارش بجان پرورید
سپهرش بجايي رسانيد کار — که شد نامور لولوی شاهوار
بلندی ازان يافت کوپست شد — درنيستي کوفت تا هست شد

وفي الحديث من تواضع لله رفعه الله تعالى فعل للعاقل التسليم لامر الله وترک البحث.

## وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ إِنَّ آيَةَ مُلْكِهِ أَنْ يَأْتِيَكُمُ التَّابُوتُ

ورته وويل نبي ددوئ يعني چي دوئ طلب د دليل وکړی پر سلطنت د طالوت چي په تحقيق سره دليل د سلطنت د طالوت ډادی چي تاسي ته به راسي تابوت.

**پوه سه:** چي تابوت صندوق ته وايي وزن يې فعلوت دی مشتق دی له توب څخه چي معنا يې رجوع ده چي د صندوق بعض شيان چي څوک راوکاږي بيرته يې صندوق ته راجع کوي، بعض مفسرين رح وايي چي دا صندوق له لرگي څخه د شمشاد جوړ سوی و، په سرو زرو ښائسته سوی و چي طول يې درې گزه او عرض يې دوه گزه و. محدثين وايي چي دا تابوت آدم عليه السلام له جنت څخه راوړی و او په تابوت کي عکسونه د ټولو انبياو علهيم

السلام موجود وه من لدن آدم الی محمد مصطفی نو دا تابوت له آدم سره و او وروسته تر آدم له شیث سره و ثم وثم څو موسی ته راورسېدی او موسی په هغه تابوت کي تورات هم ایښوول او بعض نور متاع دده، بیا چي موسی وفات سو دا تابوت په لاسو د انبیاؤ د بني اسرائیلو کي و، او بیا عمالقه چي بني اسرائیلو ته یې شکست ورکړی دا تابوت یې هم ورسره یو وړی، او د بني اسرائیلو به عادت دا و چي په وخت کي د جنګ د کافرانو به یې دا تابوت د مخه د خلګو پر اوږو ورکړی او هغه به یې د مخه روان کړه چي په برکت ددې تابوت به دوئ ته فتح پر دښمن پیدا کوله ، نو تابوت چي به روان و دوئ به هم پسي روان و او چي تابوت به ودرېدی دوئ به هم ودرېدل، وقیل کان صندوقا للتوارت فقط.

فِيهِ سَكِينَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ

یعني چي په راتلو کي د تابوت به ستاسي د زړونو اطمنان وسي پر سلطنت د طالوت، او یا معنا داده چي په تابوت کي هغه شی پروت دی چي ستاسي به سکون د خاطر په کېدی یعني تورات.

**بوه سه:** چي ابن عباس وایي چي دا تابوت د تورات و عند موسی ومن بعده من انبیاء بني اسرائیل الی ان فعل بنو اسرائیل المنکرات فرفعه الله الی السماء فلما طلب من النبي اشموئیل آیة علی سلطنت طالوت قال ان آیة ملکه الآیة فاني الملائکة بالتابوت من السماء وهم ینظرون الیه حتی وضعه عند طالوت.

**درویش وایي:** چي په دې قول کي د ابن عباس نسبت د ایتان و تابوت ته حقیقت نه دی ولي څو ملکو راوړی، او هغه بعض مفسرین وایي چي دا تابوت د شمشاد و کمامر آنفا دوئ وایي چي دا تابوت د خدای د قدرت یوه علامه وه ولي چي دا تابوت چي په لاس کي د بني اسرائیلو وو ددوئ چي به په یو شي کي اختلاف سو نو به دې تابوت ته ورغله تابوت به خبري

كولي او ددوئ تر منځ به يې فيصله كوله، او چي وخت به د جنګ لـه كافرانو سره راغلي دا تابوت به ملكو فوق العسكر ګرځاوه، څه وخت چي په تابوت كي يو آواز دوئ واوريدى نو ددوئ به يقين سو پر نصرت الهي، او بيا څه وخت چي عمالقه وو پر بني اسرائيلو غلبه وكړه هم دغه تابوت يې ځندي يو وړى او د غولو او بولو په ځاى كي يې كښېښوى او بولي به يې پر كولې څه وخت چي خداى ﷻ ملك وطالوت ته وسپارى نو پر عمالقه وو يې دا بلاً مسلطه كړه چي چاچي به پر تابوت بولي وكړې د بواسيرو په مرض به خداى ﷻ مبتلاء كړى چي ګڼ شمېر عمالقه په دې آفت كي مړه سوه، نو عمالقه ته دا يقين سو چي دا مرض چي پر موږ مسلط سو په سبب د اهانت او سپكاوي زموږ د تابوت دى، نو عمالقه تابوت پر خره باندي وتاړه او خر يې په دوو غويو پسي روان كړى، او خداى ﷻ څلور ملكي ورسره كړې چي غوايي يې راشړل څو چي يې د طالوت كور ته وروستل، نو يې په دې صورت د بني اسرائيلو پر سلطنت د طالوت يقين سو چي من عند الله دى زموږ سلطان مقرر سوى دى، لكن پر آخيري تقدير نسبت د اتيان وتابوت ته هم مجاز دى لانه لم يات هو بنفسه بل آتي په الملائكة بل الثورين فيكون هذه النسبة من قبيل قولهم ربحت تجارة فلان.

**فائده**: د تابوت په باره كي داسي ضعيفه اقوال مروي دي چي هيڅ د منولو وړ نه دي خصوصا ما رواه الكلبي وما ذكرنا هو اشهر الاقوال واقواها في باب التابوت والعلم عندالله علام الغيوب.

## وَبَقِيَّةٌ مِّمَّا تَرَكَ اٰلُ مُوْسٰى وَاٰلُ هٰرُوْنَ

**پوه سه**: چي بعض مفسرين رح وايي چي "آل" زائد دى لپاره د تعظيم د موسى او هارون ع م، او بعض مفسرين وايي چي مراد لـه آل موسى او آل هارون نور انبياء د بني اسرائيلو دي، علماء وايي چي په دې تابوت كي يوه پيمانه د من وه چي پر بني اسرائيلو په بيابان كي د تيه پر دوئ نازليده، او عصا د موسى عليه السلام او

چوتي دده، او لنگوټه د هارونؑ او څه ماتې تختې د تورات وې.

## تَحْمِلُهُ الْمَلٰٓئِكَةُ ۚ إِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لَّكُمْ إِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۲۴۸﴾

او دا تابوت به را اخستی وي ملکو په تحقیق سره په دغه تابوت یعني په راوړو کې د تابوت دلیل دی حقیقت د سلطنت د طالوت دی پر تاسي که تاسي مؤمنان یاست خو دا دلیل او علامه د قدرت ومنئ او د طالوت تر قومنده لاندې د عمالقه و سره جنګ شروع کړئ.

## فَلَمَّا فَصَلَ طَالُوْتُ بِالْجُنُوْدِ ۙ

نو هغه و چې ووتی طالوت له خپله ښاره څخه.

**پوه سه:** چې لفظ د "بالجنود" حال دی له طالوت څخه ای مختلطا بالجنود، ولې چې یهودیانو چې تابوت ولیدی نو یې یقین سو چې موږ ته به خدای ﷻ فتح پر دښمن راکوي، نو طالوت اعلان وکړی چې زما سره دې جنګ ته نه وزي مګر ځوانه طبقه چې هغه هیڅ عذر نه لري، نو بعض راویان وايي چې اویا زره نفر ځوانان وه، او بعض راویان وايي چې اتیا زره کسان وه لکن چونکه ډېر د ګرمۍ موسم و او دوئ تږي سوه، نو دوئ نبي شموئیلؑ او حکمران طالوت ته وویل چې خدای ﷻ ته دوئ خواست وکړي چې موږ ته جاري واله راپیدا کړي.

## قَالَ إِنَّ اللّٰهَ مُبْتَلِيْكُمْ بِنَهَرٍ ۚ

قال: یعني طالوت یعني بارشاد النبي اشموئیلؑ، وما قال المظهري اما بوحي ان کان نبیا، یعني یا طالوت دا خبره په وکړه که طالوت نبي وي فهو لیس بشیئ لانه لم یقل احد بنبوته وقد مر التفصیل في ذالک، چې په تحقیق خدای ﷻ امتحان کوي ستاسي په یوه واله سره.

**یوه سه:** چي حقیقت امتحان پر خدای ﷻ محال دی لانه یقتضی الجهل بحال العباد ولهذا فسر الابتلاء المفسرون بقولهم ای یعا ملکم معاملة المنتجز په یوه واله سره. ابن عباس ﷺ وایي چي دا واله په فلسطین کي ده. او قتاده وایي چي دا واله په منځ کي د اردن او فلسطین ده.

## فَمَنْ شَرِبَ مِنْهُ فَلَيْسَ مِنِّيْ

نو که چا اوبه وڅښلې له ولې څخه زما له ډلې او اتباعو څخه نه دی

## وَمَنْ لَّمْ يَطْعَمْهُ فَاِنَّهٗ مِنِّيْٓ

او که چا یې خوند ونه کتی یعني وه یې نه څښلې، نو هغه زما له ډلي او اتباعو څخه دی.

## اِلَّا مَنِ اغْتَرَفَ غُرْفَةً بِيَدِهٖ

مګر هغه څوک چي یوه لپه یعني په یوه لاس وڅښي یعني زما له ډلي څخه خارج نه دی.

**درویش وایي:** چي بعض مفسرین ددې حکمت یعني یوه غرفه به څښي او ډیري به نه څښي دادی چي ډیري اوبه په سخته ګرمي کي انسان ته تاوان رسوي او له جنګه یې ضعیفه کوي.

**درویش وایي:** چي هذا لیس بشيئ لان الغرفة الواحدة لاتکفی للعطشان في الحر الشدید فما معنی اشتراط الغرفة الواحدة مع ان الغرفتین بل الغرفات الثلثة او الاربعة لا یفضی الی الضعف عن القتال بالمرة کمالایخفی، ثم قال ذالک المفسر چي احتمال لري چي دا تحریم یعني تر یوې غرفې بالا څښل له ددوئ جریان د نهر له طالوت څخه وغوښتی وهذا ایضا لیس بشیئ لان طلب الماء عند العطش والحر عن النبي ونائبه وهو طالوت لس بامر مستنکر حتی یستحق الطالب العذاب وقد جاء في الآحادیث ان الصحابة الکرام ﷺ طلبوا الماء من النبي ﷺ کرات ومرات فلم

یستوجبوا بذالک للعقاب فتامل، بل الحق ماقاله صاحب روح البیان حیث قال وذالک الاختبار لیظهر الله تعالی عند طالوت من کان مخلصا في نیة الجهاد من غیره لیمیز هم من العسکر لان من لایرید الجهاد من قلبه واخلاصه اذا خالط عسکرا مخلصین في النیة والقصد فینهزمون بشوم نیته، کما قال السعدي الشیرازي رحمه الله

آنکه جنگ آردبخون خویش بازی میکند روز میدان آنکه بگریزد بخون لشکری

وهذا مثل الذهب والفضة یمیز الخبث فیهما من الصافي بالنار.

**فَشَرِبُوا مِنْهُ إِلَّا قَلِيلًا مِّنْهُمْ ۚ فَلَمَّا جَاوَزَهُ هُوَ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ**

نو ولې ته چې ورسېده نو ډېر خلگ ورته پرېوته او خولې یې پر اوبو کښېښوولې او اوبه یې څښلې چې وداسې څښلو ته په عربي کې کرع وایي لکه حیوانات چې ددغه ډول څښلو عادت لري.

**پوه سه**: چې اهل لغت وایي چې د شربت من النهر معنی هم دغه کرعه ده ولې چې کلمه د "من" ابتدائیه ده یعني ابتداء د څښلو له ولې څخه ده هغه په دغه کرعه کې راځي، او که سړی په واسطه د لوښي او یا د لاسونو اوبه له ولې وڅښي عربي لفظ د هغه دادی شربت من ماء النهر، او د من النهر استعمال پر دې تقدیر نه دی روا.

**پوښتنه**: په آیت سابقه کې خدای ﷻ فمن شرب منه وواېه نو چې د من شرب منه معنی کرعه ده په لغت کې، نو استثناء الا قلیلا منهم څرنگه ښندې روا ده، ولې چې قلیل څښل خو په کرعه نه و بلکه په لپه سره و؟

**ځواب**: په "فمن شرب منه" کې عموم مجاز دی یعني مطلق څښل مراد دي که په کرعه وي او که په لپه وي فصح الاستثناء لدخول المستثنی في المستثنی منه بالیقین.

**پوه سه**: چې سدي رحمه الله وایي چې دا قلیل څلور زره کسه وه لکنه لیس بصحیح لما روی البخاري عن البراء بن العاذب رضي الله عنه قال کنا نتحدث اصحاب

محمد ﷺ ان عدة اصحاب بدر علی عدة اصحاب طالوت الذین جاوزوا معه النهر ولم یجاوزوا معه الا مؤمن وکانوا بضعة عشر وثلث مائة وروي الا ثلثمائة وثلثة عشر، په حدیث مبارک کي راغلي دي چي هغه کسان چي اکتفاء یې پر یوه غرفه وکړه تنده یې ماته سوه او زړونه یې قوي سوه، او هغه کسان چي مخالفت د امر الهي یې وکړی یعني چي په کرغه یې اوبه څښل شروع کړه تنده یې هیڅ نه ماتېدل، او له ډېرو اوبو څښلو څخه یې نسونه یو بام ودرېدل او شونډان یې تور سوله او په زړو کي یې خدای ﷻ جبن او بزدلي ورپیدا کړه له جنګه څخه، نو هغه پر هم هغه غاړه د ولې پاته سوه او طالوت سره د درې سوه او دیارلس کسانو تر وانه پوري وتله.

## قَالُوا لَا طَاقَةَ لَنَا الْيَوْمَ بِجَالُوتَ وَجُنُودِهِ ۚ

هغه وخت چي تېر سو طالوت تر ولې او هغه کسان چي دده سره یې ایمان راوړی وو یعني متابعت دده یې کړی په شرب کي د یوې غرفې. او داسي ترجمه یې غلطه ده ایمان یې راوړی پر طالوت ولي چي طالوت خو نبي نه و، نو وویل هغه کسانو چي د ولې پر هغه بله غاړه پاته وه چي طاقت نسته موږ لره نن ورځ په جنګ کي د جالوت او د لښکر دده غرض ددوی په دې قول کي معذرت دوئ خپل وایه او د طالوت د مګرو په زړو کي یې بزدلي ور اچول وه.

**درویش وایي:** چي دا توجیه اظهره ده او هغه توجیه چي روح البیان والا کړې ده چي هغه کسان چي د طالوت سره د ولې بلې غاړې ته پرېوتلي وه هغه دوې ډلي سوه چي چي یوې ډلي دا ویله لاطاقة آه، او هغه بلې ډلي ویل کم من فئة قلیلة هغه توجیه صحیح نه ده، ولي چي د طالوت کوم کسان تر واله پرېوتلي وه هغه ټوله کامل الایمان خلګ وه چي پر نصرت د خدای ﷻ یې مع قلة العدد ایمان و.

قَالَ الَّذِيْنَ يَظُنُّوْنَ اَنَّهُمْ مُّلٰقُوا اللّٰهِ ۙ كَمْ مِّنْ فِئَةٍ قَلِيْلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيْرَةً ۢ بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ ﴿۲۴۹﴾

وويل هغه کسانو چي ظن يې درلودی يعني يقين يې درلودی چي موږ ملاقي کېږو له خدای ﷻ سره او اميد د ثواب يې درلودی او هغه دغه درې سوه ديارلس کسه وه چي د طالوت سره يې اکتفاء بشرب الغرفة را پوري وته چي ډېر خلي يو جماعت قليله غالب گرځي پر لوی ډلي په اراده د خدای ﷻ، او خدای ﷻ ملگری دی د هغه کسانو چي صبر کونکي وي پر قتال مع قلة العدد.

**پوه سه**: چي د ملگری، څخه د خدای ﷻ مراد فتح او ثواب دی.

**فائده**: لفظ د کم خبري دی په معنا د اخبار د مطلق کثرت دی فتامل فيه.

وَلَمَّا بَرَزُوْا لِجَالُوْتَ وَجُنُوْدِهٖ قَالُوْا رَبَّنَآ اَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَّثَبِّتْ اَقْدَامَنَا وَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۲۵۰﴾

او هر وخت چي ښکاره سوله يعني طالوت وجنوده او جالوت او دده لښکر يعني دوئ وخپل قلة العدد ته وکتل او د دښمن وقوت او کثرت ته يې وکتل نو داسي خواست يې خدای ﷻ ته وکړی، اې زموږ ربه توی کړې يعني راکړې موږ ته صبراً (تنوين لپاره د تعظيم دی ای صبرا عظيما) او ټينگې کړې پښې زموږ يعني په ميدان کي د جنگ چي فرار ونه کړو او مرسته راسره وکړې پر کفارو يعنون جالوت وجنوده.

**درويش وايي**: چي راغب اصفهاني رحمه الله وايي چي په دې قصه کي اشاره د وحال ته د دنيا او او د طالبانو د دنيا په دې معنا په مثال د ولې د طالوت دده او دنياوال لکه لښکر د طالوت دي. نو که چا طلب د دنيا کاوه له حلال او حرام څخه او په حرص د دنيا کي غرق وچي نه يې د ناصح خبره منله او د دنيا په طلب کي يې له منهياتو څخه ډډه نه کوله نو ددغو دنياوالو مثال د هغو

عسکرو د طالوت په شان دی د اولی الامر طالوت او د نبي شموئيل په خوله يې ونه کړه او اوبه د ولې يې په کرغه سره وڅښلې هغه و شر الدنيا والآخرة وګرځېدل. او دغه دنياوال طالبان او حريصان د دنيا من الحلال والحرام هم دغسې په خسران کې د دنيا او آخرت واقع سي. او هغه طالبان د دنيا چي لږ دنيا حلاله خپل قوت کوي او نه په طلب کې د دنيا محرمات شرعيه کوي او نه په طلب کې د دنيا و اوامرو شرعيه وو ته تغير ورکوي. او امر او نهي ته د خدای ﷻ او د رسول ﷺ يې صبر کړی وي په مثال د هغو درې سوه ديارلس کسانو دي چي يوه غرفه اوبه يې وڅښلې او د طالوت سره تر واله پورې وته.

**درويش وايي**: چي پوهان د دين وايي چي د دنيا مثال د مالګي دی. مالګه که سرې وښوروا وغيره ته لږ په اندازه د ښوروا ورواچوي. نو ښوروا به يې مزه داره وي او د بدن به ښه غذاء وي. او که تر قدر لازم مالګه وګتهو وغيره ته ورواچوي طعام به يې بد مزه وي. او که يې وه هم خوري سبب د تاجوړی د فشار مثلاً به وګرځي چي علاج بې بيا په دواء او پرهيز سره کېږي. وفي الحدث الصحيح النبوي ﷺ «لو ان لابن آدم واديين من ذهب لابتغي اليهما ثالثا فلا يملاء جوف ابن آدم الا التراب ای تراب القبر ويتوب الله على من تاب» ای چي توبه وکاږي له خپل حرص مذموم څخه په طلب کې د دنيا وغيره من الافعال المذمومة.

**درويش وايي**: چي محمل ددې حديث طبع انساني د بني آدم ده يعني بني آدم چي پر خپل طبعيت پاته وي او په امور شرعيه وو سره پاک سوی نه وي، خو نس يې بيله د خوارو د قبر نه ډکېږي، او جوف د دغسي بن آدم همېشه لکه دوږخ د هل من يزيد نعرې وهي، نو انبياء عليهم السلام او اولياء الله الکرام له دغه څخه مستثنی دي، في المثنوي

بر فلک برتر بود اسرار او　　　شيئاً لله شيئاً لله کار او

جامي رحمه الله د خپل مرشد خواجه عبيدالله احرار رحمه الله چي ډېر متمول سړی و داسې وايي

چوفقر اندرقبائی شاهی آمد　　　بتدبير عبيد الله آمد

مثنوي

گفته او گفته الله بود گرچه از حلقوم عبدالله بود

وفي الحديث النبويﷺ رب اشعث اغبر مدفوع عن الابواب لو اقسم على الله لابره او كماقالﷺ، او يا دا حديث مبارک قضيه مهمله په قوت کي د جزيې ده خو بيا هم انبياء عليهم السلام او صلحاء د امت مرحومه پکښي داخل نه دي، روى انه عليه الصلوة والسلام قال في وصية لابي هريرةﷺ عليک يا ابا هريرة (پر تا لازمه ده) بطريق اقوام (لار د هغو اقوامو) اذا فزع الناس لم يفزعوا (چي خلگ بېرېږي دوئ نه بېرېږي) واذا طلب الناس الامان من النار لم يخافوا (او چي خلگ امان له اوره غواړي دوئ نه بېرېږي) قال ابو هيرةﷺ من هم يا رسول اللهﷺ (ابو هريره وويل چي څوک دي دغه کسان اې رسوله د خدایﷺ) قال قوم من امتي في آخير الزمان (يو قوم دی زما له امت څخه په اخيره زمانه کي) يحشرون يوم القيامة محشر الانبياء (حشر کړه کېږي لکه حشر د انبياؤ) اذا نظر اليهم الناس ظنوهم انبياء (چي خلگ ودوئ ته وگوري د انبياؤ گمان يې پر کېږي) ممايرون حالهم (له دې سببه چي د دوئ حال او رفعت شان ته وگوري) حتى اعرفهم فاقول امتي امتي (حتى چي زه پېژنم نو زه ووايم دا زما د امت خلگ دي دا زما امتيان دي) فيعرف الخلائق انهم ليسوا بانبياء (نو اهل محشر ويوهېږي چي دا خو انبياء نه دي) فيمرون مثل البرق او الريح تغشي ابصار اهل الجمع من انوارهم (دوئ به تېرېږي لکه برق او يا باد چي پټي به سي سترگي د جماعت حاضره له انوارو څخه د دوئ) فقلت مرني بمثل عملهم لعلي الحق بهم (ماورته وويل يا رسول الله ما امر کړه په مثل د عملو د دوئ شايد زه به هم ملحق سم په دوئ سره) فقال يا ابا هريره ركب القوم طريقا صبا (عليه السلام وويل چي دا قوم روان پر يوه سخته لار وو) اثروا لجوع بعد ما اشبعهم الله والعرى بعد ماكساهم الله، والعطش بعد ما ارواهم الله (دې خلگو مختاره کړې وه لوږه وروسته تر دې چي خدایﷻ دوئ ماړه کړي وه او دوئ مختاره کړې و لڅ والی د ابدانو پس له دې خدایﷻ

ودوئ ته کالي ورکړي وه او دې خلګو خوښه کړې وه تنده پس له دې چې خدای ﷻ دوئ ته اوبه ورکړي وې. والغرض چې دغه قوم ته خدای ﷻ مالونه او مطعومات ورکړي وه لکن دوئ لوږه په سبب د روژو مثلا مختاره کړې وه. او دوئ ته خدای ﷻ فاخره جامې ورکړي وې او دوئ پخپل اختیار د فقراء جامې اغوستې. او دوئ ته خدای ﷻ ډېري ښې لذيذې اوبه ورکړي وې لکن دوئ تنده مختاره کړه لکه د دوبي په نفلي روژو سره مثلا) ترکوا ذالک رجاء ما عندالله (دوئ پرې اېښې وه ټوله دغه شیان په امید د ما عند الله من نعیم الجنان من المطعومات فیها والملبوسات فیها والمشروبات منها، ترک الحلال مخافة حسابه (دوئ حلال شیان پرې ایښي وه له بېرې د حسابه په قیامت) صحبو الدنیا بابدانهم ولم یشتغلوا بشئ منها (د دنیا سره ملګري وه په بدونو سره یعني په ظاهره سره او مشغوله نه وه په هیڅ شي د دنیا یعني په زړو سره) عجبت الملائکة والانبیاء بطاعتهم لربهم طوبی لهم (او تعجب کوي ملکي او انبیاء په طاعت سره ددوئ لپاره د رب ددوئ خوشحالي ده دوئ لره) ولوددت ان الله جمع بیني وبینهم (او زما خوښ او محبت مې دی ددې چې ما اودوئ خدای ﷻ سره جمع کړی) ثم بکی رسول الله ﷺ شوقا الیهم (بیا علیه السلام وژړل له جهته د شوق ودوئ ته) قال علیه الصلوة والسلام اذا اراد الله باهل الارض عذابا فنظر الیهم صرف العذاب عنهم فعلیک یا ابا هریرة بطریقهم (او علیه السلام وویل چې څه وخت چې خدای ﷻ اراده وکړي د عذاب مخکې والا وو ته او دې خلګو ته وګوري د اهل الارض عذاب پورته کړي؛ نو ته پر ځان لازمه وګرځوه ای ابو هریره طریقه ددوئ) هذا ماروا٥ صاحب روح البیان في تفسیره او درویش ي ترجمه وکړه په پښتو ووطنوالو نرو او ښځو ته. شیخ عطار رحمه الله درحال اینفریق چنین میګوید.

در راه تو مراد اند از خویش نهان مانده — بي جسم وجهت کشته بي نام ونشان مانده
تن شان بشریعت هم ودل شان بحقیقت هم — هم دل شده وهم جان نه این ونه آن مانده

**درويش ميگويد** كه شيخ بزرگوار خواجه عبدالله انصاري هروي كمك اشاره نموده ودر صد احوال اينفريق را چنان نمودار ساخته اند

حبذا قومی که داد بنده گی را داده اند
ترک دنیا گفته اند واز همه ازاده اند

روزها باروزها در گوشها بنشسته اند
با زشبها د رقیام بنده گی استاده اند

نفس خودراقهر کرده روح خودرابرفتوح
زادتقوی برگرفته بهر مرگ اماده اند

طرفة العینی نبوده از حضرت ولی
سیلها بااین همه از دیدها بکشاده اند

یکزمان از نوحه همچون نوح فارغ نیستند
همچو یحی گویا از بهرزاری زاده اند

زآب تاب تب الی الله غسل کرده آن کسان
روی خود برخاکپای اسجدوا نهاده اند

ربنا گویند از ان لبیک عبدی بشنوند
جمله سرمست الست از جرعه آن باده اند

راحتی دیدند وزوقی یافتند از انس وجان
روزوشب درکنج خلوت برسر سجاده اند

تابد نیا آمدند از کلبه کتم عدم
سوی حضرت جزنیازوناله نفرستاده اند

پیر انصاری تو میدانی که ایشان کیستند
فرقه بی کرر فروز مره دلی ساده اند

## فَهَزَمُوْهُمْ بِاِذْنِ اللّٰهِ

نو شكست وكړې بني اسرائيلو وجالوت او قوم دده عمالقه وو ته په اجازه د خداى ﷻ او نصرت د خداى ﷻ كمانصرالله محمدا ﷺ واصحابه ؓ وهم ۳۱۳ ببدر الفا من المشركين من اهل مكة وقتل منهم سبعون واسر سبعون.

## وَقَتَلَ دَاوٗدُ جَالُوْتَ

او مړ كړې داؤد جالوت راس العمالقه.

**پوه سه:** چي جالوت يو ډېر غټ ظالم له اولاده ښځه د عمليق بن عاد و، او په جنگ كي داسي غښتلى و چي په يوازي سر يې د دښمن ولښكر ته شكست وركاوه او كوم جنگي خول چي به ده پر سر اېښووی په جنگو كي درې سوه رطله وسپنه وه، او دده سايه به يو ميل پر مخكه وه لطول قامته، تاريخ وايي چي ايشا نامى چي د داؤد پلار و له هغه ډلي ښځه و چي سره د

اوو زامنو د طالوت سره تر ولېږ تېر سو، او داوډ دده کشري زوی و چي د پسو د پولو لپاره پلار پر کور پرې ایښی و، نو نبي ته یعني شموئیل ته خدای ﷻ وحي وکړې چي داوډ بن ایشا به جالوت ووژني فطلبه من ابیه فجاء به، فقال النبي اشمونیل ﷺ لداوډ قد جعل الله قتل جالوت علی یدک فاخرج معنا. نو داوډ هم ورسره رهي سو، نو په لار کي د داوډ یوه ډبره پرته وه هغې ډبري ور ناره کړه او ورته وه یې ویل چي زه حجر ذ هارون یم چي ده په ما ډېر جباران وژلي دي ما درسره واخله. بیا داوډ پر بله ډبره تېرېدی هغې ورته وویل چي ما در سره واخله زه حجر موسی ﷺ یم چي په ما سره یې دونده دونده کفار وژلي دي. نو هغه هم داوډ هم راواخستل. او بیا د داوډ په مخه بله ډبره ورغله هغې ورته وویل چي ما درسره واخله په مابه ته جالوت وژنې نو هغه هم داوډ وبغل ځولی ته واچول.

**یوه سه:** چي د داوډ عادت دا و چي په مچلوغه به یې هر شی ویشتی که به زمری وایي او که به لیوه وای او که به پرانګ ځای پر ځای به یې هلاک کړی. نو پر میدان د جنګ د جالوت جبار او دده فوج بېې عدده وو او د طالوت فوج چي درې سوه دیارلس (۳۱۳) کسه وه مقابله شروع کېدله جالوت په خپل غرور میدان ته راغلی نو یې نعره وکړه چي څوک دی چي زما مقابلې ته راسي هیڅ چا د بني اسرائیلو د جواب طاقت نه درلودی، نو جالوت وویل ای بني اسرائیلو که تاسي پر حق یاست نو زما مقابلې ته ولي څوک نه راوځي. نو داوډ خپلو ورونو ته وویل چي ددې منحوس مقابلې ته به زه ور ووزم، نو ورونو یې هیڅ ږغ ونه کړی، بیا طالوت ملک بني اسرائیل و داوډ ته وویل او وعده یې ورسره وکړه چي زه به تاته خپله لور درکوم او نیمی سلطنت به هم درکړم، نو طالوت خپل آس ورکړی او زغره یې ورکړه او توره یې ورکړه، نو داوډ چي پر آس سپور سو د دوارو خواوو فوجونه یې ننداره کوي داوډ تر مقابلې د جالوت نارسیده بیرته طالوت ته راغلی خلګو ناري کړې جبن الغلام ځوان بې زړه سو، نو طالوت پوښتنه

خندي وکړه چي څه کوې چي بيرته راغلې داؤد ورته وويل که خدای ﷻ زما کومک ونه کړی نو دا سلاح او آس او زغره هم په درد نه خوري، نو ما او خپل کار سره پرېږده طلوت ورته وويل نعم. نو داؤد خپل بغل خولی وغاړي ته واچول او مچلوغه يې ورسره واخسته او د جالوت پر خوا روان سو، راوي وايي چي جالوت چي داؤد وليدی په زړه کي يې ډېر رعب پيدا سو، نو داؤد ته يې وويل ارجع يا فتی فانی ارحمک ان اقتلک، داؤد ورته وويل چي زه به تا وژنم، جالوت ورته وويل چي په څه شي مي وژنې، داؤد ورته وويل په دغو ډبرو او په مچلوغه، جالوت ورته وويل چي په دې خو سړی سپی وژني، داؤد ورته وويل چي انت شر من الکلب، جالوت ورته وويل چي زما دي قسم وي چي ستا غوښي به زه د درندګانو د مځکي او د هوا پر مرغانو تقسيم کړم، داؤد ورته وويل چي ستا غوښي به داغسي تقسيم سي ان شاء الله، نو داؤد وويل باسم اله ابراهيم يوه ډبره يې له توبړې څخه راوکښل ثم اخرج آخر باسم اله اسحق او بيا يې ډبره راوکښل وقال باسم اله يعقوب او درې سره يې په مچلوغه کي کښېښولې، او هغه سره يوه ډبره سوې، نو يې مچلوغه پر سر وګرځوله او د جالوت پر خوا يې وروغورځول، خدای ﷻ وباد ته امر ورکړی چي دا ډبره د جالوت پر خول چي د اوسپني و وه يې لګوه، نو ډبره چي پر خول ومښتل په مغزو کي يې ولاړه او تر څټ يې ووتل، او جالوت چي غوځار سو دېرش کسه تر ده لاندي سوه او د جالوت لښکر وتښتېدی، داؤد راغلی جالوت يې تر پښو کش کړی د طالوت ومخ ته يې وغورځاوه ففرح المسلمون فرحا شديدا ورجعوا الی مدينتهم سالمين غانمين فزوجه طالوت ابنته او دده مهر ته يې اعتبار ورکړی په نيم مملکت کي حسب وعدته، او د طالوت تر وفات وروسته ټوله سلطنت د داؤد سو، او د شموئيل ؑ د وفات وروسته خدای ﷻ داؤد نبي هم کړی او زبور کتاب يې پر نازل کړی، تاريخ وايي چي د بني اسرائيلو همېشه نبوت په يوه سبط کي و او سلطنت به يې په بل سبط کي و لکن په داؤد کي سلطنت او

نبوت خدای ﷻ دواړه سره جمع کړه لله الامر یفعل مایشاء یحکم مایورید.

وَاٰتٰىهُ اللّٰهُ الْمُلْكَ وَالْحِكْمَةَ

او ورکړه خدای ﷻ وداوډ ته پادشاهي د بني اسرائیلو او حکمت یعني نبوت

وَعَلَّمَهٗ مِمَّا یَشَآءُ ط

او داوډ ته خدای ﷻ وروښوول بعض هغه شیان چي د خدای ﷻ خوښ وه یعني اراده یې وه.

(۱) جوړول د زغرو چي جنګي قمیص و قال الله تعالى في موضع آخر من القرآن والناله الحدید کما سیجيء تفصیله في هذا التفسیر في موضه ان شاء الله العزیز الکریم، نو د داوډ ﷺ خوراک له عمل څخه د خپل لاس و، او له بیت المال څخه یې هیڅ شی نه اخستی، په حدیث شریف کي چي بخاري یې روایت کړی دی علیه السلام وایي ماأکل احد طعاما خیرا من ان یأکل من عمل یدیه وان نبي الله داوډ کان یأکل من عمله یدیه، یعني زغري به یې جوړولې او بیا به یې خرڅولې او د ځان او د کور ګذاره به یې په کوله.

(۲) په خبرو د مرغانو او میږیانو پوهېدی. (۳) او خدای ﷻ دومره ښه صوت حسن ورکړی و چي ده به زبور وایه ټوله وحشي حیوانات به پر راغونډ سوه، او مرغان به یې پر سر سایه بان سوله او جاري اوبه به پر ځای ودرېدلې، او که به باد و هغه به هم ساکن سو وغیرها من المکرمات.

**درویش وایي:** چي بعض مفسرانو یوه قصه رانقل کړې ده په مخالفت کي په منځ کي طالوت او د داوډ چي نه یې عقل تائید کوي او نه یې تاریخ او امام مظهري هغه قصه په سختنی سره رد کړې ده والله اعلم بالصواب.

وَلَوْلَا دَفْعُ اللّٰهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لَّفَسَدَتِ الْاَرْضُ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ ذُوْ فَضْلٍ عَلَى الْعٰلَمِیْنَ ﴿۲۵۱﴾

او که نه وایي دفع کول د خدای ﷻ بعض لکه کفار په بل بعض سره چي

مؤمنان دي، نو به فاسده سوې وايي ځمکه يعني مشرکانو به غلبه کړې وايي، نو ددوئ به فساد په ځمکه کې کولای او ښارونه به يې د مسلمانانو خرابولای او عبادالله چې مسلمانان دي هغه به يې وژلای، او ظلم به يې پر کولای، او خلګ د ايمان بالله او د عبادت الهي څخه منع کولای، او بعض مفسران رح يې داسي ترجمه کوي که خدای ﷻ نه دفع کولای په مؤمنانو او ابرارو سره عذاب د کفارو او فجارو څخه، نو ځمکه به بر باد سوې وايي، ولي ځمکه د خدای ﷻ غالبا په کفارو او فجارو سره آباده ده، نو چې پر دوئ عذاب الهي نازل سوی وايي او له منځه تتلي وايي لخربت الدنيا، ولهذا قيل لولا الحمقى لخربت الدنيا لکن خدای ﷻ له کافر څخه عذاب دفع کوي په مؤمن سره، او په ابرارو له فجارو څخه کمامر في الحديث الطويل عن ابي هريرة ﷺ او دغه په حديث کې د ابن عمر ﷺ چې مروي دي قال چي رسول الله ﷺ ووبل ان الله يدفع بالمسلم الصالح عن مائة اهل بيت من جيراته البلاء ثم قرء ولولا دفع الله الناس آه

**پوښتنه**: څه سبب دی چې تعمير ظاهري د ځمکې غالبا بل کليا د کافرانو په لاس کې دی؟

**ځواب**: چونکه کافران له قيامته څخه منکر دي حقيقة کالمشرکين من هنود الهند والجابان وغيرهما، او يا حکما منکر دي کاليهود والنصارى بعد بعثة النبي ﷺ، نو دوئ تول خپل همت مبذول وتعمير ته د دنيا ګرځولی وکذا من في حکمهم من فجار المؤمنين، واما المؤمنون الصالحون فجل سيعهم مبذول في تعمير الآخرة ويعمرون الارض بقدر الضرورة.

تِلْكَ اٰيٰتُ اللّٰهِ نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ ۗ وَاِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۲۵۲﴾

**پوه سه**: چې "تلک" مبتداء ده او مابعد يې خبر دی يعني دغه قصه د الوف چې خرجوا من ديارهم آه او قصه د اتيان د تابوت وتمليک طالوت او شکست د جبابره د عمالقه و، او قتل د داود د جالوت لره واتيان الملک والحکمة

لداوُد د آیاتو او د دلائلو د قدرت د خدای ﷻ دی، او ستا پر نبوت هم دلائل دي مورِ يې تلاوت كوو پر تاباندي په حق سره، يعني برابر د واقع او د كتابو سره د اهل كتابو او په تحقيق ته له رسولانو څخه د خدای ﷻ يې.

**درويش وايي**: چي دغه قصه معجزه د رسول الله ﷺ هم ده او دليل د نبوت د عليه السلام ده، ولي چي عليه السلام نبي امي و، نو څرنگه دا قصص مطابقه للواقع بېله وحي الهي ده كولای سوای.

**درويش وايي**: چي الحمد لله الذي وفقني لتفسير جزء سيقول بالخير والعافية والصحة والسلامة، وصلوته وسلامه على خير البرية محمد وآله وصحبه البررة وعلى تابيعهم وتبعهم الى يوم القيامة وهذا من عظيم من رب العالمين على هذا العبد الجهول الظلوم.

**درويش وايي**: چي په ورځ د دوشنبې د ماپښين پر څلور بجې د جمادي الاول پر اته ويشت (۲۸) تاريخ سنه (۱۴۲۶) هجري قمري تفسير د جزء د سيقول چي په حساب د جلدو د تفسير ايوبي دريم جلد دی ختم سو ان شاء الله په تفسير د جزء ثالث تلك الرسل به شروع وكړه سي، زما كار صرف او صرف اراده او بذل الهمة دی او اتمام يې پر رب العزت دی مرزا غالب وايي

همت بلند دار كه نزد خدا وخلق　　　باشد بقدر همت تو اعتبار تو

وفي المثنوي

علم چون بردل زند ياری شود　　　علم چون برتن زند ماری شود

از خوانندگان محترم اميد دارم كه بنظر حسد علمی يا قومی باهم عصری تفسير درويش را مطالعه ننمايد بلكه براه انصاف بجای غيبت درويش را دعا كنيد كه خدا توفيق بدهد واين تفسير را تابه پايان برساند بر كريمان كارها دشوار نيست

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا سكين او pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

